# خطباتِ ربانی

از افادات

فصیح اللسان لذیذ البیان
علامہ عبد الحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد سوم

پسند فرمودہ
قائد انقلاب قرآنی شیخ القرآن والحدیث حضرت
العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب
واکابرین اشاعت التوحید والسنہ حفظہم اللہ

مرتب
محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر: دار التوحید والسنۃ

# خطباتِ ربانی

ازافادات

فصیح اللسان لذیذ البیان

علامہ عبدالحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد سوم

پسند فرمودہ

قائد انقلاب قرآنی شیخ القرآن والحدیث حضرت

العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب

واکابرین اشاعت التوحید والسنہ حفظہم اللہ

مرتب

محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر دار التوحید والسنۃ

محلہ توحید آباد، جلسی، صوابی

رابطہ نمبر: 0315 9487699

وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِيْنُ (سورة يس: 17)



دَ كتاب نوم: خطباتِ ربّاني

از افادات: فصيح اللسان لذيذ البيان علّامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

مرتب: محمد يعقوب جلسّوي عفي عنه

كمپوزنګ وسټينګ: ابو عبد الله ضياءالرحمٰن الحنفّي (مردان)

جلد نمبر: سوم

صفحات: 414

طبع: اول اکتوبر 2022ء




## اسټاکسټ

دارُ التَّوحِيْدِ والسُّنَّه (محلّه تُوحيد آباد، جَلسيء، صَوابي) [رابطه نمبر: 0315 -9487699]

## دَ ميلاويدو نور ځايونه

1- مكتبة الحسن اينډ اشاعت اسلامک ډيټا سنټر محله عيسى خيل نيو روډ مينګوره سوات

2- اسلامي كتب خانه عبد الرحمن پلازه، صوابي

3- مكتبه حسينيه شيوه اډه، صوابي

4- ديوبندي كتب خانه سنخاکوټ بازار ضلع ملاکنډ

# فهرست

## (1) دَ نبي ﷺ نسب او دَهغې شرافت..2

**(2) فضائل دَ نيکونو دَ نبي ﷺ او دَ مور طرف نسب...19**

**(3) دَ نبي ﷺ پيدائش...40**



**(4) دَ نبي ﷺ عقيقه، تسميه اورضاعت...54**

**(8) دَوحي بعضې لطائف...120**



**(9) دَوحي بنديدل اودوباره وحي شروع کيدل...132**

**(14) دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم حبشې ته هجرت...207**

(19) پۀ مدینه منوّره کښې دَ اسلام ابتداء...288



(20) دَ رسول الله ﷺ مدینې منوّرې ته هجرت...304

**(21) دَ نبي ﷺ مدینې منوّرې ته دَ هجرت کولو پهٔ وخت کښې پهٔ لاره کښې نا آشنا نا آشنا حالات راتلل....319**



**(22) پهٔ مدینه منوره کښې دَ هجري کال ابتداء او نبي ﷺ دَ چا پهٔ کور کښې پاتې کیدو؟...334**

(23) پهٔ مدينه منوّره کښې دَ يهودو علماؤ پهٔ نبي ﷺ باندې ايمان راوړل...350



(24) دَ مسجد نبوي تعمير...370

**(25) دَ اذان ابتداء او دَ صحابي خوب لیدل...383**

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه اوله

## "دَ نبي ﷺ نسب او دَ هغې شرافت"

بتاريخ: 2021-12-10

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه اوله

## "دَ نبي ﷺ نسب او دَ هغې شرافت"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ به وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بالله منْ شُرُوْر أَنْفُسنَا وَمنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله منْ شُرُوْر أَنْفُسنَا وَمنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله منْ شُرُوْر أَنْفُسنَا وَمنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، مَنْ يَّهْده اللهُ فَلاَ مُضلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْللْهُ فَلاَ هَاديَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لاَ شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَديٌّ سَرْمَديٌّ لاَ أَوَّلَ لَهٗ وَلاَ آخرَ لَهٗ لاَ ضدَّ لَهٗ وَلاَ ندَّ لَهٗ وَلاَ مُمدَّ لَهٗ وَلاَ بَشيْرَ لَهٗ وَلاَ نَذيْرَ لَهٗ وَلاَ وَزيْرَ لَهٗ وَلاَ مُشيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَعَلٰى آله وَأَصْحَابه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾.[1]

قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ اللهَ اصْطَفَى مِنْ وُلْدِ إِبْرَاهِيمَ، إِسْمَاعِيلَ، وَاصْطَفَى مِنْ وُلْدِ إِسْمَاعِيلَ بَنِي كِنَانَةَ، وَاصْطَفَى مِنْ بَنِي كِنَانَةَ قُرَيْشًا، وَاصْطَفَى مِنْ قُرَيْشٍ بَنِي هَاشِمٍ، وَاصْطَفَانِي مِنْ بَنِي هَاشِمٍ».[2]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړوا الله رب العزة چې څومره پيغمبران راليږلي دي نو هغه پيغمبران په تمامو انسانانو کښې بهترين خلق وي. دَ هغوي ژوند دَ پيدائش نه واخلې تر وفات پورې يَو عجيب او نا آشنا وي.

**دَ ټولو پيغمبرانو سردار**

بيا دَ ټولو پيغمبرانو سردار زمونږ پيغمبر محمد ﷺ دے. دَ هغهٔ زندګي هغه دَ ټولو نه اعلیٰ، ارفع او اوچته زندګي وه. دَ رسول الله ﷺ دا ژوند الله رب العزة زمونږ دپاره يَو نمونه ګرځولې ده. دَ نبي ﷺ باره کښې الله رب العزة فرمائي:

﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ﴾.[3]

(1) [سورة التوبة: 128].

(2) أخرجه الترمذي في أبواب المناقب، باب في فضل النبي ﷺ، برقم: (3605).

(3) [سورة الأحزاب: 22].

"یقینًا شته دے ستاسو دپاره په باره دَ رسول الله ﷺ کښې نمونه دَ تابعدارئ ښائسته".

دَ نبوت نه بعد والا زندګئ کښې دَ هغوي اتباع ضروري ده، او هغه دَ اُمّت دپاره یَو نمونه ده.

**دَ نبوت نه مخکښې ژوند**

خو دَ رسول الله ﷺ اخلاق حسنه، دَ نبي ﷺ ژوند هغه دَ نبوّت نه مخکښې هم ډیر اعلیٰ او ډیر ارفع او اوچت وو. او ډیر مزیدار وو. خلق ترې ډیر متأثره وو. هر نبي چې الله تعالیٰ رالیږي نو په اوچتو خلقو او اوچت خاندان کښې ئې رالیږي. زمونږ دَ پیغمبر پاک ﷺ سیرت په دې باندې په جلدونو کتابونه علماؤ لیکلي دي، لیکن مکمل کړي ئې نهٔ دے؛ ځکه چې دَ نبي ﷺ دَ ژوند سیرت ډیر زیات دے.

نن بیان کښې به ان شاء الله زهٔ دَ رسول الله ﷺ صرف نسب بیانوم، وروستو جُمعه کښې سیرت دَ رسول الله ﷺ: پیدائش بیا دَ ماشوم والي زندګي دَ نبوّت نه مخکښې زندګي دَ نبوّت نه روستو زندګي، بیا دَ مکي زمانه، بیا دَ مدیني زمانه دا دَ رسول الله ﷺ یَو مستقل سیرت دے. هغه تول بیانول دَ کلونو خبرې دي، خو چې کومې لوئي لوئي خبرې دي هغه به ذکر کړو.

**دَ ټولو نسَبونو نه اعلیٰ نسَب**

دَ ټولو نه اول دَ رسول الله ﷺ نسب دا په تمامو نسبونو کښې اعلیٰ وو. ما چې کوم آیت لوستلے وو دَ دې آیت په تفسیر کښې علماؤ لیکلي دي... دَ سورة التوبه آیت دے، الله تعالیٰ فرمائي:

﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾. (1)

الله تعالیٰ وائي: "په تحقیق سره راغلے دے تاسو ته ډیر لوئي پیغمبر ستاسو دَ جنس نه (ستاسو پشان انسان دے)، کران لګي په دې پیغمبر ﷺ باندې هغه چې تاسو پرې تنکیږئ، حرص کونکے دے ستاسو په فائده باندې، مومنانو باندې شفقت کونکے او رحم کونکے دے".

دَ پیغمبر ﷺ صفات الله رب العزة ذکر کړل: (۱) پیغمبر ﷺ ستاسو په شان انسان دے. (۲) چې په څهٔ باندې تاسو تنکیږئ هغه په پیغمبر ﷺ باندې کران لګي. (۳) پیغمبر ﷺ حریص دے

(1) [سورة التوبة: 128].

ستاسو پۀ فائده باندې يعني پۀ کوم کار کښې چې ستاسو فائده ده هغې باندې حريص دے، دَ هغې حرص کوي چې هغۀ ماته حاصل شي؛ دَ دې دپاره چې امت ته فائده اورسيږي. (٤) مومنانو باندې شفقت کونکے دے او (٥) مومنانو باندې رحم کونکے دے. دا دَ پيغمبر ﷺ اوصافِ حسنه شو.

**دَ مفسر قرطبي رحمه الله قول**

دلته مشهور قراءت: "مِنْ أَنْفُسِكُمْ" دے. خو يَو بل قراءت هم دې کښې راغلے دے علامه قرطبي رحمه الله ليکلي دي:

"وَقَرَأَ عَبْدُ اللهِ بْنُ قُسَيْطٍ الْمَكِيُّ "مِنْ أَنْفَسِكُمْ" بِفَتْحِ الْفَاءِ".[1]

"او لوستلو به عبد الله بن قسيط مکي "من أنفُسِكم" پۀ فتحې دَ فاء سره (أنفَسِكُمْ)".

يَو عالم دے عبد الله بن قيسط المکي هغۀ به دا آيت پۀ فتحې دَ فاء سره لوستلو. دَ دې معنیٰ داسې راځي: "پۀ تاسو کښې غوره انسان، پۀ تاسو کښې بهترين انسان". نو الله تعالیٰ وائي: "پۀ تحقيق سره راغلے دے تاسو ته رسول داسې رسول او داسې پيغمبر چې تاسو ټولو کښې هغه غوره او بهتر دے". پۀ هر لحاظ سره بهتر دے.

**دَ سيدة فاطمه رضي الله عنها روايت**

فاطمه رضي الله عنها چې دَ نبي عليه السلام لور ده، هغې دَ نبي عليه السلام نه نقل کړي دي: چې رسول الله به فرمائيل: «أَيْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَشْرَفِكُمْ وَأَفْضَلِكُمْ».[2] "تاسو ته رسول راغلے دے داسې رسول چې هغه تاسو ټولو کښې اوچت نسب والا دے، او تاسو ټولو کښې بهترين انسان دے".

نو نبي عليه السلام پۀ ټوله دنيا کښې اوچت نسب والا وو، بهترين نسب والا وو.

**دَ عربو مقوله**

عرب وائي: "شيئٌ نفيسٌ". دا هغوي هغه وخت کښې وائي: چې کله يَو څيز پۀ ټولو کښې بهتر وي، محبوب وي دَ خلقو ورسره مينه ډيره وي.

---

(1) انظر: "تفسير القرطبي": (301/8).

(2) انظر: "تفسير القرطبي": (301/8).

### دَ واثلة بن اسقع ﷺ روايت

قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ اللهَ اصْطَفَى مِنْ وُلْدِ إِبْرَاهِيمَ، إِسْمَاعِيلَ، وَاصْطَفَى مِنْ وُلْدِ إِسْمَاعِيلَ بَنِي كِنَانَةَ». "واثله بن اسقع ﷺ وائي: رسول الله ﷺ وئيلي وو: يقينًا الله تعالٰی دَ اولاد دَ ابراهيم ﷺ نه اسماعيل ﷺ غوره کړے او غوره کړے دے، او دَ اسماعيل ﷺ دَ اولاد نه ئې بنو کنانه غوره کړي او بهتر جوړ کړي دي".

بنو کنانه دا دَ اسماعيل ﷺ اولاد کښې راتلل خو دا په هغې ټولو کښې بهترين خاندان او بهترينه کورنۍ وه؛ الله غوره کړې وه. او بيا وريسې نبي ﷺ وائي:

«وَاصْطَفَى مِنْ بَنِي كِنَانَةَ قُرَيْشًا». "بيا الله رب العزة دَ بنو کنانه نه قريش غوره کړي".

نو قريش چې دي دوي الله تعالٰی دَ بنو کنانه نه غوره کړي دي او غوره کړي ئې دي. بنو کنانه کښې قريش يَو وړه قبيله وه. او بيا نبي ﷺ فرمائي:

«وَاصْطَفَى مِنْ قُرَيْشٍ بَنِي هَاشِمٍ، وَاصْطَفَانِي مِنْ بَنِي هَاشِمٍ».(1)

"او په قريشو کښې الله تعالٰی بنو هاشم غوره کړل، او بيا ئې زۀ په بنو هاشمو کښې غوره کړم".

نو په غوره کښې غوره په ټول اولاد دَ اسماعيل ﷺ کښې بهترين خاندان، بهترينه کورنۍ بنو کنانه ده، او بيا په بنو کنانه کښې بهترين خاندان هغه قريش دي، بيا په قريشو کښې بهترين خاندان هغه بنو هاشم دي او بنو هاشم کښې بهترين خاندان، خاندان دَ رسول الله ﷺ دے. نو نبي ﷺ په ټولو خلقو کښې بهترين قوم او بهترين نسب والا وو.

### دَ ابوهريرة ﷺ روايت

ابوهريره ﷺ وائي: نبي ﷺ فرمائي:

«بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُونِ بَنِي آدَمَ، قَرْنًا فَقَرْنًا، حَتَّى كُنْتُ مِنَ الْقَرْنِ الَّذِي كُنْتُ فِيهِ».(2)

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب المناقب، باب في فضل النبي ﷺ، برقم: (3605).

(2) أخرجه البخاري في كتاب المناقب، باب صفة النبي ﷺ، برقم: (3557). وقاضي عياض بن موسٰی في "الشفا بتعريف حقوق المصطفى": (82/1).

"زهٔ الله تعالٰی پهٔ هغه تمامو پیړو دَ آدم ﷺ کښې بهترینه پیړئ کښې کړځولے یم. زما خاندان دَ آدم ﷺ دَ زمانې نه راواخلې تر دې زمانې پورې دا پاک خاندان، بهترین خاندان وو، تر دې چې زهٔ هم الله پهٔ دې خاندان کښې پیدا کړم".

دَ آدم ﷺ دَ وخت نه الله تعالٰی دا سلسله داسې راروانه کړې وه.

**دَ نبي ﷺ فرمانِ مبارکه**

دَ دې وجې نه یَو روایت کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي:

«إِنِّي مِنْ نِكَاحٍ وَلَسْتُ مِنْ سِفَاحٍ».[1]

"زهٔ دَ نکاح بچے یم او زهٔ نسلًا بعد نسلٍ حلالي یم".

مطلب دا دے: زما خاندان کښې چرته چا زِنا نهٔ ده کړې، چې دَ هغې زِنا نه څوک پیدا شوي وي او زهٔ دَ هغوي پهٔ اولاد کښې راشم. زما خاندان څومره چې دے هغه ټول حلالیان دي، هغوي ودونه کړي دي، دَ هغې نکاح نه پس ورله الله بچي ورکړي دي. زما پهٔ خاندان کښې دَ چا بچے دَ زِنا نه نهٔ دے پیدا. نو دَ نبي ﷺ بره خاندان کښې هم چرته دَ چا نه زِنا نهٔ ده راغلې. داسې پاک، صفا او سوتره الله رب العزة دَ نبي ﷺ خاندان ساتلے وو. نو خاندان دَ نبي ﷺ پهٔ تمامو عربو کښې بهترین خاندان دے.

**دَ عبد الله بن عمر ﷺ روایت**

دَ دې وجې نه "الشفا" کښې قاضي عیاض ﷺ یَو روایت نقل کړے دے: دَ عبد الله بن عمر ﷺ نه نقل دي چې دَ الله پیغمبر ﷺ فرمائیلي دي:

«إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ اخْتَارَ خلْقَهُ فَاخْتَارَ مِنْهُمْ بَنِي آدَمَ».

دَ دې نه به اوس تهٔ پته اولګوې چې دَ نبي ﷺ انتخاب الله تعالٰی پهٔ ټول مخلوق کښې کړے دے. پهٔ مخلوق کښې داسې هیڅ څوک نشته دے چې دَ محمد رسول الله ﷺ نه بهتر وي.

---

(1) انظر: "تفسير القرطبي": (301/8).

نبي ﷺ وائي: "الله خپل مخلوق غوره کولو نو په هغې تولو کښې الله بني آدم غوره کړو".
په تولو مخلوقاتو کښې غوره او بهترين مخلوق چې دے نو هغه بني آدم دے، انسانان هغه په تولو کښې بهترين مخلوق دے. دومره مخلوق چې حساب ئې نۀ کيږي اوچه کښې دي، سمندر کښې دي خو په دې تولو کښې بهترين هغه بني آدم دے.

**دَ الله تعالی اعلان**

الله رب العزة وائي: ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ﴾.[1]

"زما دې پخپل ذات قسم وي چې ما بني آدم په تول مخلوق کښې بهتر کړځولے دے".

دا خو دے خپل ځان نۀ پيژني. نو اشرف المخلوقات هغه انسانان دي، هغه اولاد دَ آدم ﷺ دے. بيا دَ الله نبي ﷺ فرمائي:

«ثُمَّ اخْتَارَ بَنِي آدَمَ فَاخْتَارَ مِنْهُمُ الْعَرَبَ».

"بيا ئې دَ آدم ﷺ اولاد غوره کړل نو غوره ئې کړل دَ دوي نه عرب".

نو بيا خو دَ آدم دَ بچو نه توله دنيا ډکه ده، دا تول انسانان دَ آدم ﷺ اولاد دے نو هغه تول الله غوره کول نو په تمام اولاد دَ آدم ﷺ کښې چې الله ته خوښ شول او په الله باندې ډير ګران وو نو هغه عرب دي. عرب قوم دَ تولې دنيا والو نه بهتر قوم وو. بيا دَ الله نبي ﷺ فرمائي:

«ثُمَّ اخْتَارَ الْعَرَبَ فَاخْتَارَ مِنْهُمْ قُرَيْشًا».

"بيا الله رب العزة په عربو کښې غوره کولو نو غوره ئې کړل دَ دوي نه قريش".

نو عرب خو ډير شے دي کنه! هغې کښې چې الله غوره مخلوق پيدا کولو نو دَ تولو عربو نه چې الله تعالٰی خپل ځان ته ډير خوښ کړل او غوره ئې کړل نو قريش خاندان ئې غوره کړو. نو په عربو کښې دَ الله خوښ چې دي او دَ الله په نزد غوره چې دي نو هغه قريش دي.

«ثُمَّ اخْتَارَ قُرَيْشًا فَاخْتَارَ مِنْهُمْ بَنِي هَاشِمٍ».

"بيا ئې قريش غوره کړل نو په هغوي کښې ئې بنو هاشم غوره کړل".

(1) [سورة الإسراء: 70].

نو په قریشو کښې چې بیا کوم دَ هاشم اولاد راټلو نو دا بهترین خاندان شو.

بیا دَ الله نبي ﷺ فرمائي:

«ثُمَّ اخْتَارَ بَنِي هَاشِمٍ فَاخْتَارنِي مِنْهُمْ».[1]

"بیا الله په بنو هاشم کښې غوره کولو نو زهٔ ئې پکښې غوره کړم".

**حاصل**

تمام مخلوق کښې غوره مخلوق اولاد دَ آدم ﷺ دے، بیا په تمام اولاد دَ آدم ﷺ کښې بهترین مخلوق چې دے هغه عرب دي، او په تمامو عربو کښې بهترین مخلوق چې دے هغه قریش دي، او په ټولو قریشو کښې بهترین مخلوق هغه قریش دي، او په ټولو قریشو کښې بهترین هغه بنو هاشم دي او په بنو هاشم کښې بهترین چې دي هغه دَ رسول الله ﷺ خاندان دے. بیا نبي ﷺ فرمائي:

«فَلَمْ أَزَلْ خِيَارًا مِنْ خِيَارٍ».

"نو زهٔ همیشه دَ آدم ﷺ دَ زماني نه راواخلې بس په بهترینو بهترینو خاندانونو کښې راروان یم".

انسان په تمامو مخلوقاتو کښې بهتر دے بیا عرب دي نو عرب په تمامو انسانانو کښې بهتر دي، بیا په عربو کښې قریش بهتر او بیا په قریشو کښې بنو هاشم بهتر او بیا نبي ﷺ په ټول قریشو کښې بهتر دے؛ ځکه نبي ﷺ وائي: چې زهٔ دَ ابتداء نه په بهترین خاندان کښې راروان یم.

**دَ عربو سره محبت**

بیا دَ الله نبي ﷺ فرمائي:

«أَلَا مَنْ أَحَبَّ الْعَرَبَ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ وَمَنْ أَبْغَضَ الْعَرَبَ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ».[2]

چونکه دَ الله نبي ﷺ عربي دے نو وائي: "خبردارا څوک چې دَ عربو سره مینه کوي نو دا اصل کښې په ما مئین دے؛ ځکه دَ عربو سره مینه لري او څوک چې دَ عربو سره بغض کوي نو دا ئې زما سره نهٔ لګي؛ ځکه ئې دَ عربو سره نهٔ لګي".

(1) انظر: "الشفا بتعريف حقوق المصطفى ﷺ" لقاضي عياض: (82/1).

(2) انظر: "الشفا بتعريف حقوق المصطفى ﷺ" لقاضي عياض: (82/1).

دَ عربو سره مينه دَ دې وجې نه کوه: چې زمونږ پيغمبر عربي ﷺ عربي دے. نو خبره مې دا کوله چې په ټولو کښې اعلیٰ نسب دَ رسول الله ﷺ دے.

**په فضيلت دَ محمد رسول الله ﷺ باندې دَ دشمنانو دَ اسلام اقرار**

دا خو مشهوره خبره ده:

"وَالْفَضْلُ مَا شَهِدَتْ بِهِ الْأَعْدَاءُ".

"فضيلت هغه دے چې دشمنان پرې اقرار اوکړي".

دا خو هر سړے وائي: چې زهٔ بهتر يم، هر سړے ځان ته بهتر وائي. خو چې کله دَ دشمن دَ خُلې نه دَ يَو سړي صفت راوځي نو پوهه شه چې دا دَ کمال والا سړے دے؛ ځکه چې دشمن هم دَ دهٔ صفت کوي، دشمن هم دَ دهٔ دا خبره مني.

اعلیٰ نسب دَ نبي ﷺ داسې وو چې نور خو پريږدَوه، مومنان خو پريږدَوه، خپل خو پريږدَوه. چې کافر نه به دې تپوس اوکړو نو هغهٔ به هم دا منله چې:

"هُوَ فِينَا ذُو نَسَبٍ".[1]

"هغه مونږ کښې دَ اوچت نسب خاوند دے".

"صحيح البخاري" کښې اوږده واقعه ده، چرته په يَو موقع به ئې بيان کړو. هرقل دا دَ روم بادشاه وو. دے دَ ابوسفيان نه تپوس کوي.... هغه وخت کښې ابو سفيان دَ پيغمبر ﷺ سخت دشمن وو، دَ کافرانو غټ سردار وو. چونکه نبي ﷺ هرقل ته خط ليږلے وو نو هرقل تپوس اوکړو چې: دَ دې نبي څوک رشته دار شته؟ کهٔ دَ دهٔ څوک رشته دار وي نو راواوئې غواړئ!. ابوسفيان خو چونکه دَ نبي ﷺ سره قريب پاتې شوے وو، او لږ رشته کښې هم راتلو، نو ابو سفيان ئې رااوغوښتلو. ډير تپوسونه ئې دَ ابوسفيان نه کول، او هغهٔ جوابونه ورکول، يَو تپوس ئې ترې دا کړے وو: ابوسفيان وائي:

"ثُمَّ كَانَ أَوَّلَ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَنْ قَالَ: كَيْفَ نَسَبُهُ فِيكُمْ؟".

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ، برقم: (7).

"هرقل تپوسونه کول نو رومبنے تپوس ئې ما نه دا کړے وو: چې دا محمد ﷺ چې وائي: چې زۀ نبي يم، ما له الله تعالىٰ پيغمبري راکړې ده. نو دا راته اووايه چې: "كَيْفَ نَسَبُهُ فِيكُمْ؟". دَ دۀ نسب پۀ تاسو کښې څنګه دے؟ نسب ئې اعلىٰ دے او کۀ نۀ دے؟".

ابوسفيان خو هغه وخت کافر دے، مسلمان نۀ دے، نو دے وائي:

"قُلْتُ: هُوَ فِينَا ذُو نَسَبٍ".

"ما ورته اووئيل: چې هغه پۀ مونږ کښې اوچت نسب والا دے".

نو دا دَ ابو سفيان جواب دے هرقل ته چې: دا پيغمبر ﷺ پۀ مونږ کښې دَ ډير لوئي نسب والا دے، پۀ نسب کښې ئې خبره نۀ ده پکار. ابوسفيان هغه وخت کښې دَ نبي ﷺ مخالف دے، روستو خو بيا صحابي جوړ شوے دے، خو بيا هم دَ انصاف نه کار اخلي او وائي: چې هغه خو پۀ مونږ کښې اوچت نسب والا دے.

**دَهرقل وينا دَ محمد رسول الله ﷺ پۀ حق کښې**

نو بيا هرقل ته چې کله دَ دې تپوسونو جوابونه ورکوي: چې دا تپوس مې دَ دې دپاره کړے وو، او دا تپوس مې دَ دې دپاره کړے وو... نو هرقل ورته آخر کښې وائي: ترجمان ته وائي: دۀ ته اووايه! چې:

"سَأَلْتُكَ عَنْ نَسَبِهِ فَذَكَرْتَ أَنَّهُ فِيكُمْ ذُو نَسَبٍ".

"ما ستا نه دَ دۀ دَ نسب پۀ باره کښې تپوس اوکړو نو تا ما ته اووئيل: چې دا پۀ مونږ کښې دَ اوچت نسب والا دے".

نو دا تپوس مې څکه اوکړو چې کۀ نسب ئې وړوکے وي، نسب ئې خراب وي، نسب کښې ئې عيب او نقصان وي نو دے بيا دروغ وائي، دے بيا نبي نۀ دے؛ څکه الله تعالىٰ پۀ کمزوري نسب کښې نبي نۀ راليږي. بلکه پۀ ټولو کښې چې ئې نسب اوچت وي نو الله هغه نبي جوړوي نو تا راته دا خبره اوکړه چې: "هُوَ فِيْنَا ذُوْ نَسَبٍ". "پۀ مونږ کښې دَ اوچت نسب والا دے". نو اوس هرقل پۀ خپله باندې وائي:

"فَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي نَسَبِ قَوْمِهَا".[1]

"نو دغه شان پيغمبران چې دي هغوي الله دَ قوم په اوچتو نسبونو کښې راليږي".

اوچتو خلقو کښې الله دَ هغوي نه پيغمبران جوړوي.

**مثال**

کمزوري نسب والا الله نبي نهٔ جوړوي؛ ځکه دَ هغهٔ په خبره بيا څوک عمل نهٔ کوي. (نعوذ بالله!) چې دَ يَو سړي دَ پلار کردار خراب وي، دَ مور کردار ئې خراب وي نو بيا ورته هر ځائے کښې خلق هغوي يادَوي: چې تهٔ خو دَ هغه سړي بچے ئې تهٔ هم خبرې کوې! نو الله تعالیٰ پهٔ تمامو قومونو کښې په اوچت نسب کښې ځکه ليږي؛ چې دا خلق دا اعتراض او نهٔ کړي. نو کافرانو هم دَ نبي ﷺ نسب تسليم کړے وو، چې آوْا دے پهٔ مونږ کښې دَ اوچت نسب والا دے.

**دَ رسول الله ﷺ نسب**

دَ رسول الله ﷺ نسب څهٔ دے؟

نو واورئ! يَو نسب متفقٌ عليه دے تر يَو حده پورې، دَ هغې نه بره بيا هغې کښې دَ علماء اختلاف شته.

امام بخاري رحمه الله پهٔ "صحيح البخاري" کښې باب قائموي: "باب مبعث النبي ﷺ".[2] پهٔ هغې کښې دَ نبي ﷺ نوم نه واخلې او تر يَوويشتم (۲۱) نيکهٔ پورې دَ نبي ﷺ خاندان بيانوي:

«مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ المُطَّلِبِ بْنِ هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافِ بْنِ قُصَيِّ بْنِ كِلاَبِ بْنِ مُرَّةَ بْنِ كَعبِ بْنِ لؤَيِّ بْنِ غالِبِ بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ بْنِ كِنَانَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ مُدْرِكَةَ بْنِ إِلْيَاسَ بْنِ مُضَرَ بْنِ نِزَارِ بْنِ مَعَدِّ بْنِ عَدْنَانَ».[3]

دا يَوويشت (۲۱) نيکونه دَ نبي ﷺ وو. "دَ نبي ﷺ خپل نوم محمد وو، دَ پلار نوم ئې عبد الله

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ، برقم: (7).

(2) انظر: "صحيح البخاري": (543/1).

(3) انظر: "صحيح البخاري": (543/1).

وو، دَ نیکهٔ نوم ئې عبد المطلب وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم هاشم وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم عبد مناف وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم قُصيٰ وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم کلاب وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم مُرَّه وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم کعب وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم لؤيّ وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم غالب وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم فِهر وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم مالک وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم نضر وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم کنانه وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم خزیمه وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم مدرکه وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم الیاس وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم مُضر وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم نِزار وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم معد وو، دَ هغهٔ دَ پلار نوم عدنان وو".

دا هغه نسب دے چې صحیح دے، مطلب دا دے: چې پهٔ دې کښې دَ هیڅ چا اختلاف نشته، ټول علماء ئې مني. دَ دې نه بعد کتابونو کښې شته تر آدم ؑ پورې علماؤ لیکلے دے.

**دَ علامه ابن قیم رحمه الله قول**

لیکن خبره داده: علامه ابن قیم رحمه الله "زاد المعاد" کښې لیکلي دي:

"إِلىٰ هَاهُنَا مَعْلُوْمُ الصِّحَّةِ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ بَيْنَ النَّسَّابِيْنَ، وَلاَ خِلاَفَ فِيْهِ اَلْبَتَّةَ، وَمَا فَوْقَ "عَدْنَانَ" مُخْتَلَفٌ فِيْهِ. وَلاَ خِلاَفَ بَيْنَهُمْ أَنَّ "عَدْنَانَ" مِنْ وُلْدِ إِسْمَاعِيْلَ".[1]

"تردې ځائے پورې دَ الله دَ نبي ﷺ نسب هغه معلوم دے دَ صحت پهٔ اعتبار سره، او دَ ټولو نسب والا (چې څوک نسبونه بیانوي) پهٔ اتفاق سره دې ځائے پورې ثابت دے، دَ هیڅ چا پکښې خلاف نشته دے. او دَ "عدنان" نه بره چې وریسې څې نو هغې کښې بیا اختلاف شته دے (نومونو کښې اختلاف دے). او هیڅ اختلاف نشته دے پهٔ دې خبره کښې چې "عدنان" دَ اسماعیل ؑ پهٔ اولاد (نوَسو، کړوَسو) کښې راځي".

نو دَ عدنان پورې پکښې هیڅ اختلاف نشته دے خو چې اسماعیل ؑ او ابراهیم ؑ او نوح ؑ او بیا آدم ؑ ته ئې رسَوې نو پهٔ دې کښې دَ علماؤ اختلاف شته دے.

**دَ علامه ابن حجر رحمه الله قول**

دَ دې وجې نه علامه ابن حجر رحمه الله پهٔ "فتح الباري" شرح دَ "صحیح البخاري" کښې لیکي:

---

(1) انظر: "زاد المعاد" لابن القیم: (70/1).

"وَأَخْرَجَ ابن سعد من حَدِيث ابن عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا انْتَسَبَ لَمْ يُجَاوِزْ فِي نَسَبِهِ مَعَدَّ بْنَ عَدْنَانَ".[1]

وائي: "ابن سعد دَ عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل كړي دي: چې نبي ﷺ به پهٔ خپله باندې كله دَ خپل خاندان او نسب نومونه بيانول نو دَ "معد بن عدنان" نه به مخكښې نهٔ تلو".

نو نبي ﷺ پهٔ خپله هم دَ "معد بن عدنان" نه مخكښې خپل نسب نهٔ دے بيان كړے.

**دَ علامه عيني رحمه الله قول**

علامه عيني رحمه الله فرمائي: چې نبي ﷺ به دَ دې نه مخكښې نهٔ تلو. او بيا وائي:

"وَاقْتَصَرَ الْبُخَارِيُّ فِي ذِكْرِ نَسَبِهِ الشَّرِيْفِ عَلَى هَذَا وَلَمْ يَذْكُرْهُ إِلَى آدَمَ، عَلَيْهِ السَّلَامِ؛ لِأَن أَهْلَ النَّسَبِ أَجْمَعُوْا عَلَيْهِ إِلَى هُنَا، وَمَا وَرَاءَ ذَلِكَ فِيْهِ اخْتِلَافٌ كَثِيْرٌ جِدًّا".

وائي: "امام بخاري رحمه الله چې هغه لوئي محدث دے هغه دَ نبي ﷺ نسب تر عدنان پورې بيانوي تر يَو ويشتم نيكهٔ پورې. آدم عليه السلام ته ئې نهٔ رسوي (وجه څهٔ ده؟)؛ وجه دا ده: چې تمام نسبونه بيانوونكي چې دي نو تردې ځائے پورې دَ هغوي اجماع ده، او دَ دې نه بره هغې كښې ډير اختلاف دے نو ځكه دَ دې نه مخكښې نور نهٔ بيانوي".

بيا وائي: "وَاخْتَلَفُوْا فِيْمَا بَيْنَ عَدْنَانَ وَإِسْمَاعِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامِ، مِنَ الْآبَاءِ، فَقِيْلَ: سَبْعَةُ آبَاءَ بَيْنَهُمَا، وَقِيْلَ: تِسْعَةٌ، وَقِيْلَ: خَمْسَةَ عَشَرَ أَبًا، وَقِيْلَ: أَرْبَعُوْنَ".[2]

اسماعيل عليه السلام خو مشهور پيغمبر دے، دَ ابراهيم عليه السلام ځوي دے او نبي ﷺ دَ اسماعيل عليه السلام پهٔ اولاد كښې راځي. علامه عيني وائي: "علماؤ اختلاف كړے دے چې دَ عدنان (چې دا دَ نبي عليه السلام يَويشتم نمبر نيكهٔ دے) نه واخلې تر اسماعيل عليه السلام پورې څومره نيكونه تير شوي دي؟ نو چا وئيلي دي: چې اوۀ (٧) نيكونه تير شوي، او څوک وائي: چې نهٔ (٩) نيكونه تير شوي، او چا وئيلي دي: چې پنځلس (١٥) نيكونه تير شوي او چا وئيلي دي: چې څلويښت (٤٠) نيكونه تير شوي دي".

---

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر العسقلاني: (164/7).

(2) انظر: "عمدة القاري شرح صحيح البخاري" لبدر الدين العيني: (303/16).

نو اوس تهٔ به کوم یَو یادَوي دا خو مینځ کښې ډیر نیکونه تیر شوي دي؛ پهٔ دې وجه بس دَ "عدنان" نه مخکښې دَ پیغمبر نسب کښې تلل نهٔ دي پکار.

## دَ علامه ابو البرکات النسفي الحنفي رحمه الله قول

نو چې څوک آدم عليه السلام ته دا سلسله نسب رسَوي نو دا ښهٔ نهٔ کوي؛ امام نسفي رحمه الله لیکلي دي دَ سورة ابراهیم پهٔ آیت باندې، او پهٔ دې آیت باندې ټول مفسرین دا خبره لیکي. الله تعالیٰ فرمائي:

﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَأُ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ وَالَّذِينَ مِن بَعْدِهِمْ لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ﴾.[1]

"آیا نهٔ دے راغلے تاسو ته خبر دَ هغه کسانو چې ستاسو نه مخوا تیر شوي دي چې قوم دَ نوح عليه السلام دے، عادیان دي او ثمودیان دي او هغه خلق دي چې دَ دوي نه روستو پیدا شوي دي. نهٔ پیژني هغوي لره هیڅ څوک مګر صرف الله ئې پیژني".

نو دې آیت باندې امام نسفي رحمه الله لیکلي دي:

"وَرُوِىَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ عِنْدَ نُزُوْلِ هَذِهِ الْآيَةِ كَذِبَ النَّسَّابُوْنَ".[2]

"او دَ نبي ﷺ نه دا روایت هم نقل دے، چې کله دا آیت نازل شو (هغه دومره خلق دي چې الله ته معلوم دي) نو دَ الله نبي ﷺ به پهٔ دې ځائے کښې فرمائیل: دا نسب والا چې کوم نسبونه بیانوي دا دوي دروغ وائي، چې آدم عليه السلام ته ئې اورَسوي".

## دَ عبد الله بن عباس رضي الله عنه قول

"وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه بَيْنَ عَدْنَانَ وَإِسْمَاعِيْلَ ثَلَاثُوْنَ أَبًا لَّا يَعْرِفُوْنَ".[3]

امام نسفي رحمه الله دا روایت هم نقل کړے وائي چې: "ابن عباس رضي الله عنه وائي: چې دَ عدنان او اسماعیل عليه السلام پهٔ مابین کښې کښې دیرش نیکونه تیر شوي دي چې دوي (نسب بیانوونکي) ئې نهٔ پیژني".

---

(1) [سورة إبراهيم: 9].

(2) انظر: "تفسير النسفي": (146/2).

(3) انظر: "تفسير النسفي": (146/2).

نو دا ډیرش نیکونه هم دَ نبي ﷺ خاندان کښې راځي خو چا ته معلوم نهٔ دي. مخکښې دَ خلویښتو نیکونو پورې ذکر وو، اوس دلته ډیرش راغلل.

**دَ خطیب شربیني رحمه الله قول**

"وَلِذٰلِكَ كَانَ ابْنَ مَسْعُوْدٍ إِذَا قَرَأَ هٰذِهِ الْآيَةَ قَالَ: كَذَبَ النَّسَّابُوْنَ يَعْنِيْ أَنَّهُمْ يَدَّعُوْنَ عِلْمَ الْأَنْسَابِ إِلَى آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ".[1]

خطیب شربیني وائي: "عبد الله بن مسعود رضي الله عنه چې به دا آیت اووئیلو نو وریسې به ئې اووئیل: "كَذَبَ النَّسَّابُوْنَ". ځوک چې آدم ﷺ ته نسبونه رسوي نو دوي دا دروغ وائي"؛ ځکه الله وائي: بل چا ته پته نشته.

**دَ مفسر قرطبي رحمه الله قول**

دارنګې مفسر قرطبي رحمه الله لیکلي دي:

"﴿لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللّٰهُ﴾ أَيْ لَا يُحْصِي عَدَدَهُمْ إِلَّا اللّٰهُ، وَلَا يَعْرِفُ نَسَبَهُمْ إِلَّا اللّٰهُ. وَالنَّسَّابُوْنَ وَإِنْ نَسَبُوْا إِلَى آدَمَ فَلَا يَدَّعُوْنَ إِحْصَاءَ جَمِيعِ الْأُمَمِ، وَإِنَّمَا يَنْسُبُوْنَ الْبَعْضَ، وَيُمْسِكُوْنَ عَنْ نَسَبِ الْبَعْضِ".[2]

"دَ دې آیت مطلب دا دے: چې دَ دې دومره خلقو شمیر او دَ دې دومره خلقو نسب صرف الله ته معلوم دے. او دا کوم خلق چې نسبونه بیانوي نو کهٔ چرته هغوي دَ آدم ﷺ پورې نسب رسَوي نو دوي دَ غونډ امت دَ شمیر دعوٰی نهٔ کوي؛ ځکه چې یقینًا هغوي څهٔ نومونه یاد کړي خو نور ډیر به ترې پاتې هم شي. (ځکه پوره علم خو ورسره نشته دے)".

بیا مفسر قرطبي ډیر تفصیل کړے دے، او دا ئې لیکلي دي: چې ذا نسبونه دَ آدم ﷺ پورې رسول دا خبره دروغ ده.

**دَ مفسر بغوي رحمه الله قول**

دارنګې مفسر بغوي رحمه الله یعني فراء بغوي لیکلي دي: "چې دَ دې پته صرف یَو الله ته ده". بیا

---

(1) انظر: "السراج المنير" للخطيب الشربيني: (172/2).

(2) انظر: "تفسير القرطبي": (344/9).

وائي: عبد الله بن مسعود ﷺ چې به دا آيت اولوستو نو هغهٔ به وئيل:
"كَذَبَ النَّسَّابُونَ".[1]

"نسب والا چې څوک نسبونه بيانوي نو دا دوي دروغ وائي".

اوس واوره! امام رازي هم ليکلي دي، "معالم التنزيل" هم ليکلي دي، "البدايه والنهايه" او مفسر ابن کثير هم ليکلي دي، چې:

"وكَانَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ يَكْرَهُ أَنْ يَنْسِبَ الْإِنْسَانُ نفسه أبا أَبًا إِلَى آدَمَ، وكَذَلِكَ فِي حَقِّ النَّبِيِّ ﷺ لِأَنَّهُ لَا يَعْلَمُ أُولَئِكَ الْآبَاءَ أَحَدٌ إِلَّا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ".[2]

"مالک بن انس ﷺ وو چې هغهٔ به دا خبره ډيره بده ګنړله چې يَو سړي دَ خپل نسب نه شروع اوکړه (چې زهٔ دَ فلانکي ځوي يم او هغهٔ دَ فلانکي ځوي وو، او هغهٔ دَ فلانکي....) ترآدم ﷺ پورې ئې اووائي. او دا خبره به ئې پهٔ حق دَ پيغمبر ﷺ کښې هم بده ګنړه؛ پهٔ دې وجه چې دغه پلاران (نيکونه) سېوا دَ الله نه هيڅ څوک نهٔ پيژني".

نو چا چې به خپل نسب دَ آدم ﷺ پورې رسولو نو دا به هغهٔ بده ګنړله اګر کهٔ دَ پيغمبر ﷺ نسب به ولې نهٔ وو خو هغهٔ به بد ګنړه چې آدم ﷺ پورې اورسولے شي؛ ځکه چې دغه نيکونه او پلاران يَو الله ته معلوم دي بل چا ته نهٔ دي معلوم.

بهر حال دَ نبي ﷺ سلسله نسب دَ عدنان پورې متفقٌ عليه دے.

**دَابن هشام ﷺ قول**

بعضې علماء کرامو ليکلي دي، زهٔ ئې تاسو ته مختصرًا وايم:

ابن هشام ﷺ پهٔ "سيرتِ ابن هشام" کښې ليکلي دي... "الرحيق المختوم" والا بيا دَ دې نه پهٔ بل انداز باندې ليکلي دي: دَ عدنان نه بره زهٔ دَ دوه ويشتم (۲۲) نمبر نيکهٔ نه شروع کوم.

ابن هشام ﷺ ليکي: "عَدْنَانَ بْنِ أُدٍّ وَيُقَالُ أدد، بْنُ مُقَوَّم، بْنِ نَاحُورَ، بْنِ تَيْرَحَ، بْنِ يَعْرُب، بْنِ

---

(1) انظر: "تفسير البغوي": (337/4).

(2) انظر: "معالم التنزيل": (31/3).

يَشْجُب، بْنِ نَابِتِ، بن إسماعيل، بن إبراهيم [خليل الرحمن] ابن تَارِحِ [وَهُوَ آزَرُ] بْنُ نَاحُورَ، بْنِ سَارُوغَ، بن داعو، بْنِ فَالَخِ، بْنِ عَيْبر، بْنِ شالَخِ، بْنِ أَرْفَخْشَذ، بن سام، ابن نوح، بن لمك، بن متوشلخ، بن أخنوخ وَهُوَ إِدْرِيسُ النَّبِيُّ [فِيمَا يَزْعُمُونَ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ. وكَانَ أَوَّلَ بَنِي آدَمَ أُعْطَى النُّبُوَّةَ، وَخَطَّ بالقلم] ابن يرد، بن مهليل، ابن قَيْنَنَ، بْنِ يَانِشَ، بْنِ شِيثِ، بْنِ آدَمَ".(1)

"عدنان ځوي دَ أُدَ، او بعضې وائي: عدنان بن أُدَدْ، هغهٔ ځوي دَ مقوِّم، هغهٔ ځوي دَ ناحور، هغهٔ ځوي دَ تيرَح، هغهٔ ځوي دَ يعرُبْ، هغهٔ ځوي دَ يَشجُبْ، هغهٔ ځوي دَ نابِت، هغهٔ ځوي دَ اسماعيل ﷺ، هغهٔ ځوي دَ ابراهيم ﷺ، هغهٔ ځوي دَ تارِح (چې آزر وو)، هغهٔ ځوي دَ ناحور، هغهٔ ځوي دَ ساروغ، هغهٔ ځوي دَ داعو، هغهٔ ځوي دَ فالخ، هغهٔ ځوي دَ عَيْبَر، هغهٔ ځوي دَ شالَخ، هغهٔ ځوي دَ أَرْفَخْشَذْ، هغهٔ ځوي دَ سام، هغهٔ ځوي دَ نوح ﷺ، هغهٔ ځوي دَ لمک، هغهٔ ځوي دَ متوشلخ، هغهٔ ځوي دَ اخنوخ (او دَ اخنوخ نه مراد ادريس ﷺ دے، دا دَ بعضې علماؤ قول دے، او دا اول پيغمبر وو پهٔ اولاد دَ آدم ﷺ کښې، او دهٔ به پهٔ قلم ليکل کول)، هغهٔ ځوي دَ يَرَدْ، هغهٔ ځوي دَ مهليل، هغهٔ ځوي دَ قينَنْ، هغهٔ ځوي دَ يانش، هغهٔ ځوي دَ شيث ﷺ، هغهٔ ځوي دَ آدم ﷺ".

دا دَ نبي ﷺ سلسله نسب چې دَ آدم ﷺ پورې رسيږي. نو دا تقريبًا يَو کم پنځوس (۴۹) نيکونه شول پهٔ دې طريقه باندې.

او "الرحيق المختوم" والا بيا پهٔ بله طريقه ليکلے دے. خو ما درته اووئيل: چې دَ دې پوره علم يَو الله ته دے؛ پهٔ دې کښې نور محکښې مونږ ځکه نهٔ ځو: چې پته نهٔ لګي کهٔ دَ نبي ﷺ پهٔ نيکونو کښې يَو سړے وي او مونږ ئې پريږدو نو هم ښهٔ خبره نهٔ ده او کهٔ نهٔ وي او مونږ اووايُو: چې دا پکښې وو، نو هم ښهٔ خبره نهٔ ده، نو دَ هغې نه ښهٔ دا ده چې تر عدنان پورې ذکر کړو؛ ځکه چې نبي ﷺ به تردې پورې بيانولو. نو عدنان دا دَ نبي ﷺ يويشتم نمبر (۲۱) نيکهٔ وو. پهٔ دې خاندان کښې چرته کمزورے سړے نهٔ دے راغلے، دارنګې بدنام سړے نهٔ دے راغلے. او ان شاء الله کهٔ بله جمعه راشي او ژوندي وو نو دَ نبي ﷺ دَ مور نسب او بيا دَ نبي ﷺ دَ نيکونو تذکره به هم مختصر انداز کښې کوؤ.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

---

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (6/1).

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

لَقَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولٞ مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ عَزِيزٌ عَلَيۡهِ مَا عَنِتُّمۡ حَرِيصٌ عَلَيۡكُم بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ رَءُوفٞ رَّحِيمٞ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه دويمه

## "فضائل دَ نيكونودَ نبي ﷺ اودَ مورطرف نسب"

بتاريخ: 2021-12-17

مقام: جلسې

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه دويمه

## "فضائل دَ نيكونو دَ نبي ﷺ او دَ مور طرف نسب "

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾.(1)

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړوا دَ رسول الله ﷺ سيرت او دَ هغې بيان شروع وو. اولنۍ خبره مو دا کړې وه: "چې دَ رسول الله ﷺ نسب پهٔ تمامو نسبونو کښې اعلیٰ او اوچت دے". دَ آدم عليه السلام نه واخلې تر دَ محمد رسول الله ﷺ پورې پهٔ دې سلسله کښې پاک خلق او بالکل دَ نکاح والا چې چرته دَ زِنا نه نهٔ وو پيدا، داسې خلق الله رب العزة پهٔ هغې کښې راوستې وو.

**دَ الله دَ نبي ﷺ فرمان**

﴿إِنِّيْ مِنْ نِّكَاحٍ وَلَسْتُ مِنْ سِفَاحٍ﴾.(2)

"زهٔ (يا زما خاندان) دا ټول دَ نکاحونو نه پيدا دي، زهٔ (يا زما خاندان) دا دَ زِنا نه نهٔ دي پيدا شوي".

بيا مونږ پهٔ تيره جُمعه کښې دَ رسول الله ﷺ دَ پلار طرف نسب هغه بيان کړے وو، او مونږ وضاحت کړے وو: چې تر عدنان پورې دا نسب دَ ټولو علماؤ پهٔ نزد متفقٌ عليه دے او امام

(1) [سورة التوبة: 128].

(2) انظر: "تفسير القرطبي": (301/8).

بخاري رحمه الله پهٔ "صحيح البخاري" کښې هم دغه ځائے پورې ذکر کړے دے، بيا هغه مونږ نقل کړے هم وو. بيا دَ عدنان نه روستو تر ابراهيم عليه السلام يا تر اسماعيل عليه السلام پورې او دَ هغهٔ نه بيا تر دَ آدم عليه السلام پورې دا نسب پهٔ دې کښې دَ علماؤ ډير اختلاف دے. نو دَ دې پوره علم هغه صرف يَو الله رب العزة سره دے. دَ هغې مونږ پهٔ تيره جُمعه کښې وضاحت کړے وو.

نن بيان کښې به دا وضاحت اوکړو: "چې دَ نبي ﷺ دَ مور طرف نسب، او بيا دَ نبي ﷺ دَ نيکونو مختصر حالات، کوم نيکونه چې دَ عدنان نه راخکته دي".

**دَ نبي ﷺ دَ مور طرف نه نسب**

دَ نبي ﷺ مور چې وه دَ هغې نوم "آمنه" بي بي وو، دَ هغې دَ پلار نوم دے "وهب"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "عبد مناف"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "زهره"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "کلاب"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "مُرّه"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "کعب"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "لُؤَيّ"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "غالب"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "فهر"، دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "مالک" او دَ هغهٔ دَ پلار نوم دے "نضر".[1]

چونکه مخکښې دَ نبي ﷺ دَ والد صاحب پهٔ نسب کښې چې مونږ ذکر کول نو کلاب پنځم نمبر نيکهٔ دَ نبي ﷺ جوړيدو: "مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ المُطَّلِبِ بْنِ هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافِ بْنِ قُصَيِّ بْنِ كِلَابِ"، دلته دَ مور پهٔ نسب کښې ئې "کلاب" دريم نيکهٔ راځي. نو دَ نبي ﷺ دَ مور او دَ پلار نسب پهٔ دې "کلاب" کښې يَو کيږي، هلته کښې کلاب دَ نبي ﷺ پهٔ نيکونو کښې راتلو او دلته کښې دَ آمنه بي بي پهٔ نيکونو کښې هم دغه کلاب راځي، لکه دې لږ مخکښې دَ آمنه بي بي نسب کښې اوکوره. نو کلاب کښې دَ نبي ﷺ دَ مور او دَ پلار دَ طرف نه دواړه رشتې يَو کيږي. او بره نسب دَ نبي ﷺ دَ مور دَ طرف نه بيا هم هغهٔ دے کوم ئې چې دَ پلار نسب وو.

دَ نبي ﷺ دَ نيکهٔ نوم عبد المطلب دے، نو دَ مور دَ طرف نه ئې دَ نيا (دادي) نوم "برّه" ده. آمنه بنت وهب ده او آمنه بنت برّه ده، بيا دَ برّې نسب:

"بَرَّةَ بِنْتُ عَبْدِ العُزّى بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ الدَّارِ بْنِ قُصي بْنِ كِلَابِ بْنِ مُرَّةَ بْنِ كَعْبِ بْنِ لُؤَيِّ بْنِ

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (100/1).

غَالِبِ بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ".

"أُمُّ بَرَّةَ: أُمُّ حَبِيبٍ بِنْتُ أَسَدِ بْنِ عَبْدِ العُزى بْنِ قُصيّ بْنِ كِلَابِ بْنِ مرة بن كعب بن لؤي بن غالب بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ. وَأُمُّ أُمِّ حَبِيبٍ: بَرَّةُ بِنْتُ عَوْفِ ابْن عُبَيْدِ بْنِ عُوَيْجِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ كَعْبِ بْنِ لُؤَيِّ بْنِ غَالِبِ بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ".

"قَالَ ابْنُ هِشَامٍ: فَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْرَفُ وُلْدِ آدَمَ حَسَبًا، وَأَفْضَلُهُمْ نَسَبًا مِنْ قِبَلِ أَبِيه وَأمه صلى الله عَلَيْهِ وَسلم".

"ابن هشام وائي: نو رسول الله ﷺ په اولاد دَ آدم عليه السلام کښې ډير زيات دَ شرافت خاوند دے په اعتبار دَ حسب سره او ډير زيات غوره دے په اعتبار دَ نسب سره دَ پلار دَ طرف نه هم او دَ مور دَ طرف نه هم".

نو دَ نبي ﷺ دَ پلار دَ طرف نه نسب او دَ مور دَ طرف نه نسب دواړه ښۀ اعلیٰ، اوچت او بهترين نسب دے. دَ نبي ﷺ دَ پلار نوم عبد الله وو، او دَ مور نوم ئې آمنه وو. او دَ عبد الله دَ پلار نوم عبد المطلب وو، او دَ آمنه دَ پلار نوم وهب وو.

### دَ نبي ﷺ دَ نيکونو مختصر حالات

دَ نبي ﷺ نيکونه تر عدنان پورې امام بخاري رحمه الله نقل کړي وو.

### دَ عدنان حالت

دا عدنان دَ نبي ﷺ شلم نيکۀ وو. اوس دَ دوي څۀ مختصر حالات ذکر کوو:

### دَ علامه ابن حجر رحمه الله قول

علامه ابن حجر رحمه الله په "فتح الباري" کښې ليکلي دي:

"وَقَدْ رَوَى أَبُو جَعْفَرِ بْنُ حَبِيبٍ فِي تَارِيخه المحبر من حَدِيث بن عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ عَدْنَانُ وَمَعَدٌّ وَرَبِيعَةُ وَمُضَرُ وَخُزَيْمَةُ وَأَسَدٌ عَلَى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ فَلَا تَذْكُرُوهُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ".[1]

امام ابن حجر رحمه الله وائي: "ابو جعفر بن حبيب په خپل تاريخ "المحبر" کښې دَ عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه نقل کړي دي: چې ابن عباس رضي الله عنه وائي: عدنان، معدّ، ربيعه، مضر، خزيمه او اسد چې وو نو دا ټول دَ ابراهيم عليه السلام په دين او دَ هغۀ په شريعت وو؛ نو دَ دوي تذکره به نۀ کوئ مګر په خير باندې".

(1) انظر: "فتح الباري" لابن الحجر: (164/7).

مطلب دَ تذکرې دَ خير دا دے: چې دوي ته کافران نۀ شئ وئيلے؛ ځکه دا پۀ ملت ابراهيمي باندې وو.

**دَ زبير بن بكّار رحمه الله قول**

زبير بن بكّار رحمه الله پۀ بله طريقه باندې نقل کړي دي، ابن حجر رحمه الله دَ هغۀ نه مرفوع روايت نقل کوي، وائي:

«لَاتَسُبُّوْا مُضَرَ وَلَا رَبِيْعَةَ فَإِنَّهُمَا كَانَا مُسْلِمَيْنِ».[1]

"مضر او ربيعه ته کنځل مۀ کوئ، دوي ته ردې بدې مۀ وايئ؛ ځکه چې دا دواړه مسلمانان وو".

دوي پۀ ملّت ابراهيمي باندې تير شوي دي، دوي ډير اوچت سړي وو.

**دَ معد حالت**

دا دَ عدنان ځوي وو. علماؤ ليکلي دي: "مُعَدّ" دا دَ عدد نه مشتق دے، او بعضې علماء وائي: دا مشتق دے دَ "مُعَد في الأرض" نه، او يا دَ "مُعِد في الأرض" نه. "چې زمکه کښې فساد کوي". نو دۀ فساد نۀ کولو خو دۀ به مفسدين ختمول. دا ډير يَو بهادر انسان وو، او جنګجو انسان وو، بني اسرائيلو سره ئې ډير جنګونه کړي دي او اکثر ورته الله تعالیٰ فتحې هم ورکړي دي. دَ دۀ کنيه وه: "ابو نزار".[2]

**دَ امام ابو جعفر الطبري رحمه الله قول**

امام ابو جعفر طبري رحمه الله ذکر کړي دي: چې معد بن عدنان دا دَ بخت نصر پۀ زمانه کښې وو، او هغه وخت کښې دے دَ دولسو کالو پۀ عمر کښې وو. هغه زمانه کښې يَو پيغمبر دے: "ارمياء بن حلقيا عليه السلام"، وائي: هغۀ ته الله تعالیٰ دا وحي کړې وه: چې بخت نصر ته اووايه: چې ما تۀ پۀ کافرانو مسلط کړے ئې، پۀ عربو مې مسلط کړے ئې؛ ځکه چې دوي زما دَ احکاماتو خلاف کوي نو تۀ مې پرې مسلط کړې. خو پۀ دوي کښې يَو سړے دے چې هغۀ ته به تکليف نۀ رسوې. او هغې نبي ته الله وحي اوکړه چې دے به تۀ دَ ځان سره بوځې. هغه سړے معد وو؛ دَ

---

[1] انظر: "فتح الباري" لابن الحجر: (164/7).

[2] انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (79/1).

دې وجې نه چې هغهٔ له تکليف اونهٔ رسي. ولې؟ ځکه:

"فَإِنِّي مُسْتَخْرِجٌ مِنْ صُلْبِهِ نَبِيًّا كَرِيمًا أَخْتِمُ بِهِ الرُّسُلَ".(1)

وائي: "الله هغه نبي ته وحي کړې وه چې دا معد ځان سره بوځه او دَ دهٔ خيال ساته؛ ځکه چې دَ دهٔ په نسب کښې به زهٔ يَو نبي پيدا کوم، يَو کريم او عزتمند نبي به وي او دَ هغهٔ پهٔ وجه به زهٔ پيغمبران ختم کړم. دَ هغې نه پس به بيا پيغمبران نهٔ راځي، آخري نبي به دَ دهٔ پهٔ اولاد کښې راځي".

بيا وائي: "فَفَعَلَ أَرْمِيَا ذَلِكَ وَاحْتَمَلَ مَعَدًّا عَلَى الْبُرَاقِ إِلَى أَرْضِ الشَّامِ فَنَشَأَ مَعَ بَنِي إِسْرَائِيلَ".(2)

"ارميا عليه السلام دا معد بن عدنان ځان سره پهٔ بُراق باندې سور کړو او ځان سره ئې شام ته بوتلے وو، دے پهٔ شام کښې پاتې شوے وو، هلته پهٔ بني اسرائيلو کښې دے ډير زيات مشهور شوے وو".

وائي: دَ دهٔ دَ وجې نه علماء دَ بني اسرائيلو دَ دهٔ پهٔ نسب باندې ځکه ډير پوهيږي، چې دے دَ هغوي سره پاتې شوے وو.

**دَ نزار حالت**

بل نيکهٔ دَ نبي ﷺ "نزار" وو. نزار مشتق دے دَ "نزر" نه او نزر پهٔ معنٰی دَ قليل (کم) باندې راځي.

ابو فرج اصفهاني رحمه الله فرمائي:

"أَبُو الْفَرَجِ الْأَصْبَهَانِيُّ سُمِّيَ بِذَلِكَ لِأَنَّهُ كَانَ فَرِيْدُ عَصْرِهِ".(3)

"نزار ته نزار ځکه وائي: چې دے پهٔ خپله زمانه کښې يکتا وو".

يَو تن وو، دَ دهٔ نور رونړه نهٔ وو. او يا دا وه چې: دے پهٔ خپلو همزولو کښې يکتا وو. معنٰی بے مثاله وو، دَ دهٔ سره څوک پهٔ يَو صفت کښې هم برابريدے نهٔ شو. ځکه ئې دهٔ ته نزار وئيلو.

**دَ علامه سهيلي رحمه الله قول**

علامه سهيلي رحمه الله ليکلي دي: چې نزار کله پيدا شو، دَ هغهٔ پهٔ تندي کښې دَ رسول الله ﷺ دا نور چمکيدو. دَ نبوّت هغه رنړا دَ هغهٔ پهٔ تندي کښې چمکيده. او دَ نزار پلار دَ نزار پهٔ پيدائش باندې

(1) انظر: "البداية والنهاية": (194/2).

(2) انظر: "البداية والنهاية": (194/2).

(3) انظر: "روض الأنف" للسهيلي: (8/1).

ډير زيات خوشحاله شوے وو. او چې کله دے پيدا شو نو خلقو له ئې دعوت ورکړو، او چې کله خلقو ډوډۍ اوخوړه نو هغهٔ خلقو ته وائي:

"هٰذَا كُلُّهٗ نَزْرٌ لِحَقِّ هٰذَا الْمَوْلُوْدِ".(1)

وائي: اے خلقو! دا ما چې څومره دعوت کړے دے، "دا دَ دې بچي پهٔ مقابله کښې ډير کم دے". الله تعالىٰ ما له داسې يَو بچے راکړے دے چې دا ټول دعوت دَ دهٔ مقابله کښې هيڅ خيز نهٔ دے. اګر چې ډير تکلّف ئې کړے وو. علماء وائي: دَ دې وجې نه ئې دهٔ ته نزار نوم کيخودو. بيا به ورته خلقو نزار وئيلو.

"تاريخ الخميس" ليکي: چې دا نزار چې وو:

"إِنَّهٗ خَرَجَ أَجْمَلَ أَهْلِ زَمَانِهٖ وَأَكْبَرَهُمْ عَقْلاً".(2)

"دے دَ خپلې زمانې پهٔ ټولو خلقو کښې ښائسته انسان وو او پهٔ ټولو کښې دَ عقل پهٔ اعتبار ډير اوچت سړے وو".

نو يَو معنىٰ دَ نزار شوه: چې دَ دهٔ مثل به ډير کم ميلاويدو.

او يا دَ "نزار" معنىٰ "نحيف" هم راځي. معنىٰ: تپ، چې دَ بدن نه کمزورے وي. دا نزار هم دَ بدن نه کمزورے وو. نو ځکه ورته نزار وئيلے کيږي.(3)

## دَ مضر حالت

بل نيکهٔ دَ نبي ﷺ مُضَر وو. دَ دهٔ خپل نوم عَمرو دے، او کنيت ئې ابو الياس دے، او دَ دهٔ لقب مُضر وو. دهٔ ته ئې مضر ولې وئيلو؟ دا دَ "ماضِر" نه مشتق دے، نو دهٔ ته ئې مضر ځکه وئيلو؛ چې دَ ماضر معنىٰ ده: "تُرش". او دَ دهٔ به هم تُرش او غوړ اشياء ډير خوښ وو. نو پهٔ هغې باندې دے مشهور شوے پهٔ مُضر باندې. او بعضې علماء وائي: چې دهٔ به پيۍ او ماستهٔ ډير خښکل کوم چې به تُرش غوندې وو. نو ځکه ورته مضر وائي.(4)

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (164/7).
(2) انظر: "تاريخ الخميس": (167/1).
(3) انظر: "سيرة المصطفى" لمحمد ادريس كاندهلوي ؒ: (38/1).
(4) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (79/1).

يا مُضر ورته ځکه وائي؛ چې دَ مضر معنٰی ده: "ښائسته"، دے ډير ښائسته وو، دَ ډير خائست دَ وجې نه به دهٔ ته مضر وئيلے کيدو.

يا دَ مضر معنٰی ده: "ضرر رسونکے". نو دهٔ ته به ئې مضر ځکه وئيلو چې:

"وَقِيْلَ لِأَنَّهٗ كَانَ يَمْرِضُ الْقُلُوْبَ لِحُسْنِهٖ وَجَمَالِهٖ".[1]

"دا مضر دومره ښائسته وو، چې يَو سړي به اوليدو نو هغه به بيا بيمار شو".

او دا مضر ډير اوښيار انسان وو، يَو لوئې حکيم او دانا سړے وو. دهٔ به ډيرې دَ کمال خبرې کولې. خلقو به دَ دهٔ خبرې پهٔ متلونو کښې پيش کولې. دهٔ به وئيل:

"وَمَنْ يَزْرَعْ شَرًّا يُحْصِدُ نَدَامَةً".[2]

"کوم سړے چې پهٔ خلقو کښې شر کري او شر خوَرېٔ نو دا سړے به دَ ښپيمانتيا لَوْ کوي".

چې دَ شر کارونه کوي نو آخر کښې به ستومانه وي. ښهٔ څيز سړے اوکري نو ښهٔ څيز ورته ميلاؤ شي او چې بد اوکري نو بد ورته ميلاؤ شي. چې شر کري نو نقصان به درته رسي.

او کله به دې مضر خلقو ته وئيل:

"وَخَيْرُ الْخَيْرِ أَعْجَلُهٗ، فَاحْمِلُوْا أَنْفُسَكُمْ عَلٰى مَكْرُوْهِهَا، وَاصْرِفُوْهَا عَنْ هَوَاهَا فِيْمَا أَفْسَدَهَا".

"غوره خير هغه وي چې ډير زر وي، نو اے خلقو! دا نفسونه پهٔ هغه څيز باندې باعث کرېٔ چې کوم دې ته بد لګي، او دا نفسونه دَ خواهشاتو نه وارَوېٔ پهٔ کومو خواهشاتو سره چې دا نفس هلاکيږي".

نو نفس دې پهٔ هغه امورو کښې اخته کره چې دې ته بد لګي، چې يَو کار نهٔ شي کولے او دَ هغې پهٔ کولو کښې خير وي نو پهٔ زوره ئې پرې کوېٔ او دَ خپلو خواهشاتو نه ئې واړوېٔ. نفس دَ ځان تابع کره، تهٔ دَ نفس مهٔ تابع کيږه. نفس به درته وائي: چې آرام اوکره خو تهٔ به دَ دين خدمت کوې، دَ نفس او دَ خواهش خلاف به کوې؛ ځکه بيا وريسې مضر وائي:

"فَلَيْسَ بَيْنَ الصَّلَاحِ وَالْفَسَادِ إِلَّا الصَّبْرُ".[3]

---

(1) انظر: "فتح الباري" لابن الحجر، طبع: المكتبة الرشيدية سركي روډ، كوئته: (43/7).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (79/1).

(3) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (79/1).

"نشته دے حدِّ فاصل دَ فساد او دَ صلاحیت پهٔ مینځ کښې مګر صرف صبر دے".

او دا مضر هم مسلمان تیر شوے دے. مخکښې تیر شول چې معد، عدنان، ربیعه، او مضر او خزیمه او اسد دا ټول پهٔ ملت ابراهیمي باندې وو. نو دوي مسلمانان تیر شوي دي.

**دَ الیاس حالت**

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ الیاس دے. دا اولنے هغه سړے دے چې حرم له قرباني او هدیه دهٔ زالیږلې وه.

علماؤ لیکلي دي: "چې الیاس به دَ خپلې شاه نه دَ نبي ﷺ دَ تلبیې آواز اوریدو".[1]

دَ الله نبي ﷺ خو لا دنیا ته نهٔ وو راغلے خو دَ هغهٔ نطفه چې کومه دَ الیاس پهٔ شاه کښې وه دَ هغې نه ئې دَ تلبیه آواز اوریدلے وو. دا دومره اوچت سړے وو.

**دَ مدرکه حالت**

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ مدرکه وو. جمهور علماء وائي: چې دَ دهٔ خپل نوم عَمرو وو. محمد بن اسحاق وائي: دَ دهٔ نوم عامر وو. مدرکه دَ دهٔ لقب وو. دهٔ ته مدرکه ولې وائي؟ مدرکه دا دَ "دراک" نه مشتق دے. دراک راګیرَولو ته وائي. نو دهٔ ته مدرکه ځکه وائي: چې هر قسم عزت، رفعت او ښهٔ خویونه هغهٔ ټول دهٔ راجمع کړي وو.[2]

**دَ خزیمه حالت**

دا دَ نبي ﷺ بل نیکهٔ دے. عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائي: چې دے هم پهٔ ملت ابراهیمي باندې وو، او دَ ښهٔ اخلاقو والا انسان وو.

**دَ کنانه حالت**

دا دَ نبي ﷺ دَ بل نیکهٔ نوم دے. دا پهٔ عربو کښې جلیل القدر سړے حسابیدو. او دَ دهٔ علم او فضیلت هم ډیر اوچت دے پهٔ خلقو کښې. وائي: دَ دهٔ دپاره به خلق دَ لرې لرې ځائے نه ملاقات دپاره راتلل؛ ځکه دے پهٔ دې صفاتو کښې ډیر مشهور وو.

---

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر، في باب المناقب: (384/6)، و"سيرة المصطفى": (39/1).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (125/5).

### دَ نضر حالت

بل نيکهٔ دَ نبي ﷺ: دَ هغهٔ نوم نضر دے. نضر دَ نضارة نه مشتق دے. رونق او تر وتازګۍ ته وائي. دے هم ډير حسين او جميل وو او ډير تر وتازه وو. علماؤ ليکلي دي: چې دَ دهٔ اصل نوم قيس دے. خو نضر به ئې ورته دَ دې وجې نه وئيلو چې دے ډير ښائسته وو.[1]

### دَ مالک حالت

دا مالک دَ نبي ﷺ بل نيکهٔ دے. دَ دهٔ کنيت وو: ابو الحارث. دا هم دَ عربو يَو لوئي سردار وو، اوچت انسان وو پهٔ عربو کښې. دَ دهٔ دَ نسل نه چې کوم خلق پيدا دي هغوي ته قريش وائي. او څوک ورته کناني وائي؛ ځکه دے دَ کنانه پهٔ اولاد کښې وو. قريش دا دَ نضر بن کنانه اولاد وو. دَ دې وجې نه علماؤ ليکلي دي:

حافظ عراقي رحمه الله وائي:

أَمَّا قُرَيْشٌ فَالْأَصَحُّ فِهْرٌ جُمَّاعُهَا وَالْأَكْثَرُوْنَ النَّضْرُ[2]

وائي: "قريش چې دي نو صحيح خبره دا ده: چې دا فهر جمع کړي دي، يعني دا دَ فهر اولاد دے. او اکثر پکښې دا وائي: چې دا دَ نضر اولاد دے خو دا دَ فهر اولاد دے".

دَ دې وجې نه بعضې روايات دَ امام شافعي رحمه الله نه نقل دي، چې هغه وائي: قريش دَ نضر بن کنانه اولاد ته وائي. او بعضې حفاظ وائي: چې دَ فهر دَ پلار نوم مالک دے. نو دَ دې وجې نه قريش دَ فهر اولاد دے، دَ بل چا نهٔ دے.

### دَ قريشو وجه تسميه

دَ قريش معنٰی څهٔ ده؟ نو علماؤ ليکلي دي: چې قريش يَو بحري ځناور ته وائي. دا پهٔ دې سمندر کښې يَو ځناور دے، يَو حيوان دے. او دا دومره تکړه ځناور دے چې پهٔ ټولو ځناورو هغه زورَور دے، نور ځناور خوري خو بل ځناور پهٔ هغهٔ زورَور نشته چې هغه اوخوري. نو هغه ځناور ډير بهادر وو، قريش به ئې ورته وئيلو؛ نو دې قريشو ته قريش پهٔ دې وجه وائي: چې دا هم

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (78/1).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب" للزرقاني: (144/1).

ډیر بهادر خلق وو، او دوي باندې به څوک غالب کیدے نۀ شو، بلکه دا به پۀ نورو خلقو باندې غالب وو. نو ځکه ورته قریش وائي.[1]

**د ابن نجار رحمه الله قول**

ابن نجار رحمه الله پۀ خپل تاریخ کښې لیکلي دي: چې یَو ځل سیدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنه دَ سیدنا معاویه رضي الله عنه خواته لاړو نو هلته عَمرو بن العاص رضي الله عنه هم موجود وو. نو عَمرو بن العاص رضي الله عنه عبد الله بن عباس رضي الله عنه ته وائي: دا قریش دا کمان کوي چې تۀ پۀ قریشو کښې ډیر لوئي عالم ئې نو آسان غوندې تپوس درنه کوم: چې دې قریشو ته قریش ولې وائي؟ عبد الله بن عباس رضي الله عنه ورته اوفرمائیل: چې دې قریشو ته قریش ځکه وائي: چې قریش یَو بحري ځناور دے او ټول ځناور پۀ دۀ باندې کمزوري دي، او دے پۀ هغوي ټولو باندې زورَور دے نو قریش هم پۀ نورو خلقو باندې زورَور وو، تکړه وو، جنګجو خلق وو نو ځکه ورته قریش وائي.

نو عَمرو بن العاص رضي الله عنه عبد الله بن عباس رضي الله عنه ته وائي: چې دَ دوي پۀ باره کښې دَ عربو کوم شعر درته یاد دے؟ عبد الله بن عباس رضي الله عنه خو ډیر لوئي عالم وو، هغۀ ورته ولئي: آوا شمرخ بن عمرو حمیري هغۀ دا شعرونه دَ قریشو پۀ باره کښې وئیلي دي:

وَقُرَيْشٌ هِيَ الَّتِي تَسْكُنُ الْبَحْرَ ... بِهَا سُمِّيَتْ قُرَيْشٌ قُرَيْشَا

وائي: "قریش دا هغه ځناور دے چې سمندر کښې اوسیږي؛ نو پۀ دغه وجه قریشو ته قریش نوم کیخودلے شوے دے".

تَأْكُلُ الْغَثَّ وَالسَّمِينَ وَلَا تَتْرُكُ ... فِيْهِ لِذِيْ جَنَاحَيْنِ رِيْشَا

"دا هغه ځناور دے چې دے سُرُب او ټپ ټول ځناور خوري، او یَو دَ وزر والا ته وزر نۀ پریږدي".

هٰكَذَا فِي الْبِلَادِ حَيُّ قُرَيْشٍ ... يَأْكُلُونَ الْبِلَادَ أَكْلًا كَمِيشَا

"دارنګې پۀ ښارونو کښې قبیله دَ قریش ده چې هغه خوري ښارونه پۀ خوړلو دَ جلدئ سره".

ښارونه څنګه خوري؟ نو مطلب دا دے: چې غالب کیږي پۀ ښارونو کښې پۀ خلقو

(1) انظر: "سیرة المصطفی": (40/1).

باندې. او زر زر پرې غالب کيږي.

وَلَهُمْ آخِرُ الزَّمَانِ نَبِيٌّ يُكْثِرُ الْقَتْلَ فِيهِمْ وَالْخُمُوشَا[1]

"په آخره زمانه کښې به دَ دوي يَو نبي وي چې هغه به قتل هم ډير کوي (کافران به وژني) او زخمي کول به هم ډير کوي".

نو قريشو ته قريش هم ځکه وائي: چې دوي په خلقو باندې غالب وو.

## دَ کعب حالت

بل نيکهٔ دَ نبي ﷺ کعب دے. کعب دا هغه سړے دے: چې په ابتداء کښې چا جُمعه نهٔ پيژنده، دهٔ به دَ جُمعې په ورځ خلق راجمع کول او هغوي ته به ئې باقاعده خطبه وئيله، دَ الله حمد او ثناء به ئې وئيله او بيا به ئې خلقو له ترغيب ورکولو، مسائل به ئې بيانول. او خلقو ته به ئې يَو خبره کوله: چې خلقوا زهٔ به نهٔ يم خو زما په اولاد کښې به الله يَو نبي پيدا کوي او هغه به بيا خلقو ته مسئلې کوي. او کله کله به ئې دا شعر وئيلو:

يَا لَيْتَنِيْ شَاهِدٌ فَحْوَاءَ دَعْوَتِهِ إِذَا قُرَيْشٌ تَبْغِي الْحَقَّ خُذْلَانَا[2]

"کاش چې زهٔ موجود وے په هغه وخت کښې چې کله زما هغې نوسې خلقو له دعوت ورکولے. او کوم وخت کښې چې قريش طلب کوي حق لره پرېښودل".

مطلب دا دے: چې کاش چې زهٔ موجود وے په کوم وخت کښې چې پيغمبر دعوت ورکولے خلقو ته او کله چې قريش دَ هغهٔ نه اوړي او دَ هغهٔ خلاف کوي، دَ هغهٔ سره ملګرتيا نهٔ کوي، دَ هغهٔ سره مدد کول پرېږدي نو کاش چې ما دَ هغه خپل نوَسي مرسته کوله او ما دَ هغهٔ ملګرتيا کولها خو افسوس چې زهٔ به دغه وخت نهٔ يم.

نو دې کعب به خلق دَ جُمعې په ورځ راغوندول او خلقو ته به ئې ترغيبات ورکول. ابن کثير رحمه الله په "البدايه والنهايه": (٢/٢٤٤) کښې دَ هغهٔ بعضې خطبې رانقل کړي دي.

---

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (534/6)، و"شرح زرقاني على المواهب" للزرقاني: (144/1).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب" للزرقاني: (143/1).

## دَ مُرّه حالت

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ: دَ هغهٔ نوم مُرّه وو. مُرّه دَ مرارت نه ماخوذ دے. مرارت تریخ والي ته وئیلے کیږي. نو دے هم پهٔ عربو کښې پهٔ خپلو دشمنانو باندې ډیر تریخ سړے وو، دهٔ به دشمن ته کمه خبره نهٔ کوله؛ ځکه به ئې دهٔ ته مُرّه وئیلو.[1]

## دَ کلاب حالت

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ: دَ هغهٔ نوم کلاب وو. کلاب دا دَ کلب جمع ده، کلب سپي ته وائي. وائي: دهٔ ته کلاب ولې وائي؟ دهٔ به دَ ښکار سپي ډیر ساتل، دَ ښکاري سپو ډیر شوقي وو. او چې کوم خوا به سپے روان وو نو خلقو به وئیل:

"هَذِهِ كِلَابُ ابْنِ مُرَّةَ".[2] "دا دَ ابن مره سپے دے".

نو دهٔ به ښکاري سپي ساتل پهٔ دې وجه بیا دے پهٔ کلاب باندې مشهور شو، کني دَ دهٔ خپل نوم علماء وائي: مهذّب دے. او څوک وائي: دَ دهٔ خپل نوم عُروه دے. او څوک وائي: خپل نوم ئې حکیم دے.

## دَ قصئ حالت

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ هغه قصئ دے. دَ قصئ معنٰی ده: لرې. دا پهٔ معنٰی دَ بَعُدَ دے. دهٔ ته قُصئ ولې وائي؟؛ ځکه چې دے دَ خپلو خلقو نه لرې اوسیدو. او بیا دا ټول خپل خلق دهٔ راغونډ کړي دي. دے هم یَو ډیر اوښیار سړے تیر شوے دے. خپل اولاد ته به ئې نصیحت کولو، او خپلو بچو ته به ئې وئیل:

"اِجْتَنِبُوْا الْخَمْرَةَ فَإِنَّهَا تُصْلِحُ الْأَبْدَانَ وَتُفْسِدُ الْأَذْهَانَ".[3]

هغې وخت کښې چې شراب لا نهٔ وو حرام شوي نو دهٔ به خپلو بچو ته وئیل: "شرابو نه ځان ساتئ (شراب مهٔ څښکئ)؛ دا کورے دَ انسان بدن تکړه کوي خو دَ انسان ذهن ختموي".

شراب دَ انسان ذهن خرابوي. دا ډیر اوښیار سړے وو.

---

(1) انظر: "شرح زرقاني على المواهب" للزرقاني: (1442/1).

(2) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (163/7).

(3) انظر: "طبقات ابن سعد": (66/1).

## دَ عبد مناف حالت

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ عبد مناف وو. دَ عبد مناف خپل نوم مغیره وو. دا هم ډیر حسین وجمیل انسان وو. عبد مناف ته به ئې "قمر البطحاء" وئیلو. دا یَو ډیر ښائسته انسان وو، دې مخ به ئې سم چمک وهلو. او بطحاء دَ عربو کارږني زمکې ته وائي. "قَمَرُ الْبَطْحَاءِ" یعني "دَ کارږني زمکې سپوږمئ".

او بیا "شرح المواهب" لیکلي دي: "وَيُدْعَى الْقَمَرُ لِجَمَالِه".[1]

"دَ ډیر خائست دَ وجې نه به ورته سپوږمئ وئیلے کیده".

دا ډیر اوښیار انسان وو. موسیٰ بن عقبه وائي: چې یَو ځل ما دَ دهٔ یَو خط اولیدو، چې یَو کاڼري باندې ئې پاخهٔ لیکل کړي وو. او هغه مضمون دَ خط دا وو:

"أَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ قُصَيّ آمُرُ بِتَقْوَى اللهِ وَصِلَةِ الرَّحِمِ".[2]

دَ دهٔ خپل نوم مغیره وو، وائي: "زهٔ مغیره ځوي دَ قُصئ یم او زهٔ خلقو ته وایم چې دَ الله نه دې ویره کوي او خپله خپلوَلي دې پالي (خپلوَلي دې نهٔ کټ کوي)".

## دَهاشم حالت

بل نیکهٔ دَ نبي ﷺ هاشم وو. دا هم ډیر اوچت سړے تیر شوے دے. دَ دهٔ خپل نوم عَمرو دے. او دهٔ ته دا هاشم ولې وائي؟ نو "هشم" ماتولو ته وائي، نو دَ دهٔ باره کښې راځي، چې:

"لِأَنَّهُ كَانَ يَهْشِمُ الثَّرِيْدَ لِقَوْمِهِ فِي الْجَدْبِ".[3]

"ځکه چې دهٔ به دَ خپل قوم خلقو ته دَ غوښې پهٔ شوربا کښې ډوډئ ماتوله پهٔ زمانه دَ قحط سالئ کښې".

قحط راغلے وو، چا به اوچه ډوډئ نهٔ موندله. او دا دومره سخي انسان وو: چې میلمانهٔ به ئې راوستل او دَ خپل قوم خلق به ئې هم راوستل او هغوي له به ئې دَ قحط سالئ پهٔ زمانه کښې چوري ګاني کولې. پهٔ لوښي کښې به ئې ورته ډوډئ ماته کړه او هغوي ته به ئې اووئیل: چې خورئ!. دَ

(1) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (73/1).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (73/1).

(3) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (73/1).

قحط سالئ په دوران کښې به دۀ خلقو ته خوراکونه ورکول؛ دَ دې وجې نه يَو شاعر وائي:

عَمْرُو الْعُلَا هَشَمَ الثَّرِيْدَ لِقَوْمِهِ وَرِجَالُ مَكَّةَ مُسْنِتُوْنَ عِجَافٌ[1]

"عَمرو العُلا (هاشم) دا هغه سړے دے چې دۀ خپل قوم له ډوډئ چوري کړې وه او داسې زمانه وه چې دَ مکې خلق قحط وهلي وُو (او تول تپ شوي او خراب شوي وو)".

نو هاشم ته په دغه وجه باندې هاشم وائي. او دا هاشم چې دے، "أَفْخَرُ قَوْمِهِ" دے. په خپل قوم کښې ډير دَ فخر والا سړے وو. خلقو به په دۀ باندې فخر کولو. او په ټولو خلقو کښې اوچت سړے وو. او هر وخت به دَ دۀ په حُجره کښې درستخوان خور وو، او ميلمانۀ به راتلل او بے تپوسه خوراک به ئې کولو. داسې سخيان خلق دَ نبي ﷺ نيکونو کښې تير شوي وو.

دا هغه سړے وو چې په هغې زمانه کښې دَ روم بادشاه وو "هرقل". دې بادشاه دۀ پسې سؤال جواب راليږلے وو: چې کۀ ستا خوښه وي نو زۀ تاله خپله لور په نکاح باندې درکوم. خو دۀ انکار اوکړو. ولې؟ وائي: دومره ښائسته انسان ما چرته نۀ دے ليدلے.[2]

**دَعبدالمطلب حالت**

بل نيکۀ دَ نبي ﷺ عبد المطلب وو. عبد المطلب دَ نبي ﷺ نزدې نيکۀ دے. دَ پلار پلار ئې وو. عبد المطلب هم يَو ډير ښائسته انسان وو. مستجاب الدعوة وو. او "مُحَرِّمُ خَمْرٍ عَلَى نَفْسِهِ" وو. دۀ به چې کومه دعاء دَ الله تعالى نه غوښتله نو هغه به الله تعالى قبلوله. او دا هغه سړے وو چې شراب ئې په ځان باندې حرام کړي وو. اګر چې دَ شرابو حرمت روستو راغلے وو خو دۀ به دَ اول نه نۀ څښکل.

**دَابن الاثير رحمه الله قول**

ابن الاثير رحمه الله ليکلي دي:

"وَهُوَ أَوَّلُ مَنْ تَحَنَّثَ بِحِرَاءَ كَانَ إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ صَعِدَهُ وَأَطْعَمَ الْمَسَاكِيْنَ".[3]

"دا اولنے هغه سړے وو چې په غارِ حراء کښې (کوم ځائے کښې چې نبي ﷺ باندې وحي

---

(1) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (73/1).

(2) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (72/1).

(3) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (72/1).

راغلي وه) به ئې پۀ طريقه دَ ملت ابراهيمي دَ الله عبادت كولو. او چې كله به دَ رمضان مياشت راغله نو غارِ حراء ته به اوختو او ټول رمضان به ئې دَ الله تعالیٰ عبادت كولو. او پۀ ټول رمضان كښې به ئې دَ غريبانانو دَ خوراک انتظام كولو". داسې يَو عبادت ګُزار او سخي سړے وو.

او قتيبه ﷫ وائي: "كَانَ يُرْفَعُ مِنْ مَّائِدَتِه لِلطَّيْرِ، وَالْوُحُوْشِ فِيْ رُءُوْسِ الْجِبَالِ، فَكَانَ يُقَالُ لَهٗ: الْفَيَّاضُ؛ لِجَوْدِهِ وَمُطْعِمِ طَيْرِ السَّمَاءِ؛ لِأَنَّهٗ كَانَ يُرْفَعُ مِنْ مَّائِدَتِه لِلطَّيْرِ".(1)

"دَ عبد المطلب دَ درستخوان نه به دَ مارغانو دپاره هم ډوډئ اوچتيده او دَ نورو ځناورو دپاره به هم چې كوم به دَ غرونو پۀ سر كښې وو. او دے وو چې دۀ ته به "فياض" (معنى ډير خير خوَرَونكے) به ورته وئيلے كيدو؛ دَ وجې دَ سخاء دَ دۀ نه او دَ دې وجې نه چې دے وو چې مارغانو ته به ئې خوراک وركولو؛ دغه وجه وه چې دَ دۀ دَ درستخوان نه به مارغانو هم ډوډئ خوړله".

نو عبد المطلب داسې يَو شخصيت وو: چې انسان څۀ كوې بلكه دَ آسمان مارغان به هم دَ دۀ پۀ كور كښې مړيدل داسې يَو انسان وو.

وائي: دۀ به مارغانو ته درستخوان خور كړو او چې هغوي به ښومره خوراک كولو نو هغه به ئې ورته واچولو.

**دَ عبد المطلب نوم**

او دَ دۀ نوم "شيبة الحمد" دے. دا شيبه ورته ولې وائي؟ نو يا دَ دې وجې نه چې دے ډير ښائسته وو. لكه يَو شاعر وائي:

عَلٰى شَيْبَةِ الْحَمْدِ الَّذِيْ كَانَ وَجْهُهٗ ... يُضِيْءُ ظِلَامَ اللَّيْلِ كَالْقَمَرِ الْبَدْرِيْ

"هغه شيبة الحمد چې دَ هغۀ دا مخ داسې ځمكيدو چې دَ شپې تيَرې پرې ختميدې (تيَرې به ئې رڼرا كولې) لكه دَ څوارلسمې سپوږمۍ باندې چې تيَرې ختميږي".

**(١) نو يَو معنىٰ دَ شيبه:** شيبه ورته ځكه وائي: چې دے ډير ښائسته وو.

**(٢) دويمه معنى:** يا ورته شيبه پۀ دې وجه وائي: چې دے پيدا شو نو دَ دۀ پۀ سر لړ غوندې

---

(1) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (72/1).

سپين ويښتهٔ وو.

**(۳) دريمه معنى:** يا دا دَ هغهٔ يَو قسم صفت دے، او پهٔ هغهٔ باندې زيرے دے چې دے به بوډاوالي پورې ژوندے وي.

**دهٔ ته عبد المطلب ولې وائي؟**

دَ دهٔ خو خپل نوم شيبة الحمد دے نو دا عبد المطلب ورته ولې وائي؟

علماء وائي: عبد المطلب ورته ځکه وائي: چې دا مطّلِب دَ دهٔ ترهٔ وو. دَ عبد مطلب ماماګان پهٔ مدينه کښې وو. او دَ دهٔ پلار وفات شوے وو. او وصيت ئې دا کړے وو: چې زما دا ځوي به کلي ته بوځئ نو مطلب وريسې مدينې ته لاړے او دے ئې ځان سره راروان کړو. دے چونکه ماماګانو سره پاتې کيدو نو شليدلې او ښيرنې جامې ئې اچولې وې او دهٔ راروان کړے دے مکې ته ئې راولې. نو چې مکې ته رااورسيدل، هر چا به ترې تپوس کولو چې دا څوک دے؟ نو دهٔ به ورته وئيل: چې دا مې غلام دے؛ ځکه شرميدو، دا خلق به بيا وائي: چې دا دَ دهٔ ورارهٔ دے او دا خنکه ښيرنې جامې ئې اچولې دي. او دا ورارهٔ ئې پوهه کړے وو چې تهٔ به غږ نهٔ کوې. نو خلقو کښې مشهوره شوه: چې دا دَ مطلب غلام دے، هغه راوستے دے. دَ عبد مطلب معنى هم دغه ده: دَ مطلب غلام. بيا ئې چې اولامبولو او صفا ئې کړو نو بيا ئې اووئيل: چې دا مې غلام نهٔ دے بلکه دا زما ورارهٔ دے. نو خلقو کښې پهٔ عبد مطلب باندې پهٔ دې وجه مشهور وو.

دې سره يَو اعتراض هم دفع شو: چې مطلب نوم خو دَ الله تعالى پهٔ اسماء کښې نشته دے نو دهٔ ته ئې خنګه عبد المطلب وئيلو؟

دا اولنے هغه سړے وو چې پهٔ عربو کښې ئې کيره توره کړې وه. او دَ دهٔ پهٔ دنيا کښې يَو سل څلويښت (۱۴۰) کاله عمر وو. خو دا ډير عجيبه سړے وو. دَ دهٔ ډير اوږد تاريخ دے.

**دَعبدالمطلب آب زمزم کنستل**

عبد المطلب آب زمزم کنستلے دے. چونکه اسماعيل عليه السلام پهٔ زمانه کښې چې هغهٔ دَ مور سره وړوکے ماشوم راغلے وو نو دغه ځائے کښې نهٔ بيت الله آباد وو، نهٔ انسانان وو، نهٔ ونې وې،

نهٔ فصل وو. اسماعیل ﷤ چې تږے شوے الله تعالیٰ دَ زمزم هغهٔ اوبهٔ راویستلې دي.

نو جُرهم قبیله پهٔ دې طرف باندې تله، چې هغوي اوکتل چې دلته مارغان راخکته کیدل. او عربو کښې خو دَ اُوبو ډیر غټ کمے وو. هغوي اووئیل: دلته زما پهٔ خیال اوبهٔ دي. یَو کس ئې رااولیږلو، نو هغهٔ چې اوکتل دلته اوبهٔ وې. دوي راغلل امِّ اسماعیل ته وائي: "کهٔ ستا اجازت وي نو مونږ به دلته کښې دیره شو؟". نو هغه خو یواځې وه، څوک ورسره نهٔ وو، هغې اووئیل: "ډیره ښهٔ ده، راشئ دیره شئ. ګاونډیان به راشي. خو شرط به دا وي: چې پهٔ دې اوبو به دعوٰی نهٔ کوئ". دوي اووئیل: چې دعوٰی پرې نهٔ کوو، خو مونږ به پریږدئ چې ځان له ترې اوبهٔ راخلو. دا ورته وائي: "چې څومره ترې اوړئ نو اوړئ خو ګورے! دا به ستاسو ملکیت نهٔ وي، دا به رانه اخلئ نهٔ". هغوي اووئیل: "صحیح ده".

دا جُرهم قبیله راغله، او هلته کښې اوسیدل، اسماعیل ﷤ او دَ هغهٔ مور هم اوسیدل. اسماعیل ﷤ الله رب العزة زلمے کړو، پهٔ دې جُرهم قبیله کښې ئې وادهٔ اوکړو. او دا اسماعیل ﷤ بیا الله تعالیٰ دوي ته پهٔ پیغمبرئ باندې هم اولیږلو. دوي ته به ئې بیان هم کولو. دَ اسماعیل ﷤ یَو سل دیرش (۱۳۰) کاله عمر وو کله چې وفات شو. حطیم کښې اسماعیل ﷤ دفن شوے دے. او مور ئې هم دغه ځائے کښې دفن وه.

بیا دَ اسماعیل ﷤ نه روستو دَ هغهٔ ځوي دے قیدار. نو قیدار بیا دَ بیت الله مشر او متولّي شو. دَ قریشو بچي هم لوي شوي دي، دَ عمالقؤ او جُرهم بچي هم لوئي شوي دي. جنګ جګړې به راتلې، دا عمالقه او جُرهم دوي به پهٔ هغوي باندې زورَور شو. او بني اسماعیل مجبوره شول نو هغوي دا علاقه پریښودله او بل خوا لاړل. دَ مکې پهٔ اطرافو کښې آباد شول. چې هلته دیره شول نو دوي بیا ډیر ظلمونه شروع کړل دَ بني اسماعیلو سره او دَ خانه کعبې به ئې هم بے عزتي کوله.

نو دَ عربو نورې قبیلې راپاسیدې او هغوي دَ جُرهم قبیلې سره پهٔ جنګ شول. دوي ئې اوزغلول، خانه کعبه ئې دَ دوي نه پاکه کړه. بني اسماعیل واپس راغلل او آباد شول. خو دا قبیله جُرهم چې تلل نو خانه کعبه ئې خو ورانولے نهٔ شوه. وائي: دا اوبهٔ دي دَ دې نه به خلق فائده اخلي نو

دا کوهے ئې مکمل بند کړو. او داسې ئې بند کړو چې چا ته پته هم اونۀ لګیدله چې هغه کوهے چرته دے؟ بالکل همواره زمکه ئې جوړه شوه. بني اسماعیل راغلل خو هغوي هم پۀ دې کوهي څۀ غم وغرض اونۀ کړو.

**دَ عبدالمطلب خوب لیدل**

کله چې دا مشرت عبد المطلب ته حواله شو نو دۀ یَو شپه خوب اولیدو: خوب کښې ورته یَو کس راغلے ورته وائي:

"اِحْفِرْ طَيِّبَةً". "طیبه اوکنه!". عبد المطلب وائي: ما ورته اووئیل: دا "طیبه" څۀ شے دے؟ نو هغه زما نه لاړے.

پۀ سبا له چې زۀ بیا اودۀ شوم نو دے بیا راغے وائي: "اِحْفِرْ بَرَّةً". "برّه اوکنه". دے ورته وائي: "وَمَا بَرَّةٌ؟". "برّه څۀ شے دے؟". هغه بیا لاړے.

وائي: پۀ دریمه شپه مې بیا خوب اولیدو: راته وائي:

"اِحْفِرِ الْمَضْنُوْنَةَ. فَقُلْتُ: وَمَا الْمَضْنُوْنَةُ؟".

"مضنونه اوکنه! نو ما ورته اووئیل: دا مضنونه څۀ شے دے؟".

دا درې واړۀ دَ زمزم نومونه وو. هغه کس بیا لاړے.

پۀ څلورمه شپه باندې بیا راغے، هغه ورته وائي:

"اِحْفِرْ زَمْزَمَ، قُلْتُ: وَمَا زَمْزَمُ؟".

"زمزم اوکنه! ما ورته اووئیل: چې دا زمزم څۀ شے دے؟".

"قَالَ: لَا تَنْزِفُ أَبَدًا وَّلَا تَذِمُّ تَسْقِي الْحَجِيْجَ الْأَعْظَمَ بَيْنَ الْفَرْثِ وَالدَّمِ عِنْدَ نُقْرَةِ الْغُرَابِ الْأَعْصَمِ عِنْدَ قَرْيَةِ النَّمْلِ".[1]

"هغۀ اووئیل: دا داسې چینه ده چې دَ دې اوبۀ به نۀ اوچیږي، نۀ به کمیږي او دا به دَ حاجیانو لویو لویو ډلو له اوبۀ ورکوي. او دوي به دَ دې نه سیراب کیږي. او دا به نۀ بندیږي. (دا ئې

---

[1] انظر: "شرح زرقاني علی المواهب": (173/1).

ښخښي دي:) چې دَ غُشانو او دَ وینو په مینځ کښې، دَ اعصم کارغهٔ دَ غوټه کیدو ځائے سره دے او دَ میږو دَ میږتون سره خوا کښې دے".

عبد المطلب اووئیل: چې دا کوهے خو زهٔ کهولاؤم او دا به زهٔ کورم. په خوب کښې خو ورته پوره ښخښې ښخښانې هم اوښودلے شوې لکه دغه مخکښې ذکر شوې. نو دهٔ قریش راغونډ کړل، چې دا کوهے راکښنو، ما ته په خوب کښې وئیلے شوي دي. هغوي ورته اووئیل: روره! مونږ پکښې نهٔ یُو، کهٔ ته ئې کنستلے شې نو کښنه ئې خو مونږ پکښې نهٔ یُو. عبد المطلب اووئیل: زهٔ خو به ئې کښنم.

کوهے ئې شروع کړو او هیڅ څوک ورسره نهٔ وو، یَو دے او یَو ورسره ځوي (حارث) وو. دوي دواړو کوهے کنستل شروع کړل. خو ډیر ګران کار وو. چې کوهے ئې کله کنستلو نو دهٔ آرمان اوکړو چې زهٔ یَو یم او یَو مې ځوي دے. دهٔ به پکښې لاندې کار کولو او ځوي به ترې خاورې راخیژولې. آرمان ئې دا اوکړو وائي: "چې زما لس (۱۰) ځامن وے او دا ئې راسره کنستلو، نو بیا به مې هیڅ چا ته ضرورت نهٔ وو! کهٔ الله تعالی ما له لس ځامن راکړل نو یَو ځوي به پکښې دَ الله پهٔ نوم حلالوم.

هغه کوهے ئې هم اوکنستلو دا آرمان ئې هم پوره شو او لس ځامن ورله هم الله ورکړل دا آرمان ئې هم پوره شو. پهٔ دې لسو ځامنو کښې یَو دَ نبي ﷺ پلار هم وو، عبد الله. اوږده واقعه ده.

بیا چې عبد الله پیدا شو نو دے اودهٔ دے او خوب ئې اولیدو چې: تا چې هغه نذر منلے هغه اوس پوره کړه کنه؟

دهٔ ځامن راغونډ کړل وائي: یَو به پکښې حلالوم چې هر یَو وي. نو هغوي ورته اووئیل: چې ستاسو خوښه ده. دهٔ اووئیل: چې ایکس به واچوم کهٔ پهٔ چا راواوختلو نو هغهٔ به حلال کړم. چې ایکس ئې واچولو نو ایکس پهٔ عبد الله باندې راواوختلو.

نو عبد الله ئې دَ لاس نه اونیولو او صفا غونډۍ طرف ته ئې روان کړو چې حلالوم ئې. تول ځامن او رونړه وریسې اولګیدل چې نهٔ به ئې حلالوې. وائي: څهٔ اوکړم ما چې نذر منلے دے؟ دوي ورته اووئیل: چې لا ړشه! دَ یهودو مُلیانو نه تپوس اوکړه. او بعضې علماؤ لیکلي دي: چې دا یَوه کاهنه وه پهٔ خیبر کښې دَ هغې نه ئې تپوس اوکړو. هغې ورته اووئیل: چې ستاسو دَ عربو دِیَت

خومره دے؟ وائي: زمونږ دَ يَو کس ديت لس اوښان دي. نو دا کاهنه ورته وائي: لس اوښان يَو خوا کړه او دے (عبد الله) بل خوا کړه بيا ايکس واچوه، نو کۀ چرته ايکس پۀ اوښانو راوختو نو اوښان حلال کړه او کۀ پۀ دې ځوي باندې دې راوختلو نو بيا دَ اوښانو سره لس (۱۰) نور ملګري کړه او بيا ايکس واچوه، پۀ دې طريقه ايکس اچوه، چې کله دَ عبد الله ايکس راختو نو نور لس اوښان ورسره ملګري کوه او کۀ ايکس پۀ اوښانو باندې راوختو نو دا خومره اوښان چې وي دا به خيرات کړې او دا عبد الله به پريږدې، دا به دَ عبد الله بدله کېښي حلال شي.

دۀ اووئيل: ښه!. دے راغے لس اوښان ئې يَو خوا کړل او بل خوا ئې عبد الله (دَ نبي ﷺ پلار) اودرولو. چې ايکس ئې واچولو، هغه بيا پۀ عبد الله رااوختو، لس ئې ورسره نور ملګري کړل.... پۀ دې طريقه به ئې لس لس ملګري کول او ايکس به بيا دَ عبد الله پۀ نوم راوتو، تردې چې سلو (۱۰۰) ته اوښان اورسيدل. يَو خوا يَو عبد الله دے او بل خوا سل اوښان شول، نو چې سل اوښان ئې کړل او ايکس ئې واچولو نو بيا ايکس پۀ اوښان راوختو. نو سل (۱۰۰) اوښان ئې خيرات کړل. تردې چې حيواناتو له ئې پکښې هم واچول. او عبد الله هغه دَ مرګ نه بچ شو. دَ چارۀ نه خلاص شو.

نبي ﷺ فرمائي: «أَنَا ابْنُ الذَّبِيْحَيْنِ».[1]

"زۀ دَ هغي دوؤ کسانو بچے يم چې هغوي دواړه دَ چارۀ نه خلاص شوي دي".

هغه دوه پلاران يَو عبد الله دے، دَ نبي ﷺ پلار او بل دَ نبي ﷺ نيکۀ سيدنا اسماعيل عليه السلام چې دا دَ ابراهيم عليه السلام ځوي وو. الله رب العزة ابراهيم عليه السلام ته وحي کړې وه: چې بچې دې حلال کړه. نو هغه الله بچ کړو او دَ هغۀ پۀ ځائے ګډ حلال شو. نو عبد المطلب هغه شخصيت وو چې دۀ وئيلي وو: چې زۀ به خپل بچے دَ الله پۀ نوم حلالوم.

دا دَ نبي ﷺ دَ نسب او خاندان مختصر حالات ما ذکر کړل، باقي تفصيل به وروستو بيا کوؤ ان شاء الله تعالى.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

---

(1) انظر: "شرح زرقاني على المواهب": (180/1).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه دريمه

## "د نبي ﷺ پيدائش"

بتاريخ: 2021-12-24

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه دريمه

## "دَ نبي ﷺ پيدائش "

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾.[1]

وقال تعالیٰ: ﴿يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾.[2]

حاضرینو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سیرت شروع وو. دَ رسول الله ﷺ نسب او دَ هغهٔ خاندان دَ هغې وضاحت شوے وو.

### دَرسول الله ﷺ پیدائش

نن بیان کېښې دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش بیان دے: چې رسول الله ﷺ پهٔ کوم وخت کېښې پیدا شوے دے؟ او دَ هغهٔ دَ پیدائش څهٔ داسې نخښې وې چې دَ نورو ماشومانو نه بدلې وې؟

رسول الله ﷺ دَ واقعه دَ اصحاب الفیل نه پنځوس (۵۰) یا پنځهٔ پنځوس (۵۵) ورځې بعد رسول الله ﷺ پیدا شوے دے. واقعه دَ اصحاب الفیل هغه وه: چې ابرهه، سره دَ فوج نه راغلے وو

(1) [سورة التوبة: 128].

(2) [سورة المائدة: 16].

دَ بیت الله دَ ورانولو پهٔ اراده باندې. خو الله رب العزة هغه کامیاب نهٔ کړو او سره دَ هاتیانو ئې تباه کړو. شپیتهٔ زره (٦٠٠٠٠) فوج سره دَ هاتیانو راغلے وو. بیا هغوي الله رب العزة تباه کړي وو. مشهوره واقعه ده. قرآن کښې هم دَ دوي ذکر پهٔ مستقل سورت کښې شوے دے. الله رب العزة فرمائي:

﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَابِ الْفِيلِ * أَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ فِي تَضْلِيلٍ﴾.[1]

"آیا تهٔ نهٔ ګورې چې څهٔ رنګه کار کړے وو رب ستا دَ هاتیانو والا سره! آیا نهٔ ئې وو ګرځولے چل دَ دوي پهٔ تباهئ کښې".

ابرهه او دَ هغهٔ ډله اهل کتاب وو، نصارٰی وو او دَ مکې خلق چې وو نو هغوي کافران وو، مشرکان وو. نو الله رب العزة چې خانه کعبه، بیت الله بچ کولو نو دا دَ مشرکینو څهٔ کمال نهٔ وو، دَ دوي دَ وجې نه الله دَ ابرهه مدد نهٔ کولو؛ ځکه الله دَ کافرانو امداد نهٔ کوي؛ خو دا ابرهه او دَ هغهٔ لښکر چې الله تعالٰی تباه کړو نو دا دَ څو وجوهو نه وو:

(۱) **اوله وجه:** دا وه چې دَ خانه کعبې حفاظت الله تعالٰی دنیا ته ښکاره کولو، چې دا خانه کعبه زهٔ محفوظ ساتلے شم دَ کافرانو او بے دینه خلقو نه.

(۲) **دویمه وجه** دا وه: چې دا الله تعالٰی ابرهه او دَ هغهٔ ډله چې هلاکه کړه نو دَ رسول الله ﷺ دَ عظمت دَ وجې نه. چې پهٔ دې ښار کښې به الله تعالٰی نبي پیدا کوي. علماؤ لیکلي دي: چې دا یو قسم مقدمه وه دَ رسول الله ﷺ دَ راتلو.

نو دَ اصحاب الفیل دَ واقعې نه پنځوس (۵۰) یا پنځهٔ پنځوس (۵۵) ورځې بعد رسول الله ﷺ پیدا شوے دے.

## دَ نبي ﷺ دَ پیدائش تاریخ

نبي ﷺ پهٔ کوم تاریخ پیدا شوے دے؟ نو دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش پهٔ تاریخ کښې دَ علماؤ ډیر اقوال دي... تاریخ پیدائش چې ورته وائي، تاریخ ولادت چې ورته وائي.

شیخ الحدیث مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله ذکر کوي: چې رسول الله ﷺ پهٔ اتم (۸) تاریخ

(1) [سورة الفيل: 1-2].

ربيع الاوّل دَ میاشتې پیدا شوے دے. دا دَ پیر ورځ وه. څوک ورته دوشنبه وائي، څوک ورته پیر وائي. دَ انګریزي تاریخ مطابق: ۱۱/اپریل/۵۷۰ عیسوي سال وو. اوس خو دوهزار اکیس (۲۰۲۱) په ختمیدو دے. دَ دې عیسوي کال پنځهٔ سوه او اویا (۵۷۰) کاله شوي وو. یعني نبي ﷺ دَ عیسٰی علیه السلام نه پنځهٔ سوه او اویا کاله بعد راغلے وو.

**دَ نبي ﷺ دَ پیدائش وخت**

نبي ﷺ تقریبًا دَ صبح صادق پهٔ وخت کښې پیدا شوے وو. او نبي ﷺ دَ ابو طالب پهٔ ځائے او مکان کښې پیدا شوے وو. بعضې علماء وائي: چې نبي ﷺ دَ شپې پیدا شوے دے. څوک وائي: دَ پیشمني وخت کښې پیدا شوے دے. دا دومره بعیده خبره نهٔ وه. بس تطبیق داسې دے: چې دَ شپې وخت نه تکلیف شروع شو، سحر سحر وخت کښې دَ الله نبي ﷺ پیدا شو. او څوک چې وائي: چې دَ ورځې پیدا شوے دے، نو کهٔ سحر وختي شي نو بیا صحیح ده. او کهٔ نهٔ روستو ورځ یادَوي وائي: چې نمر راختلے وو او پیدا شوے، نو دا قول ضعیف دے.

بعضې مشهور قول دا هم دے: چې نبي ﷺ پهٔ دولسم ربیع الاول پیدا شوے وو، ورځ دَ پیر (ګُل) وه خو تاریخ دولسم (۱۲) ربیع الاول وو. کوم چې دا نن صبا مشهوره خبره ده. علامه ابن جوزي رحمه الله دا دعوٰی کوي: چې دَ علماؤ اتفاق پهٔ دې باندې دے: چې نبي ﷺ پهٔ باره ربیع الاول باندې پیدا وو.

**دَ علامه زرقاني رحمه الله قول**

علامه زرقاني رحمه الله وائي: "وَالْمَشْهُوْرُ: أَنَّهٗ وُلِدَ فِي شَهْرِ رَبِيْعِ الْأَوَّلِ، وَهُوَ قَوْلُ جُمْهُوْرِ الْعُلَمَاءِ، وَنَقَلَ ابْنُ الْجُوْزِي الْاِتِّفَاقَ عَلَيْهِ".

"مشهوره دا ده: چې نبي ﷺ دَ ربیع الاول پهٔ میاشت کښې پیدا شوے دے او دا دَ جمهورو علماؤ قول دے. او ابن جوزي پهٔ دې باندې اتفاق رانقل کړے دے".

خو بیا علامه زرقاني رحمه الله لیکلي دي:

"وَفِيْهِ نَظَرٌ".(1)

---

(1) انظر: "شرح رزقاني على المواهب": (245/1).

"په دې کښې نظر دے"؛ ځکه کۀ اتفاق وو نو دا دومره اختلاف دَ کوم ځائے نه راغلے؟
لهٰذا دَ اتفاق دا قول صحيح نۀ دے.

**دَ شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله قول**

"ليكن جمهور محدثين اور مؤرخين كے نزديک راجح اور مختار قول يہ ہے: كہ حضور صلى الله عليه وسلم اٹھ (۸) ربيع الاوّل كو پيدا ہوئے۔ عبد الله بن عباس اور جبير بن مطعم رضي الله عنهم سے بھی يہی منقول ہے اور اسی كو علامہ قطب الدين قسطلانی رحمۃ اللہ علیہ نے اختيار كيا ہے"۔[1]

وائي: "دَ جمهورو محدثينو او مؤرخينو پۀ نزد باندې راجح او غوره قول دا دے: چې حضور ﷺ پۀ اتم (۸) ربيع الاول باندې پيدا شوے دے. دَ عبد الله بن عباس او جبير بن مطعم رضي الله عنهم نه هم دا نقل دي. او دارنګې دا قول علامه قطب الدين قسطلاني رحمه الله هم غوره کړے دے".

نو ورځ دَ پير وه، څوک ورته دَ ګل ورځ وائي، څوک ورته دوشنبه وائي، ورځ کښې اختلاف نشته دے خو تاريخ کښې اختلاف دے. نو ادريس کاندهلوي رحمه الله اووئيل: چې اتم (۸) ربيع الاول باندې حضور ﷺ پيدا شوے وو.

**دَ مفتي کفايت الله رحمه الله قول**

مفتي کفايت الله رحمه الله ليکلي دي:

وائي: "دَ ډير پخوا نه دَ رسول الله ﷺ پۀ دې پيدائش کښې دَ مؤرخينو اختلاف دے. پۀ دې کښې ئې خو اتفاق دے چې نبي ﷺ دَ ګُل پۀ ورځ پيدا دے. او پۀ دې کښې هم اتفاق دے: چې نبي ﷺ دَ ربيع الاول پۀ مياشت کښې پيدا شوے دے. دا دوه غټې خبرې اتفاقي دي. خو اختلاف پۀ دې کښې دے چې دا تاريخ کوم يَو وو؟ نو دَ دې پۀ تعيين کښې ګڼ اقوال دي: څوک وائي: چې نبي ﷺ پۀ دويم (۲) ربيع الاول پيدا وو. څوک وائي: چې پۀ دريم (۳) ربيع الاول پيدا وو. څوک وائي: چې پۀ اتم (۸) ربيع الاول پيدا دے. څوک نهم (۹) تاريخ دَ ربيع الاول يادَوي. او څوک دولسم (۱۲) تاريخ دَ ربيع الاول يادَوي. او څوک ديارلسم (۱۳) تاريخ دَ ربيع الاول يادَوي".

دا ټول پنځۀ اقوال شول.

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (1/63-64)، وفي مكتبة عمر فاروق: (1/55-56).

مفتي صاحب ﷫ بيا وائي: "از روئے حساب جانچا گیا تو نو (۹) ربیع الاوّل والا قول زیادہ قوی ثابت ہوا"۔[1] "چې سرے حساب اوکړي او معلومات اوکړي نو دَ نهم (۹) ربيع الاول والا قول زيات قوي معلوميږي".

نو مفتي كفايت الله ﷫ دې لره ترجيح ورکوي: "چې نَهم (۹) ربيع الاول بهتر قول دے دَ پيدائش دَ نبي ﷺ او ډير صحيح قول دے".

شيخ الحديث محمد ادريس كاندهلوي ﷫ اتم ربيع الاول راجح قول ياد کړو، او مفتي كفايت الله صاحب ﷫ وائي: نهم ربيع الاول غوره قول دے. او بيا مفتي صاحب ﷫ ليکي:

"اس وجہ سے مولانا شبلی نعمانی اور مولانا قاضی محمد سلیمان رحمۃ اللہ علیہما اسی قول کو راجح اور قوی فرمارہے ہیں"۔

وائي: "دغه وجه ده چې مولانا شبلي نعماني ﷫ او قاضي محمد سليمان ﷫ دې دواړو دغه (۹ ربيع الاوّل) قول راجح او قوي ګنړلے دے".

نو نبي ﷺ پهٔ نهم ربيع الاول پيدا شوے دے. خو عوامو کښې خو دولسم مشهور دے نو مفتي صاحب وريسې وائي:

"لیکن عوام میں بارویں تاریخ والا قول کی شہرت زیادہ ہوگئی؛ اس بناء پر عوام بارویں ربیع الاول کو یوم ولادت سمجھتے ہیں"۔[2]

"خو پهٔ عوامو کښې دَ باره (۱۲) ربيع الاول والا قول زيات مشهور دے؛ پهٔ دې وجه باندې عوام زيات تر دَ ولادت باره (۱۲) ربيع الاول ذهن کښې راولي".

نو دا دومره اختلاف پکښې شته دے.

### پهٔ باره ربيع الاول باندې عيد مناؤول

بعضې خلق پهٔ باره ربيع الاول عيد مناؤوئ. دا يَو مستقل بدعت دے. هغه کهٔ پهٔ نهم ربيع الاول مناوے او کهٔ پهٔ اتم ئې کوې، کهٔ پهٔ هر يَو تاريخ عيد ميلاد النبي مناوے نو دا بهر حال بدعت دے. کهٔ چرته ستا دا عقيده وي: چې پهٔ دې تاريخ دَ الله نبي ﷺ پيدا دے او زهٔ دا خوشحالي کوم نو دا عيد مناؤول بدعت دے.

### دَ نبي ﷺ پهٔ وفات باندې اتفاق

خو بل خوا دَ يَو انصاف خبره دا ده: چې پهٔ باره ربيع الاول اتفاقي خبره ده چې نبي ﷺ وفات

(1) انظر: "كفايت المفتي": (147/1).
(2) انظر: "كفايت المفتي": (147/1).

شوے وو. پۀ ولادت باندې دومره اتفاق نشته، خلقو کښې مشهور صرف دے، لیکن ما درته اووئیل: چې کاندهلوي صاحب وائي: نبي ﷺ پۀ اتم ربیع الاول باندې پیدا دے. او مفتي کفایت الله صاحب وائي: راجحه دا ده: چې پۀ نهم ربیع الاول باندې پیدا دے، او مفتي صاحب پنځۀ اقوال ذکر کړل. لیکن اتفاق دَ ټولو علماؤ پۀ دې دے چې پۀ باره ربیع الاول باندې نبي ﷺ وفات شوے دے. نو بعضې خلق پۀ دغه ورځې خوشحالي مناؤوئ. کۀ دا جائز وے نو بیا خو به دَ نبي ﷺ پۀ وفات باندې غم مناؤول هم جائز وي. نو اوس کۀ غم ښکاره کوې نو پۀ دې ورځ خو پیدا وو نو غم څنګه کوې؟ او کۀ خوشحالي ښکاره کوې نو پۀ دې ورځ خو هغۀ وفات وو نو خوشحالي څنګه ښکاره کوې؟؛ لهٰذا مۀ غم ښکاره کوه او مۀ خوشحالي ښکاره کوه.

هره ورځ خوشحالي کوه، صرف یَو ورځ ئې مۀ کوه. مونږ دغه خبره کوو. تاریخ کښې به څوک دا اونۀ ښائي: چې نبي ﷺ پۀ کومه ورځ پیدا شوے وو نو نبي ﷺ پۀ خپله یا صحابه کرامو ﷺ، یا تابعینو ﷬ او یا تبع تابعینو ﷬ دا ورځ مانځلې ده، یا ئې مناؤ کړې ده. ولې صحابه کرام ﷺ پرې خوشحاله نۀ وو؟ تابعین پرې خوشحاله نۀ وو؟ خو دا دَ دین حصه نۀ ده بلکه دا بدعت دے. خاص ورځ به دې لره نۀ وي.

خو بهر حال راجحه داده: چې پیدائش دَ نبي ﷺ پۀ اتم یا نهم تاریخ دَ ربیع الاول باندې شوے دے.

**دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش وخت کښې ناآشنا مناظر**

رسول الله ﷺ چې کله پیدا کیدو نو پۀ هغې وخت نا آشنا نا آشنا مناظر لیدلے شوي دي، هغه مونږ اوس ذکر کوو:

**(۱) اول ناآشنا حالت: دَ نبي ﷺ پۀ پیدائش باندې دَ هغوي کور دَ رڼرا نه ډکیدل**

عثمان بن ابي العاص ﷺ دَ دۀ والده ده فاطمه بنت عبد الله ﷺ وائي: کله چې نبي ﷺ پیدا کیدو نو پۀ دغه وخت کښې دَ نبي ﷺ مور سره دا زنانه وه.

نو دا زنانه وائي: "رَأَيْتُ الْبَيْتَ حِينَ وَقَعَ قَدِ امْتَلأَ نُورًا، وَرَأَيْتُ النُّجُومَ تَدْنُوْ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهَا سَتَقَعُ عَلَيَّ".[1]

(1) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (218/1)، واللفظ له. و"فتح الباري" لابن حجر العسقلاني: (583/6).

"چې کله رسول الله ﷺ پیدا کیدو نو پۀ دغه وخت کښې پۀ دې ټول کور کښې يَو رڼرا بله شوه، يَو سپين پړق شو، چې دَ هغې نه دا ټول کور ډک شو او چې ما اوکتل نو دَ آسمان نه دا ستوري پۀ ښکته راروان وو، ما وئيل: کني چې دا ستوري پۀ مونږ باندې راکوزيږي او راغورځيږي".

دا يَو نا آشنا کار وو دَ نبي ﷺ دَ پيدائش پۀ وخت کښې: چې ټول کور کښې سپين پړق جوړ شو.

**(۲) دويم نا آشنا حالت: داسې رڼرا راخوره شوه چې دَ شام محلات روښانه شول**

عرباض بن ساريه ؓ نه نقل دي، هغه وائي: چې کله دَ نبي ﷺ مور نبي ﷺ زيږولو نو مور ئې پۀ دغه وخت کښې پۀ خپله باندې يَو رڼرا اوليدله چې دَ هغې رڼرا دَ وجې نه دَ شام هغه محلّات روښانه شول.

شام ته هغه رڼرا اورسيده او دَ هغې دَ وجې نه هغه لوئې لوئې بنګلې روښانه شوې. دا بل يَو نا آشنا کار وو چې داسې چرته نۀ دې شوي.(1)

**(۳) دريم نا آشنا حالت: او داسې رڼرا وه چې دَ بصرى محل روښانه شو**

بل يَو روايت کښې راځي، وائي: دَ بصرې هغه محل دَ دې وجې نه روښانه شوے وو.(2)

**حکمت**

پۀ دې کښې څۀ حکمت وو چې نبي ﷺ دنيا ته راغے، دَ هغۀ پۀ راتلو سپينه رڼرا خوره شوه؟ ستوري هغه ښکته راروان شو دا ولې؟ نو دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره وه: چې لږه زمانه بعد چې پۀ دې دنيا باندې دَ کفر او دَ شرک يَو تور څادر خور دے، پۀ دې باندې به دَ نبي ﷺ دَ وجې نه الله تعالٰى دَ دين، دَ هدايت هغه رڼراګانې خورې کړي. چې دَ هغې دَ وجې نه به دا ټوله زمکه روښانه شي. لکه څنګه چې دَ نبي ﷺ پۀ پيدائش باندې يَو پړق شو نو دغسې دَ هغۀ دَ نبوّت نه بعد به يَو پړق خور شي دَ الله دَ توحيد او دَ الله دَ دين.

او هم هغه شان اوشوه. پۀ ټوله دنيا کښې الله تعالٰى دا دين اوځلولو او ټوله دنيا کښې دَ هغې هغه رڼراګانې خورې شوې، خصوصًا پۀ قيصر او کِسرٰى او ګير چاپيره علاقو کښې.

---

(1) انظر: "سيرة المصطفٰى": (64/1).

(2) انظر: "فتح الباري" لابن حجر العسقلاني: (583/6).

### دَ نبي ﷺ باره کښې دَ الله تعالی اعلان

دَ دې وجې نه الله تعالٰی دَ خپل نبي ﷺ باره کښې فرمائي:

﴿قَدْ جَاءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُّبِينٌ﴾.(1)

"پۀ تحقيق سره راغلے دے تاسو ته دَ الله دَ طرف نه رنړا او کتاب ښکاره بيان کونکے".

نبي ﷺ ته الله تعالٰی رنړا وائي. رنړا سره تيرې ختميږي نو دَ نبي ﷺ دَ راتلو سره الله تعالٰی دَ کفر او دَ شرک تيرې ختمې کړې. نو دا "نور" ورته پۀ دغه بنياد وائي. دا نه چې بدن ئې نور وو، لکه څنګه چې بريليان وائي. وائي: پيغمبر ﷺ نور وو، خوراک، څښکاک ئې نۀ کولو.

﴿يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾.(2) "هدايت کوي الله تعالی پۀ دۀ باندې هغه چا ته چې خوک تابع شو دَ رضامندئ دَ الله، دَ سلامتيا دَ لارو او اوباسي دوي لره دَ تيَرو نه رنړا ته پۀ خپل حکم باندې. او الله تعالٰی هدايت کوي دې خلقو ته پۀ طرف دَ لارې نيغې".

دَ دې نبي ﷺ پۀ وجه باندې الله تعالٰی دا خلق دَ تيَرو نه رنړا ته اوباسي. نو نبي ﷺ يَو رنړا وه، دا رنړا چې دنيا ته راغله نو لوئې لوئې محلات پۀ دې رنړا کښې راګير شول. معنیٰ دا: چې دَ دې رنړا دَ وجې نه به الله دغې محلاتو ته دين رسوي.

### (٤) څلورم نا آشنا حالت: قريشو ته دَ يهودي وينا

يعقوب بن سفيان دۀ پۀ سندِ حسن باندې دَ عائشې ﷺ نه نقل کړې دي: هغه فرمائي: دا خبره مشهوره وه: چې نبي ﷺ کله پيدا شو نو دَ هغۀ دَ پيدائش پۀ دغه وخت کښې پۀ مکه کښې يَو يهودي وو. هغۀ راغلے وو تجارت ئې کولو. هغۀ هلته مکه کښې پاتې وو، لا حصار وو. پۀ کومه شپه چې نبي ﷺ پيدا شو نو هغه يهودي راغلے او دَ قريشو نه ئې تپوس کولو: "چې اے قريشو! ستاسو پۀ دې قريشو کښې پۀ نن شپه کښې دَ چا ماشوم پيدا شوے دے کۀ نۀ؟ تاسو اوګورئ! چې دَ چا ماشوم پيدا شوے دے؟". قريشو ورته اووئيل: چې ولې پۀ دې کښې دې څۀ مطلب دے؟".

---

(1) [سورة المائدة: 15].

(2) [سورة المائدة: 16].

نو هغهٔ ورته وائي: "چې خبره دا ده: چې پهٔ دې شپه کښې دَ دې امت نبي ﷺ به الله پيدا کوي (دا واقعات مخکښې کتابونو کښې وو)، او نن هم هغه شپه ده چې کتابونو کښې ليکلي دي: چې پهٔ دې شپه کښې به دِ دې امت نبي پيدا کيږي. نو اوګورئ! چې ستاسو قريشو کښې خو دَ چا ماشوم نهٔ دے پيدا شوے؟". نو قريشو اووئيل: "مونږ ته خو پته نشته چې سحر پاڅو معلومات به اوکړو". چې سحر پاڅيدل نو وائي: "آوا بيګا دَ عبد المطلب نوَسے پيدا شوے دے".

هغه يهودي ورته وائي: "چې تاسو لاړشئ! معلومات اوکړئ چې چرته دَ هغهٔ دَ دې دوارو اوګو پهٔ دې مينځ کښې څهٔ مهر دَ نبوّت خو نشته دے؟". داسې پسته غوښه غوندې وه. نو هغوي چې روان شول نو دې يهودي ورته اووئيل: "چې زهٔ هم درسره ځم چې دا هلک اووينم". يهودي هم راغلے، دَ نبي ﷺ ملاقات ته راغلل. نبي ﷺ وړوکے دے، ايله پيدا شوے دے. کله چې يهودي دا ماشوم اوليدو او دَ هغهٔ دَ دوارو اوګو ترمينځه هغه مهر نبوّت ئې هم اوليدو نو دا يهودي راپريوَتو او بے هوشه شو. ډير پريشانه شو او دَ ډيرې پريشانئ دَ وجې نه بے هوشه شو.

چې کله پهٔ هوش کښې راغلے چا ورته اووئيل: "چې اے يهودي! څهٔ چل شوے دے چې تهٔ ناڅاپه رااوغورځيدې او بے هوشه شوې؟". نو هغه يهودي ورته وائي: "يَو آرمان راغے او يَو ډير لوئي افسوس راغے". نو دوي ورته اووئيل: "څهٔ؟". يهودي وائي: "زمونږ دا آرمان وو چې دا نبي ﷺ به پهٔ مونږ کښې پيدا شي! نبوّت دَ بني اسرائيلو نه ختم شو. دا خو هغه نبي دے چې الله به ئې دي قوم ته پيغمبر راليږي. نو کاش چې دے زمونږ پهٔ قوم کښې پيدا ... ے وے! نو دا به ډيره ښهٔ خبره وه. زمونږ نه هغه نبوت ختم شو او عربو کښې قريشو ته راغے". او ... دې باندې هغه ډير زيات پريشانه وو دَ پريشانئ دَ وجې نه بے هوشه شوے وو.

او بيا قريشو ته وائي: "چې اے قريشو! دا واورئ! زما دې دَ الله پهٔ ذات باندې قسم وي چې دا ماشوم چې کله زلمے شي نو دے به پهٔ تاسو باندې يَو داسې حمله کوي او داسې يَو فتحه به الله تعالیٰ دهٔ له ورکوي پهٔ تاسو باندې چې دَ هغې هغه خبر به پهٔ مشرق او مغرب کښې خور شي. ټوله دنيا به بيا دَ هغې حملې تذکرې کوي".

مؤرخينو ليکلي دي: چې مراد دَ دغې يهودي دَ حملې نه هغه فتح مکه وه، پۀ مکې باندې به حمله کوي او مکه به فتحه کوي.

او هغه شان بيا اوشوه هم: نبي ﷺ او صحابه کرامو ﷺ مکه فتحه کړه. دَ بيت الله اختيار دوي ته حواله شو، دَ مکې حکومت دوي ته حواله شو. او دا خبره پۀ ټوله دنيا کښې خوره شوه: چې مسلمانانو مکه فتح کړه او کافرانو شکست اوخوړو. خو يهودي هغه وخت کښې وئيلي وو: چې دے به پۀ تاسو باندې حمله کوي او داسې حمله به کوي چې دَ هغې خبر به پۀ مشرق او مغرب کښې خور شي؛ نو دا ځکه چې تورات کښې دا خبرې وې.[1]

**(٥)، (٦) پنځم او شپږم نا آشنا حالت: دَ کِسرىٰ پہ محلاتو کښې زلزله راتلل او څوارلس خختې غورځيدل، او دَ مجوسو اُور مړ کيدل**

بله يَو نا آشنا واقعه داسې اوشوه: پۀ کومه شپه چې نبي ﷺ پيدا شو پۀ دغې شپه دَ کِسرىٰ پۀ هغې محلّاتو کښې يَو زلزله راغله. او کوم چې هغه اوچت محل وو دَ کسرىٰ دَ بادشاه چې هغه دۀ پۀ ډيره عجيبه طريقه باندې جوړ کړے وو، هغه شاهي محل چې وو دَ هغې څوارلس خختې اوغورځيدې.

داسې مخکښې چرته نۀ وو شوي؛ ځکه زلزله کښې خو يا ټول آبادے اوغورځيږي او يا ټول بچ شي. او دَ هغې نه صرف څوارلس خختې رااوغورځيدې.

او پۀ دغه شپه باندې پۀ کومه شپه چې رسول الله ﷺ پيدا شو... چونکه فارس والا خو دَ اُور عبادت کونکي وو، هغوي به اُور ته سجدې کولې. نو څنګه چې نبي ﷺ پيدا شو پۀ هغې شپه دَ هغوي هغه اُور هم مړ شو. او علماؤ ليکلي دي: چې دا اُور هغوي پۀ آتش کده کښې شروع کړے وو. پۀ زرګونو کاله بل شوے اُور، چې چرته هم نۀ وو مړ شوے، شپه او ورځ به هغوي دا اُور بلولو، پۀ هغې باندې به ئې نوے نوے خشاک اچولو، نوي نوي خلق به دَ هغې بلولو ته راتلل. چرته هم دَ هغوي نه هغه اُور مړ شوے نۀ وو؛ ځکه چې دَ هغې عبادت به ئې کولو نو کۀ اُور مړ شوے وو نو عبادت به ئې بيا دَ چا کولو. پۀ دې وجه هغوي دَ دې ډير خيال ساتلو. او دوي ټول راچاپيره دي اُور

(1) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (120/1).

بلَوي او بليږي نهٔ، اُور مړ دے. هغوي ډير پريشانه دي چې دا څهٔ وجه کيدے شي چې زرګونه کاله اوشول دا اُور چرته مړ شوے نهٔ دے نن دا مړ شو او بليږي نهٔ؟

نو پهٔ دغه شپه دَ هغوي هغه اُور هم مړ شوے وو.

دَ نبي ﷺ دَ پيدائش پهٔ شپه مؤرخين ليکي: کله چې صبا شو نو دَ کسرٰی بادشاه انتهائي پريشانه دے خو کسرٰی بادشاه خلقو ته غږ نهٔ کوي چې خلقو کښې يَو خوف خوريږي. خپل ټول وزراء او سرمايه داران ئې راټول کړل او يَو مجلس ئې منعقد کړو: چې دا څهٔ داسې نوې حادثه راغلې ده؟ نو دوي دا خبرې کوي او هغه غټ غټ سرداران او غټ غټ وزيران ورسره هم ناست دي پهٔ دې کښې يَو کس اوونيل: چې خبر داسې راغلے دے چې بيګا دَ فارس والا آتش کده هم مړه شوې وه، او هغه اُور بيا بليدو نهٔ. نو کسرٰی بادشاه نور هم پريشانه شو. وائي: دا څهٔ نا آشنا کار دے چې زمونږ دَ محل نه هم بيګا څوارلس (١٤) خښتې راغورځيدلي دي او دَ فارس والا اُور هم مړ شوے دے! نو پهٔ دې سره دَ بادشاه هغه خوف او يره نوره هم سېوا شوه. بيا پهٔ دې دوران کښې يَو کس پاڅيدو او وائي: ما بيګا خوب ليدلے...

**(٧) اووم نا آشنا حالت: دَ موبذان خوب ليدل**

نو پهٔ دې دوران کښې هغهٔ ته دَ خپل قوم يَو کس (موبذان نوم ئې دے) وائي: "چې يره جي! ما بيګا يَو خوب ليدلے دے، هغې خوب ډير ګډوډ کړے يم". بادشاه ورته وائي: "چې هغه خوب دې راته اووايه! چې څهٔ دې ليدلي دي؟". نو دهٔ ورته اوونيل: "خوب مې ليدو: چې يَو عربي سړے دے او پهٔ يَو عربي اَس باندې سور دے، ډير قيمتي اَس باندې سور دے او هغه راروان دے تر دې پورې چې زمونږ دريائے دجله (دا لوئي سمندر دے) چې دے پهٔ دې سمندر باندې راپورې شو، او پهٔ دې تمامو ملکونو کښې اوګرځيدو. او بيا واپس لاړو".

نو کسرٰی نور هم حيران شو، چې دا څنګه چل دے؟ نو وائي: "يَو داسې سړے راولئ چې ما له دَ دې خوب تعبير اوباسي، چې دَ دې خوب څهٔ تعبير دے؟ او ما پهٔ دې خوب باندې مطمئن کړي". نو کسرٰی بادشاه يَو ملګرے وو، لوئي عيسائي وو. هغهٔ ته ئې خط اوليکلو. نعمان بن منذر ته چې ما له

یَو لوئي عالم او یَو لوئي سړے اوګوره چې ما له ئې رااولیږې؛ چې ما له دَ دې خوب تعبیر اوباسي.

نو نعمان بن منذر چې دا خط اوکتلو نو هغهٔ ورله یَو عالم دَ هغې زمانې اولیږلو. دٔ هغهٔ نوم عبد المسیح غساني وو، عیسائي وو، دَ عیسٰی علیه السلام پهٔ مذهب باندې وو. نعمان بن منذر دې عالم ته اووئیل: "چې کسرٰی بادشاه پریشانه دے، څهٔ مسئله ئې ده. تهٔ هلته لاړ شه او دغه مسئله ورله حل کړه". دے چې راغلے نو کسرٰی بادشاه دهٔ ته وائي: "تهٔ خو راغلے ئې خو زما څهٔ تپوسونه دي ما له به جواب راکړے شې او کهٔ نهٔ؟". نو دے ورته وائي: "تپوس اوکړه کهٔ جواب راځي خو ډیره ښهٔ او کهٔ جواب نهٔ راځي نو داسې یَو کس به درته اوښایم چې هغه به درته دا مسئله معلومه کړي؛ ځکه ما له به جواب راځي یا به نهٔ راځي".

بادشاه ورته وائي: "چې زما دې ملګري خوب لیدلے دے: چې یَو عربي سړے دے او پهٔ یَو عربي آس باندې سور دے، ډیر قیمتي آس باندې سور دے او هغه راروان دے تردې پورې چې زمونږ دریائے دجله چې دے پهٔ دې سمندر باندې راپورې شو، او پهٔ دې تمامو ملکونو کښې اوګرځیدو. او بیا واپس لاړو. نو دَ دې خوب تعبیر څهٔ دے؟". دے ورته وائي: "دا خو څهٔ ډیر نا آشنا خوب دے ما خو وئیل: چې تهٔ به دَ څهٔ مسئلې تپوس کوې. دَ دې خوب دَ تعبیر خو ما ته پته نشته. خو لږ صبر اوکړه زهٔ ځم او زهٔ درله معلومات کوم؛ ځکه زما یَو ماما دے، دَ هغهٔ نوم دے سطیح، پهٔ شام کښې اوسیږي نو زهٔ ځم هغه پهٔ دې تعبیرونو ښهٔ پوهیږي. دَ هغهٔ نه به درله جواب راوړم". دهٔ له ئې یَو تیز رفتار آس ورکړو، چې شابه! ځان اورسوه، هغه مهٔ راوله تهٔ لاړ شه، او دَ هغهٔ نه به ما له جواب راوړې.

عبد المسیح چې کله دَ خپل ماما خواته اورسیدو نو هغه پهٔ حالت دَ زنکدن کښې وو، آخري سلګئ ئې وې خو لا سوچ، سمجھ ئې برابر وو، دماغ ئې کار کوي. نو دهٔ ته وائي: چې څنګه راغلے ئې؟ دهٔ ورته دا خپله قیصه بیان کړه: چې داسې خوب چا لیدلے دے، دَ دې تعبیر به څهٔ وي؟ نو هغه ورته وائي: چې کار دا دے: چې داسې یَو کس به پهٔ عربو کښې پیدا کیږي چې ستاسو دا حکومتونه به دَ هغهٔ دَ لاسه رانسکوریږي، ستاسو دا ټول حکومتونه او ستاسو دا بادشاهت به دَ هغهٔ دَ لاسه ختمیږي.

بادشاه ته ئې چې واپس خبر راوړو نو هغه نور هم پریشانه شو، چې دا به څنګه چل وي؟ خو بادشاه اووئیل: "چې دې دومره وخت پس ایله دا څوارلس خختې راپریوتې دي نو چې دا دومره حکومتونه ورانیږي نو په دې به وخت لګي".

دا خوب ریښتیا رااوتو؛ څهٔ ملکونه دَ نبي ﷺ په زمانه کښې فتح شول او څهٔ دَ عمر رضی الله عنه پهٔ دور کښې او نور دَ عثمان رضی الله عنه پهٔ دور کښې فتح شو.

نو داسې نا آشنا نا آشنا مناظر دَ نبي ﷺ دَ پیدائش پهٔ وخت کښې راغلي وو.

**(۸) اتم نا آشنا حالت**

علماء کرامو لیکلي دي: "چې کله نبي ﷺ پیدا شو نو دَ هغهٔ دا پیدائش نا آشنا داسې هم وو چې نبي ﷺ مختون شوے وو (سُنَتْ وو)".

پهٔ دې کښې هم اختلاف دے، او دَ علماؤ پکښې درې (۳) اقوال دي:

(۱) یَو قول دا دے: چې نبي ﷺ سُنَتْ پیدا شوے وو. پیدائشي سُنَتْ وو. چا ورله سُنَتْ نهٔ وو کړے؛ او دَ هغې وجه دا وه: چې دَ رسول الله ﷺ پهٔ عورت باندې دَ چا نظر اونهٔ لګي.

(۲) دویم قول دا دے: چې نبي ﷺ خپل نیکهٔ عبد المطلب پهٔ اومه ورځ سُنَتْ کړے وو.

(۳) دریم قول دا دے: چې نبي ﷺ چې حلیمه سعدیه دَ ځان سره بوتلے وو نو هلته کښې ئې ورله سُنَتْ کړے وو. خو دا یَو قول ضعیف دے. او دا مخکښې دوه قوله دَ علماؤ قوي دي: یا پیدائشي سُنَتْ وو او یا عبد المطلب سُنَتْ کړے وو.

بعضې محدثینو تطبیق کړے دے، وائي: نبي ﷺ سُنَتْ شوے پیدا وو خو کهٔ معمولي څهٔ فرق وو نو عبد المطلب سُنَتْ کړو. اکثر ماشومان داسې وي، ډاکټران وائي: دَ دهٔ سُنَتْ ته ضرورت نشته دے. او کهٔ معمولي ضرورت ورته وي نو بیا ئې سُنَتْ کړي. نو دغه شان نبي ﷺ هم وو: چې پیدائشي سُنَتْ وو خو لیکن بیا هم عبد المطلب دَ احتیاط دپاره سُنَتْ کړو. نو پهٔ دې صورت کښې دا دواړه اقوال صحیح شول.

نو دا هم یَو نا آشنا خبره وه: چې نبي ﷺ سُنَتْ شوے پیدا وو. بیا دَ نبي ﷺ عقیقه، دَ هغهٔ نوم دا به ورپسې جُمعه کښې وایُو، ان شاء الله.

الله رب العزة دې دا خبرې زمونږ علم او عمل کښې راولي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه څلورمه

## "دَ نبي ﷺ عقيقه، تسميه او رضاعت"

بتاريخ: 2021-12-31

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سیرة النبي ﷺ حصه څلورمه

## "دَ نبي ﷺ عقیقه، تسمیه او رضاعت"

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾.[1]

حاضرینو عزتمندو مسلمانانو رونړو! پۀ مخکښې جُمعه کښې دَ رسول الله ﷺ دَ سیرت څۀ حصه بیان شوې وه. تردې ځائے پورې خبره راغلې وه: چې دَ رسول الله ﷺ دَ ولادت پۀ وخت کښې یا دَ ولادت نه مخکښې چې کوم امور خارقه للعادة وو، نا آشنا نا آشنا حالات وو کوم چې آمنې بي بي لیدلي وو یا نورو خلقو لیدلي وو، فارس، روم والا لیدلي وو چې دَ هغې نه هغوي پوره پریشانه شوي وو، دَ هغې تذکرې شوې وې.

### دَ نبي ﷺ دَ پلار وفات

رسول الله ﷺ چې دنیا ته راغلے نو علماؤ لیکلي دي: "چې دَ نبي ﷺ پلار دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش نه مخکښې وفات شوے وو".

نبي ﷺ لا دَ مور پۀ ګېډه وو، حمل وو چې دَ هغۀ پلار عبد الله وفات شو. علماؤ لیکلي دي: چې دَ نبي ﷺ پلار عبد الله پۀ لاره کښې پۀ مدینه کښې وفات شوے وو. هغه وخت کښې دَ نبي ﷺ

---

(1) [سورة التوبة: 128].

خاندان پۀ مکه کښې اوسیدو.

## دَ عبد الله شام ته دَ تجارت دپاره تلل

دَ عربو دا طریقه وه: چې هغوي به تجارتونه کول پۀ اوښانو او خرو باندې، او اوږدۀ اوږدۀ سفرونه به وو پۀ میاشتو میاشتو او پۀ کلونو کلونو باندې، هغې زمانه کښې نۀ څۀ خطونه وو، نۀ څۀ ټیلیفونونه وو، نۀ څۀ نورې رابطې وې. عبد الله شام ته دَ تجارت دپاره روان شو. او هغه تجارتونه به یواځې نۀ کیدل. نور ملګري به ورسره هم ملګري شول، یَو قافله به جوړه شوه، هغې قافلې سره به تلل. عبد الله دَ قافلې سره روان شو. کله چې هغه قافله مدینې ته اورسیده نو عبد الله هلته کښې بیمار شو. قافلې والا ورله څۀ دم درود اوکړو، دوائي ئې اوکړه خو دے دَ هغوي سره تلے نۀ شو. نو هغوي خو تجارت له تلل. دَ عبد الله ماماخیلي چې وه هغه مدینه کښې وه بنو نجّار، نو دے دَ هغه خپلې ماماخیلۍ سره پاتې شو، چې تاسو ځئ او زۀ خو بیمار یم تلے نۀ شم. نو قافله ترې لاړه. دلته مکه کښې چا ته پته نۀ وه: چې ګني عبد الله بیمار دے او مدینه کښې پاتې شوے دے، ژوندے دے یا مړ دے؟ دَ دوي خو دا خیال وو چې تجارت له لاړو، او الله رب العزة به ورله ګټه ورکړي او واپس به راځي.[1]

## دَ عبد الله باره کښې دَ عبد المطلب تپوس

قافلې چې هر څومره وخت تیر کړو. چې واپس مکې مکرمې ته راغلل، تاجران راغلل، ټول ملګري راغلل خو یَو عبد الله ورسره نۀ وو. عبد المطلب تپوس اوکړو: "چې زما ځوي عبد الله څۀ شو؟". نو قافلې والا ورته اووئیل: "چې عبد الله خو مونږ سره تجارت ته نۀ دے تلے. مونږ سره وو خو چې مدینې منورې ته لاړو نو مدینه کښې هغه بیمار شو، مونږ ترې لاړو او هغه دَ ماماګانو ځائے کښې مدینه کښې حصار شو. عبد المطلب ته چې دا خبر میلاؤ شو نو دَ هغۀ مشر ځوي وو حارث، هغۀ ته ئې اووئیل: چې شابه! ځان اورَسوه زور به دې بیمار وي، هلته نه ئې راوله چې علاج معالجه ورله اوکړو. دے چې لاړو ماماګانو کره نو عبد الله نۀ وو، دۀ تپوس اوکړو: چې

(1) انظر: "سیرة المصطفى": (57/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (51/1).

عبد الله څهٔ شو؟ هغوي ورته اووئيل: چې هغه خو يَو مياشت دلته پروت وو، مونږ ورته ډير علاجونه او دوايانې اوکړې، آخر سرے ښهٔ نهٔ شو، وفات شو، او مونږ دفن کړو.

هغه وخت کښې دَ جنازو تذکرې نهٔ وې، دَ جاهليت زمانه وه، او هسې هم مونږ وئيل: کهٔ خبر شي نو مُړي سره به څهٔ کوي؟ نو پهٔ دې وجې مونږ وئيل کهٔ کله هم خبر شول بس خبر به شي، مونږ دغسې کار کړے دے: چې مياشت مونږ کره پروت وو، بيا وفات شو او مونږ دفن کړو. نبي ﷺ پهٔ هغهٔ وخت کښې لا دَ مور پهٔ خيټه کښې وو، حمل وو چې پلار ئې وفات شو.[1]

## دَ عبد الله دَ وفات کيدو وخت کښې عمر

پهٔ دې خبره کښې دَ علماؤ اختلاف دے چې عبد الله چې وفات کيدو نو دے دَ څومره عمر وو؟ نو څوک وائي: دَ ديرشو (۳۰) کالو پهٔ عمر کښې وفات شوے وو. څوک وائي: پنځوس (۵۰) کاله عمر ئې وو. او څوک وائي: دَ اتلسو (۱۸) کالو وو. امام سيوطي رحمه الله دې له ترجيح ورکوي: چې عبد الله دَ اتلسو (۱۸) کالو پهٔ عمر کښې وفات شوے وو.[2]

نبي ﷺ لا پيدا نهٔ وو چې پلار ئې وفات شو. دَ دهٔ دَ وفات نه بعد الله تعالیٰ نبي ﷺ پيدا کړو. نبي ﷺ ته ترونه او نيکهٔ ډير زيات خوشحاله وو. وائي: ځکه زمونږ هغه ځوي خو هسې هم نشته دا دَ هغهٔ نه پس مرګي ځوي دے نو دَ هغهٔ پهٔ نظر به دهٔ ته ګورو. نو نبي ﷺ پيدا شو.

چې کله نبي ﷺ پيدا شو نو دَ ابولهب وينزه وه (روستو دَ دې وضاحت کوو) نو هغه پهٔ منډه منډه ابولهب ته راغله او ابو لهب ته ئې اووئيل: "چې مبارک شه! ستا پس مرګي ورارهٔ اوشو. ستا دَ هغه رور دَ وفات نه پس الله دَ هغهٔ ځوي پيدا کړو". ابو لهب دَ ډيرې خوشحالئ نه هغه وينزې ته اووئيل: "چې تا ما ته زما دَ ورارهٔ زيرے راواورَسَولو نو "فَأَنْتِ حُرَّةٌ" تهٔ آزاده ئې".

ابو لهب دَ ډيرې خوشحالئ نه وينزه دَ غلامئ نه آزاده کړه.

## دَ نبي ﷺ عقيقه

عبد المطلب هم ډير زيات خوشحاله وو. دا طريقه دَ پخوانه راروانه وه چې دَ ماشوم پهٔ

(1) انظر: "الطبقات": (61/1)، و"شرح الزرقاني على المواهب": (109/1).

(2) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (109/1).

پيدائش كښې به هغوي عقيقه كوله. چې هلک پيدا شي نو دوه ګډان حلالول دي، او كۀ جينۍ پيدا شي نو يَو څاروے به حلالَوې، چې دَ كال څاروے وي او قرباني پرې كيږي. عبد المطلب پۀ اوومه ورځ عقيقه اوكړه او ټولو قريشو له ئې دعوت وركړو، چې راځئ به! زما نوَسے شوے دے، دَ هغۀ عقيقه ده. نو دَ نبي ﷺ عقيقه اوشوه.[1]

**نبي ﷺ له نوم كيخودل**

نو پۀ اوومه ورځ عقيقه هم وي او پۀ اوومه ورځ به ماشوم له نوم هم ايږدي. نو عبد المطلب نبي ﷺ ته نوم كيخودو "محمد". قريشو ورته اووئيل: چې عبد المطلبه! عجيبه سړے ئې تا خو دۀ ته داسې نوم كيخودو چې دا خو چرته ستا پۀ پلارانو، نيكونو او خاندان كښې چرته داسې نوم نۀ دے تير شوے او نۀ عربو چرته داسې نوم كيخودلے دے. عبد المطلبه دا ولې تاسو داسې نوم كيخودو؟ نو عبد المطلب ورته خپل يَو خوب بيان كړو: چې ما يَو خوب ليدلے وو پۀ كوم وخت كښې چې دا ماشوم لا شوے نۀ وو، حمل وو.... هغه خوب دا دے:

**(١) اوله وجه دَ كيخودو دَ "محمد" نوم: دَ عبد المطلب خوب ليدل**

عبد المطلب دا محمد نوم ځكه خوښ كړے وو؛ چې بعضې علماؤ ليكلي دي: چې عبد المطلب يَو خوب اوليدو او پۀ خوب كښې ئې دا اوليدل: "چې الله رب العزة زما دَ شاه نه يَو زنځير راښكاره كړو، يَو زنځير ئې جوړ كړو او هغه زنځير څلور شاخونه وو: يَو سر ئې بره لاړو آسمان طرف ته، يَو سر ئې زمكې طرف ته راغلے، يَو سر ئې مشرق طرف ته لاړو او بل سر ئې مغرب طرف ته لاړو. او بيا مې كتل چې: دَ دې نه بعد دَ هغې زنځير نه يَو اونه جوړه شوه او دَ هغې اونې شاخونه ګير چاپيره خوارۀ شول او دَ هغې هغه هر يَو شاخ كښې پاڼړې وې، او هغې كښې داسې رڼرا وه چې داسې رڼرا دَ نمر هم نۀ وه، دَ نمر دَ رڼرا نه هغه اويا (٧٠) درجې سېوا وه".

خوب ئې چې اوليدو نو معبِّرين ئې راغونډ كړل چې: دَ دې خوب تعبير راته اوباسئ؟ معبِّرينو ورته اووئيل: "چې دَ دې تعبير داسې معلوميږي چې ستا پۀ خاندان او نسل كښې به الله تعالٰى داسې يَو هلک پيدا كوي چې دَ هغۀ ملګري او تابعدار به پۀ دنيا كښې خوارۀ وي، مشرق او

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (72/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (63/1).

مغرب ته به رسيږي او په زمکه او آسمان به دَ هغهٔ تعريفونه او صفتونه کيږي".
عبد المطلب دا هم ليدلي وو: "چې څهٔ خلق دَ هغې اونې خواته راځي او هغه رانيسي او هغې سره کښيني او هغې سره خوشبوياني اخلي، رنړاکانې اخلي او څهٔ خلق دَ هغې هغه لښتې رانيسي او دَ هغې دَ کټ کولو کوشش کوي چې کټ ئې کړي. خو چې کله څوک دَ کټ کولو پهٔ اراده ورځي نو هلته کښې يَو ښائسته نوجوان ولاړ دے او هغه ئې روستو واپس کوي او ورته ئې نهٔ پريږدي".
نو معبّرينو دَ هغې تعبير داسې اوويستو: "چې دَ دهٔ تابعدار به الله تعالی دنيا کښې ډير کړي، مشرق او مغرب کښې به ئې تابعدار وي، زمکه او آسمان کښې به ئې خلق صفتونه کوي او چې څوک دَ دهٔ خلاف کوي نو الله به داسې خلق پيدا کوي چې دَ دهٔ نه به دفاع کوي".
عبد المطلب چې دا تعبير واوريدو نو راغلے او خپلې اينکور ته ئې اووئيل: "چې ما داسې خوب ليدلے دے... او ما ته معبّرين وائي: چې تا لره به الله ستا پهٔ نسل کښې داسې يَو کس پيدا کوي نو زما پهٔ خيال هغه به هم دا وي چې ستا پهٔ خيټه کښې کوم حمل دے. دَ دې ډير خيال ساته".
نو چې کله پيدا شو هغه خبره خو دَ هغهٔ پهٔ ذهن کښې وه نو پهٔ دې وجه ئې دې ماشوم ته نوم کيخودو: "محمد".(1)

### (۲) دويمه وجه دَ محمد نوم دَ کيخودو

دَ محمد نوم ئې ورله ولې کيخودو؟ دَ دې بله وجه داده: چې دَ "محمد" معنٰی ده: "هغه شخصيت چې پهٔ تمام جهان کښې دَ هغهٔ تعريفونه او صفتونه شوي وي". هر څوک دَ هغهٔ تعريفونه کوي، هر څوک دَ هغهٔ مدحې کوي؛ ځکه ئې ورته دَ "محمد" نوم کيخودو. بعضې وائي: چې نوم ئې ورله احمد کيخودو. دَ رسول الله ﷺ کنړ نومونه دي. "صحيح البخاري" کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي:

«لِي خَمْسَةُ أَسْمَاءٍ: أَنَا مُحَمَّدٌ، وَأَحْمَدُ وَأَنَا المَاحِي الَّذِي يَمْحُو اللهُ بِيَ الكُفْرَ، وَأَنَا الحَاشِرُ الَّذِي يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى قَدَمَيَّ، وَأَنَا العَاقِبُ».(2)

(1) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (270/4).
(2) أخرجه البخاري في كتاب المناقب، باب ما جاء في أسماء رسول الله ﷺ، برقم: (3532)، ومسلم في كتاب الفضائل، باب في أسمائه ﷺ: (2354).

دَ الله نبي ﷺ فرمائي: "زما پنځهٔ نومونه دي: زهٔ محمد يم، زهٔ احمد يم، زهٔ ماحي يم هغه چې الله به زما پهٔ وجه کفر ختموي، او زهٔ حاشر يم هغه چې خلق به زما پهٔ قدمونو راپورته کولے شي او زهٔ عاقب يم".

نو صرف يَو نوم ئې نهٔ دے پنځهٔ نومونه دي حديث کښې ذکر شول او دَ هر يَو خپل خپل مطلب دے:

(۱) دَ محمد معنٰى: دا چې کله مبني للمفعول شي نو معنٰى: ډير صفت ئې شوے دے. او کهٔ محمد مبني للفاعل شي نو بيا ئې معنٰى دا ده: چې ډير صفت او حمد ويونکے دَ الله.

(۲) دَ احمد معنٰى ده: دَ ډيرو صفتونه والا.

(۳) دَ ماحي معنٰى: ورانونکے. زهٔ هغه شخص يم، هغه انسان يم چې يَمْحُو اللهُ بِيَ الكُفْرَ الله به زما پهٔ وجه باندې کفر ختموي، او ورانَوي به ئې، دَ دنيا نه به دَ کفر څادر لرې شي.

(٤) دَ "وَأَنَا الحَاشِرُ الَّذِي يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى قَدَمَيَّ" معنٰى: او زهٔ حاشر يم. دَ حاشر معنٰى دا: چې دا خلق به زما پهٔ قدمونو راژوندي کيږي. يعني زما نه روستو به دا خلق راژوندي کيږي، پهٔ قيامت کښې به اول الله تعالى ما راژوندے کوي.

(٥) او بل نوم زما "عاقب" دے: "الَّذِي لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ".[1] "عاقب هغه چا ته وائي: چې دَ هغهٔ نه پس بل نبي نهٔ راځي". دَ عاقب معنٰى علامه ابن حجر عسقلاني رحمه الله پهٔ "فتح الباري" کښې کړې ده: "الَّذِي لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ".[2] "عاقب هغه وي چې دَ هغهٔ نه بعد بل نبي نهٔ وي".

او "صحيح مسلم" کښې پهٔ دې روايت کښې باقاعده دا زيادت (الَّذِي لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ") راغلے دے. لکه حواله مخکښې تيره شوه.

دا پنځهٔ نومونه پهٔ خپله نبي ﷺ ځان ته بيان کړي دي.

**دوه مشهور نومونه**

او دَ نبي ﷺ دوه مشهور نومونه داسې دي چې دا ډير مشهور دي: يَو محمد او بل احمد. او دا دواړه نومونه دَ نبي ﷺ پهٔ قرآن کښې هم ذکر شوي دي: محمد نوم دَ نبي ﷺ سورة الفتح کښې

(1) أخرجه مسلم في كتاب الفضائل، باب في أسمائه ﷺ: (2354).

(2) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (557/6).

راځي، الله رب العزة فرمائي:

﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾.[1]

"محمد رسول دَ الله دے. او هغۀ کسان چې دَ دۀ سره دي سختي کونکې دي پۀ کافرانو باندې او نرمي کونکي دي پۀ خپل مینځ کښې".

نو دَ نبي ﷺ محمد نوم الله پۀ قرآن کښې بیان کړے دے.

دویم نوم: دَ نبي ﷺ "احمد" دے، سورة صف کښې راځي: الله تعالیٰ فرمائي:

﴿وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ﴾.[2]

"او یاد کړه هغه وخت چې وئیلي وو عیسیٰ ځوي دَ مریم ﷺ اے بني اسرائیلو! یقینًا زۀ پیغمبر دَ الله یم تاسو ته، ریشتونے ویونکے یم هغۀ څۀ ته چې مخکښې زما نه دي یعني تورات ته، او زیرے درکونکے یم تاسو ته پۀ یَو پیغمبر سره چې زما نه به روستو راځي نوم دَ هغۀ به "احمد" وي".

نو دَ نبي ﷺ نومونه احمد او محمد دا دواړه قرآن کښې راغلي دي. او پۀ دې دواړو نومونو کښې ماده دَ حمد ده. حمد صفت جمیله ته وائي. معنیٰ نبي ﷺ داسې پیغمبر دے، دَ دۀ به داسې اوصاف حسنه وي، داسې ښائسته خویونه به ئې وي چې هر څوک به دَ دۀ صفت کوي او هر څوک به پۀ دۀ باندې مئین وي.[3]

**شعر**

دَ دې وجې نه بعضې علماؤ لیکلي دي: چې دَ ابو طالب یَو شعر دے. او څوک وائي: چې دَ حسان ﷺ شعر هم داسې شته دے. وائي:

وَشَقَّ لَهُ مِنَ اسْمِهِ لِيُجِلَّهُ    فَذُو الْعَرْشِ مَحْمُودٌ وَهَذَا مُحَمَّدُ[4]

---

(1) [سورة الفتح: 29].

(2) [سورة الصف: 6].

(3) انظر: "سيرة المصطفى": (73/1).

(4) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (555/6).

"الله رب العزة دَ دهٔ دپاره نوم دَ خپل نوم نه راویستلے دے، نو خاوند دَ عرش محمود دے او دا محَمّد دے".

نو الله رب العزة دَ خپل نبي ﷺ دپاره داسې نوم منتخب کړو او تجویز ئې کړو چې هغې دَ الله دَ نوم سره مشابهت لرلو، دَ هغې نه راوِیستلے شوے دے؛ ځکه دَ عرش دَ مالک نوم محمود دے او محمد دَ هغهٔ دَ بنده نوم دے او هغه محمد دنیا کښې دے.

نو دَ نبي ﷺ دا نوم (محمد) دَ هغهٔ نیکهٔ خوښ کړے وو.

**(۳) دریمه وجه دَ محمد دَ نوم کیخودو**

بعضې علماؤ لیکلي دي: چې دا نوم ئې ورله ځکه کیخودو؛ چې دا عبد المطلب ته الله پهٔ زړهٔ کښې اچولے وو. نو هغې خوب لیدو ته څهٔ ضرورت هډو رانغلے. بس زړهٔ کښې ورته الله داسې واچول. او دا هغه نوم وو چې دَ نبي ﷺ دَ راتلو نه مخکښې الله تعالیٰ دا پهٔ قرآن کریم کښې ذکر کړے وو، چې عیسیٰ العَلَيْهِ وئیلے وو: چې زما نه بعد به نبي راځي او دَ هغهٔ نوم به احمد وي. تورات کښې ئې هم دا نوم لیکلے وو. نو الله رب العزة دَ عبد المطلب زړهٔ کښې واچول چې دې نوَسي له دې محمد نوم کیږده؛ ځکه دا به هغهٔ رسول وي چې مبَشَّر بِلِسانِ عیسیٰ العَلَيْهِ وو.

نو دا هغه نبي ﷺ دے چې دَ دهٔ صفت هم ډیر شوے دے. دَ دهٔ امت له هم الله ډیر لوئي مقام ورکړے دے، دَ هغوي هم ډیر لوئي صفتونه شوي دي. یا دا چې: دا نبي ﷺ او دَ دهٔ امت به دَ الله حمد وثناء ډیره وائي.

**(٤) څلورمه وجه دَ محمد دَ نوم کیخودو**

یا دا وجه ده چې: دې امت له الله تعالیٰ پهٔ قرآن کریم کښې یَو سورت ورکړے دے چې هغه موسوم دے پهٔ "سورة الحمد" باندې، دَ هغې نوم سورة الفاتحه دے:

﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ * الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ * مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ * إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ * اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ * صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾.[1]

---

(1) [سورة الفاتحة: 2-7].

دیته سورة الحمد وائي. معنٰی: هغه سورت چې دَ الله صفتونه دي پکښې. لکه الله تعالٰی دَ دې سورت باره کښې قرآن کښې فرمائي:

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ﴾.[1]

الله رب العزة فرمائي: "اے نبي ﷺ! مونږ درکړي دي تا لره اووهٔ هغه آیتونه چې بیا بیا لوستلے شي (مکرّرولے شي). او درکړے مونږ تا ته قرآن عظیم (لوئي)".

نو دا سورت الحمد دے او دَ نبي ﷺ نوم دے احمد او دَ دې امت نوم دے حمّادِین، دَ الله حمد ویونکي. دا نبي ﷺ او دَ دهٔ امت به هر حال کښې دَ الله حمد وائي.

**هر حال کښې دَ الله حمد وئیل**

"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی کُلِّ حَالٍ"، کوم نعمت چې هم ورته میلاویږي نو حمد وائي: لکه اوګوره! چې خوراک کوي نو هم دوي وائي:

"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ".[2]

"صفتونه دَ خدائیتوب خاص الله هغه ذات لره دي چې مونږ ته ئې خوراک راکړو او مونږ ته ئې څښکاک راکړو او مونږ ئې مسلمانان ګرځولي یُو".

او کهٔ څښکاک کوي نو هم وائي:

"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا".[3]

"صفتونه دَ خدائیتوب خاص الله هغه ذات لره دي چې خوراک ورکوي او څښکاک ورکوي او پهٔ آسانه سره تیرَوي دې لره او ګرځولي ئې ده دَ دې دپاره ځائے دَ وتلو".

کهٔ جامې اغوندي نو هم وائي:

"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ".[1]

---

(1) [سورة الحجر: 87].

(2) أخرجه الترمذي في أبواب الدعوات، بَاب مَا يَقُولُ إِذَا فَرَغَ مِنَ الطَّعَامِ، برقم: (3457)، وأبو داود في كتاب الأطعمة، بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا طَعِمَ، برقم: (3850)، واللفظ لهما.

(3) أخرجه أبو داود في كتاب الأطعمة، بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا طَعِمَ، برقم: (3851).

"صفتونه دَ خدائيتوب خاص الله هغه ذات لره دي چې ما ته ئې دا جامه واچوله او ما ته ئې رزق راكړے دے بغير دَ څهٔ ارولو زما نه او بغير دَ څهٔ طاقت زما نه".

نو چې كوم نعمت پرې الله كوي نو وائي: "الحمد لله". اودهٔ شوے دے دَ خوب نه چې راپاڅي نو وائي: «اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ».(2)

"صفتونه دَ خدائيتوب خاص الله هغه ذات لره دي چې مونږ ئې راژوندي كړو پس دَ مړهٔ كولو زمونږ نه، او خاص دغې الله طرف ته راپورته كيدل دي".

بس پهٔ هر ځائے كښې دَ الله حمد وائي؛ نو ځكه ئې نبي ﷺ ته دَ احمد نوم كيخودو او دَ دهٔ امت له ئې دَ حمّادين نوم كيخودو.

## (٥) پنځمه وجه دَ محمد نوم كيخودو

يا دا چې حمد اكثر دَ نعمت پهٔ آخر كښې وئيلے كيږي نو دَ دي نبي ﷺ نوم محمد ځكه دے چې دے دَ ټولو پيغمبرانو نه آخرنے پيغمبر دے.

## دَ جنتيانو آخري خبره

دَ دې وجې نه جنتيان به پهٔ جنت كښې ناست وي، كپ شپ به لګوي، خبرې اترې به كوي او چې كله مجلس ختموي نو آخر كښې به وائي:

﴿وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾.(3) "او آخري خبره به دَ جنتيانو دا وي چې: حمدونه دي الله لره، هغه الله چې دَ تمام عالَم پالونكے دے".

دغه شان چې سورت ختموي يا يو بحث ختموي نو وائي:

﴿سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ * وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ * وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾.(4)

---

(1) أخرجه أبو داود في كتاب اللباس، برقم: (4023).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الدعوات، باب ما يقول إذا نام، برقم: (6312)، ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والإستغفار، باب ما يقول عند النوم وأخذ المضجع، برقم: (2711). واللفظ لهما.

(3) [سورة يونس: 10].

(4) [سورة الصافات: 180-182].

"پاکي ده پالونکي ستا لره چې ربّ د عزت دے دَ هغه څۀ نه چې دوي ئې بيانوي او سلامتيا دې وي پۀ ليږلے شوو پيغمبرانو، او صفتونه دَ خدائېتوب دي الله لره چې پالونکے د مخلوقاتو دے".

نو ځکه ئې دَ نبي ﷺ نوم کيخودو محمد او يا احمد. او دَ دۀ امت شو "حَمَّادين".

## دَ نبي ﷺ دَ رضاعت مسئله

بله نا آشنا خبره دا چې: کله نبي ﷺ پيدا شو نو درې ځلور ورځې نبي ﷺ له خپلې مور پئ ورکولې. لا وړوکے دے مور سره؛ ځکه دَ مور تازه پئ هغه وخت کښې ډير ضروري وي نو درې ځلور ورځې نبي ﷺ ته مور پئ ورکړل. بيا دَ هغې نه بعد هغه وينزه ثويبه چې کومه ابو لهب آزاده کړې وه هغې به نبي ﷺ له پئ ورکول. ثويبه آزاده شوه خو دَ نبي ﷺ دَ خاندان نه نۀ تله. نو هغې رسول الله ﷺ له پئ ورکول.

## دَ نبي ﷺ فرمان مبارکه

دا ثويبه چې وه "صحيح بخاري" کښې حديث راځي، رسول الله ﷺ فرمائي:

«أَرْضَعَتْنِي وَأَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ».[1] "چې ما او ابو سلمه مونږ له ثويبې پئ راکړي".

نبي ﷺ او ابو سلمه پۀ خپله کښې رضاعي رونړه وو. دوي دَ ثويبه پئ ښنکلي وو.

دا يَو اختلافي مسئله ده: چې ثويبه بيا مسلمانه شوې ده او کۀ نۀ؟ پۀ دې کښې اختلاف دے: بعضې علماء وائي: چې دَ هغې نوم پۀ صحابياتو کښې نشته؛ لهٰذا هغه مسلمانه شوې نۀ ده. او امام ابو منده رحمه الله ثويبه پۀ صحابياتو کښې شماري. وائي: دا مسلمانه وه. والله أعلم.[2]

مسلمانه شوې وه او يا نۀ وه خو نبي ﷺ به دَ هغې ډير قدر کولو. وئيل به ئې: چې دا زما رضاعي مور ده، ما دَ دې پئ ښنکلي دي.

## دَ رضاعي مور خيال ساتل

کله چې دَ نبي ﷺ نکاح دَ سيدة خديجة الکبرٰی رضي الله عنها سره اوشوه نو يَو ځل ثويبه دَ نبي ﷺ پۀ خدمت کښې حاضره شوه. نو نبي ﷺ ورله ډير زيات قدر او عزت اوکړو.

---

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (124/9).

(2) أخرجه البخاري في كتاب النفقات، باب المراضع من المواليات وغيرهن، برقم: (5372).

بیا کله چې نبي ﷺ مدیني منورې ته هجرت اوکړو نو هلته نه چې به څوک مکې ته راتلل نو نبي ﷺ به وئیل: چې دا ثويبه ته يَوسه. وائي: دا زما رضاعي مور ده. نو دَ الله نبي ﷺ به ورله څۀ تحفه، هدیه رالیږله.[1]

نبي ﷺ دَ رضاعي میندو دومره خیال ساتلې دے.

کله چې مکه فتح شوه نو بیا خو دَ کافرانو زور ختم شو، پۀ مدینه کښې هم مسلمانان شول او پۀ مکه کښې هم مسلمانان شول. نو نبي ﷺ مکه کښې دے، تپوس ئې اوکړو: "چې هغه ثويبه به چرته وي چې لږ ورشم او ملاقات ئې اوکړم؟". بیا ئې اووئیل: "چې مسروح (دَ هغې يَو ځوي وو) به چرته وي؟". چې معلومات ئې اوکړل، چونکه وخت ډیر تیر شوے وو نو ثويبه هم بیا وفات شوې وه او ځوي ئې هم وفات شوے وو. بیا نبي ﷺ اووئیل: "دَ هغې خپلوان، دَ هغې رشته داران څوک شته دے؟". چا ورته اووئیل: "ولې؟".

نبي ﷺ اوفرمائیل: "چې کۀ نن ثويبه او دَ هغې بچے نشته نو چې زۀ دَ هغې خاندان سره احسان اوکړم". ځکه دَ يَو انسان سره دَ مرګ نه بعد احسان دا وي: چې دَ هغۀ خاندان او دَ هغۀ دَ رشته دارانو سره احسان اوکړې. دا پۀ زړۀ کښې مۀ وایه چې زما ملګري وو، بس لاړل ختم شول، او خبره ختمه شوه. نا! بلکه کۀ دَ هغۀ بچي وي دَ هغوي خیال اوساته، کۀ دَ هغوي رونړه وي دَ هغوي خیال اوساته، کۀ دَ هغۀ خاندان وي نو دَ هغوي خیال اوساته. دا چې کله ستا پوره مینه وي نو دَ هغۀ دَ مرګ نه بعد به مینه دا وي: چې دَ هغۀ خاندان سره مینه اوساتې.

بیا نبي ﷺ تپوس اوکړو: "کۀ څوک وي چې دَ هغوي سره زۀ تعاون اوکړم؟؛ ځکه چې ثويبې ما له يئ راکړي دي".

نو نبي ﷺ له ثويبې يئ ورکړي وو.

**دَ نبي ﷺ رضاعي مور حلیمه سعدیه رضي الله عنها**

بیا دَ ثويبې نه بعد حلیمه سعدیه رضي الله عنها نبي ﷺ له يئ ورکړي وو، چې دا بیا روستو مسلمانه شوې وه. نو دا هم دَ نبي ﷺ رضاعي مور وه.

(1) انظر: "سیرة المصطفٰی": (79/1).

**عربو به ماشوم دَ پیۍ دپاره باندوته لیږلو دَ څو وجوهو پهٔ بناء باندې**

دَ عربو دا طریقه وه: چې هغوي به خپل بچي له یَو څو ورځې پېۍ ورکړل نو بیا به هغوي خپل بچي له نور پېۍ نهٔ ورکول:

(۱) **اوله وجه:** وائي: دا ځکه چې دَ دې سره زنانه کمزورې کیږي.

(۲) **دویمه وجه:** دا چې دَ بلې زنانه پېۍ ماشوم څښکي نو دې سره صحت ښهٔ کیږي.

(۳) **دریمه وجه** دا وه: چې دوي به بیا دا ماشوم باندو ته لیږو؛ ځکه چې دَ باندو اوبهٔ صفا وي، موسم ئې هم صفا وي، هواء ئې هم صفا وي پهٔ نسبت دَ ښاریو باندې. نو پهٔ دې وجه به دوي ماشوم دَ باندو زنانو ته ورکولو دَ پیۍ دپاره. آب وهواء ئې هم صفا وي نو ماشوم به دَ بیمارو نه بچ وي.

(٤) **څلورمه وجه** به دا وه: چې دَ باندو دَ خلقو ژبه به ډیره فصیحه وه او عربو کښې خو دَ عربیت ډیره مینه وه. زمونږ خلقو خو ژبې ختمې کړې، چا پکښې دَ اُردو ټکي وردننه کړل او چا پکښې دَ هندکو وردننه کړل، چا پکښې دَ انګلش ټکي وردننه کړل. پهٔ پته به نهٔ پوهیږي چې دا دے څهٔ وائي؟ پښتون به درسره پښتو وائي او ته به پرې نهٔ پوهیږې. نو عربو کښې دا خبره وه چې هغوي به صفا عربي وئیله. نو دَ ښار دَ خلقو ژبه کښې خامخه څهٔ نا څهٔ ټکي دَ نورو ژبو وردننه شي خو دَ باندو ژبه صفا وي، مورنۍ ژبه وي.

نو دوي به دا خپل بچي لیږل چې هلته به ښهٔ صحت مند هم شي او بیماریږي به نهٔ ډیر، دلته کښې دَ دهٔ مور به هم ډیره نهٔ کمزورې کیږي او ژبه به هم ښهٔ یاده کړي. نو نبي ﷺ پخپله حلیمې رضي الله عنها دَ ځان سره بوتلے وو.

حلیمه سعدیه رضي الله عنها پخپله خپله واقعه بیانَوي، وائي: "مونږ دَ باندو زنانه به پهٔ خپله یَو ځل پهٔ کال کښې راتلو. مونږ به دَ مکې او دَ اطرافو دَ زنانو نه تپوسونه کول: چې کهٔ دَ چا ماشومان شوي وي او دَ پیۍ دپاره ئې ورکوي نو چې مونږ ئې دَ ځان سره بوځو؟ وائي: زهٔ او زما خاوند راغلو، داسې دور وو چې ډیره غریبي وه، ډیره کمزوري وه، دَ خوراک څهٔ نهٔ میلاویدل او قحط وو، بارانونه نهٔ کیدل، کیاکانې هم نهٔ وې، فصلونه هم نهٔ وو. خو بس یَو تپه غوندې اوښه وه او یَو راسره خر وو، پهٔ هغې باندې راغلو. او نورې زنانه هم ډیر شے راغلې".

نو حلیمه سعدیه ﷺ وائي: " دا نور څاروي تیز وو او زما اوښ تیز نهٔ شو تلے؛ ځکه لوږې تندې خراب کړے وو، او زهٔ هم دَ بدن نه کمزورې اوم او زما سره یَو بل بچے وو هغه هم ډیر کمزورے وو. وائي: قسم دے! چې پهٔ دغې وجه باندې ما کښې یئ هم نهٔ وو، ما به خپل بچے نهٔ شو مړولے! او نورې ښځې زما نه مخکښې راغلې وې هغوي کتل چې ځان له ماشومان پیدا کړي".

وائي: "دَ نبي ﷺ دا کور چې وو پهٔ هغې باندې دا ټول تیر شوي وو، خو هغوي دا ماشوم نهٔ راغستو. ولې؟ نو وائي: دا يئ خو به ئې دَ الله دَ رضا دپاره نهٔ ورکول، بلکه دَ هغوي مطلب به دا وو: چې دَ دهٔ پلار به راته پیسې راکړي، تنخوا به راکړي. نو هر چا به وئیل: چې دا یتیم دے او دَ دهٔ پلار نشته دے، نو کهٔ مونږ دے بوځو نو مونږ له به بیا پیسې څوک راکوي؟ نو ټولو زنانو به دَ دهٔ نه ډډه کوله".

نو وائي: "زهٔ اوګرځیدم او ما ترې هم ډډه اوکړه، خو چې اوګرځیدم اوګرځیدم او څوک راته میلاؤ نهٔ شو او نورو زنانو خو یَو یَو ماشوم پیدا کړو او ځان سره ئې روان کړو. او زما دپاره څوک میلاؤ نهٔ شو نو ماخپل خاوند ته اووئیل: چې دغسې ځو او کهٔ نه دا یتیم بچے دَ ځان سره بوځو؟ نو ما ته مې خاوند اووئیل: چې دغسې ځو نو دَ دې نه ښهٔ دا ده: چې دا یتیم دے، دے به دَ ځان سره بوځو ځه! څهٔ خو به راکړي کنه او کیدے شي دَ دې یتیم پرورش اوکړو، او الله مونږ له خیر او برکت راکړي".

**دَ حلیمې سعدیه ﷺ قول**

او هغه شان اوشوله. الله ورته ډیر خیر ورکړو. حلیمه ﷺ خپل خاوند ته وائي:

"وَاللهِ إِنِّيْ لَأَكْرَهُ أَنْ أَرْجِعَ مِنْ بَيْنِ صَوَاحِبِيْ لَيْسَ مَعِيَ رَضِيْعٌ، لَأَنْطَلِقَنَّ إِلٰى ذٰلِكَ الْيَتِيْمِ فَلَآخُذَنَّهٗ".

"زما دې پهٔ الله قسم وي! تش نهٔ ځو، زهٔ دا بده ګڼړم چې زهٔ دې داسې واپس ښمه او زما ملګرو سره دې ماشومان وي. هغهٔ یتیم له به ځم او هغهٔ به ځان سره بوځم".

خاوند ئې ورته وائي: "لَا عَلَيْكِ أَنْ تَفْعَلِيْ، عَسَى اللهُ أَن يَّجْعَلَ لَنَا فِيْهِ بَرَكَةً".[1]

"پهٔ تا باندې څهٔ حرج او تنکسیا نشته دے کهٔ تهٔ دا کار کوې، نزدې ده چې الله به مونږ له پهٔ دهٔ کښې برکت او خیر واچوي".

وائي: "زړهٔ مې ډیر نهٔ وو خو راوامې غستو. کله چې ما هغه ماشوم راواغستو او مونږ راروان شو".

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (173/1).

کوره! بنده چې څنګه ګمان اوکړي الله ورسره هغه شان معامله کوي. دوي وئیلي وو: چې الله تعالٰی به مونږ له په دۀ کښې برکت واچوي. نو الله ورله پکښې برکت واچولو. حلیمه رضي الله عنها وائي: "چې مونږ راروان شو او په لاره راتلو نو زما اوښه کښې بالکل يې نۀ وو او ډېره کمزورې وه او ما کښې هم يې نۀ وو. چې دا ماشوم مونږ راواغستو او په اوښه مو کېښنولو نو دَ اوښې غُلانز دَ پيؤ نه ډکه شوه او زما په سینه کښې هم الله تعالی يې پيدا کړل، اول به مې دا يو بچے نۀ شو مړولے بيا به مې دا دواړه بچي مړول او دَ اوښې غُلانز به هر وخت دَ پيؤ نه ډکه وه. او زما اوښه دَ تلو نۀ وه خو بيا مونږ هغې له چرته ګزار نۀ دے ورکړے. داسې روانه وه چې تا به نۀ وئيل: چې دا کُني هغه اوښه ده".

حلیمه سعدیه رضي الله عنها وائي: "کله چې مونږ خپل ځائے ته اورسیدو نو زما ګډې بيزې وې، څاروي وو، ګيا به نۀ وه، چې سحر به مې اوليږل او شپونکي ته به مې حواله کړل نو چې ماښام به ئې راوستل نو ټول به ښۀ ماړۀ وو، غُلانزې به ئې دَ پيؤ نه ډکې وې. او دَ نورو خلقو څاروي هغه به دَ لوږې نه خراب وو، يې به پکښې نۀ وو. هغوي به خپلو شپونکيانو سره جنګونه کول چې تاسو چرته لوبې کوئ! دَ فلانکي دَ شپونکيانو سره څاروي بوځئ چې ستاسو څاروي هم هغه شان مړېږي. هغوي به چرته بوتلل؟ زما څاروي به الله رب العزة غيبي مړول".

وائي: يَو ځل ما ته زما خاوند وائي: "تَعْلَمِيْ وَاللهِ يَا حَلِيْمَةُ! قَدْ أَخَذْتِ نَسَمَةً مُبَارَكَةً".[1]

"حلیمې! زما دې په الله قسم وي تۀ ښۀ پوهېږې چې تا يَو برکت نه ډک بچے راوستے دے".

چې دَ هغۀ په وجه الله رب العزة په مونږ باندې رحمتونه راورَوي، مونږ له الله خير او برکت راکوي.

نو حلیمه رضي الله عنها وائي: "زمونږ هر څۀ ډېر، څاروي ډېر، ګډې بيزې ډېرې، په هغې کښې يې ډېر، دَ هغې دپاره کياکانې ډېرې او هر څيز به ډېر ډېر ميلاويدو. نو دوي پوهه شول چې دا برکت ټول دَ دې ماشوم دَ وجې نه الله راورَوي".

بيا حليمې رضي الله عنها دا ماشوم دَ ځان سره حصار کړے دے. ان شاء الله راروانه جُمعه کښې به دَ هغې وضاحت کوو چې بيا په څۀ وجه هغې نبي ﷺ واپس راوستے وو؟ او بيا ئې څنګه بوتلو نو دا ټوله واقعه به بيا بيانوؤ ان شاء الله.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (173/1)، و"سيرة المصطفى": (81/1).

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

لَقَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولٞ مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ عَزِيزٌ عَلَيۡهِ مَا عَنِتُّمۡ حَرِيصٌ عَلَيۡكُم بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ رَءُوفٞ رَّحِيمٞ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه پنځمه

## "دَ نبي ﷺ دَ شق الصدر واقعه او دَ موربي بي وفات"

بتاريخ: 2022-01-07

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سیرة النبي ﷺ حصه پنځمه

## "دَ نبي ﷺ دَ شق الصدر واقعه او دَ موربي بي وفات"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لاَ أَوَّلَ لَهٗ وَلاَ آخِرَ لَهٗ لاَ ضِدَّ لَهٗ وَلاَ نِدَّ لَهٗ وَلاَ مُمِدَّ لَهٗ وَلاَ بَشِيْرَ لَهٗ وَلاَ نَذِيْرَ لَهٗ وَلاَ وَزِيْرَ لَهٗ وَلاَ مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾.[1]

حاضرینو عزتمندو مسلمانانو رونړو! په مخکښې جُمعه کښې دَ رسول الله ﷺ دَ سیرت څهٔ حصه مخکښې مونږ بیان کړې وه: "دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش حالات او بیا دَ پیدائش نه بعد مسئله دَ رضاعت دَ نبي ﷺ" هغه مونږ بیان کړې وه. چې حلیمې سعدیې دَ ځان سره بوتلے وو دَ پیؤ ورکولو دپاره، په هغې کښې چې کوم نا آشنا نا آشنا حالات وو، کوم برکات وو دَ رسول الله ﷺ هغه هم بیان شوي وو.

### دَ نبي ﷺ پهٔ ماشوموالي کښې حالات

نن جُمعه کښې دَ نبي ﷺ پهٔ ژوند کښې چې کوم حالات پیښ شوي وو دَ هغې تذکره کوو. دَ رسول الله ﷺ عمر چې دوؤ کالو ته اورسیدو، نو عام طور موده دَ رضاعت دوه کاله وي نو هغه موده دَ رضاعت پوره شوه نو حلیمې او دَ هغې خاوند نبي ﷺ واپس روان کړو؛ چې خپلې مور ته ئې حواله کړي. خو زړهٔ ئې نهٔ وو چې دا ماشوم هغوې ته حواله کړي؛ ځکه چې دَ هغهٔ سره کوم

(1) [سورة التوبة: 128].

برکتونه او خیرونه رانازلیدل نو دوي دَ دې پهٔ قطع کیدو باندې پریشانه وو. وائي: کهٔ دا ماشوم مونږ ورکړو نو دَ لوئي خیر نه به محروم شو، هغه برکت به بیا نهٔ وي، هغه خیر به بیا نهٔ وي، هغه لذت به بیا زمونږ دَ ژوند نهٔ وي. خو مجبوره وه، پردے ماشوم ئې څنګه حصار کړے وے. نو دوي لاړل، مکې ته روان شو.

کله چې هلته اورسیدل نو خبره خوره وه چې پهٔ مکه باندې وباء راغلې ده. وباء یَو بیماري ده چې پهٔ چا باندې چې اولګي نو هغه یَو څو ورځې بیمار وي، او بیا وفات شي. او دا یَو متعدّي بیماري وي، بل ته لګي. نو دوي اووئیل: کیدے شي اوس څهٔ سمے اوخوري، هسې هم دلته وباء راغلې ده.

**دَ حلیمې سعدیې رضی الله عنها دَ نبي ﷺ باره کښې منت کول**

نو حلیمې دَ رسول الله ﷺ مور ته منتونه شروع کړل دَ نبي ﷺ باره کښې. او ورته ئې اووئیل: "چې دا ماشوم به مونږه بوځو، دَ پیؤ موده خو پوره شوه. ګوره! زمونږ باندې دي، اطراف دي، صحراګانې دي نو هلته کښې بیمارئ او وباګانې دومره نهٔ وي او دا ښاریه ده هسې نه چې وباء ورباندې اولګي، دا ماشوم درنه ضائع نهٔ شي، مړ نهٔ شي".

نو چونکه هلته دا خبره مشهوره وه چې وباء بل ته لګي نو مور ئې هم اووئیل: چې هسې نهٔ چې رانه مړ شي. نو ورته ئې اووئیل: "څه! زما خوښه ده، ما اولیدو، ملاقات مې ورسره اوکړو، واپس ئې بوځئ". دوي ښځه او خاوند ډیر زیات خوشحاله شول، وائي: شکر دے چې ماشوم راته بیا میلاؤ شو. دوي ماشوم ځان سره واپس روان کړو او راغلل.

کله چې واپس راغلل او یَو څو میاشتې تیرې شوې نو بیا رو رو نبي ﷺ پهٔ ګرځیدو باندې شروع شو.

**دَ نبي ﷺ پهٔ ړومبئ پیره دَ شق الصدر واقعه**

نو بعضې علماء وائي: دَ نبي ﷺ دَ دغې راتلو نه یَو څو میاشتې بعد، او څوک وائي: دَ نبي ﷺ دَ عمر څلورم کال وو چې دَ نبي ﷺ دَ شق الصدر او دَ سینې دَ شلولو او دَ زړهٔ دَ شلولو هغه واقعه راپیښه شوه.

دَ نبي ﷺ نور رضاعي رونړه وو، دَ حلیمې بچي وو، نو ماشومان خاځه یواځې تنګیږي، نو هغوي به چې څاروي بوتلل نو مور به ورته وئیل: "دا محمد هم دَ ځان سره بوځئ لوبې به اوکړي، چکرې به

اووهي". نو دوي به دَ ځان سره نبي ﷺ هم بوتلو، لوبې به ئې اوکړې، چکر به ئې اووهلو، بيا به راتلل.

يَو ورځ دَ دهٔ رضاعي رور کور ته پهٔ منډه منډه راغے او مور ته وائي: "چې نن خو مې يَو نا آشنا ځيز اوليدو او شابيئ! خلق راغلل او محمد ئې اووژلو". مور ورته وائي: "څهٔ وو؟". دهٔ ورته اووئيل: "دوه کسان راغلل او سپينې جامې ئې اچولې وې او دواړو زمونږ هغه قريشي رور چې وو هغه ئې دَ دواړو لاسونو نه اونيولو او پهٔ زمکه ئې راواچولو او پهٔ چاړهٔ باندې ئې ورته سينه اوسيرله او دَ هغې نه ئې زړهٔ بهر رااوباسلو او اوس لګيا دي او ګنډي ئې. نو ما رامنډه کړه چې تاسو له خبر راورسوم".

دا اوس الله دوه فرشتې رالیږلې دي، هغوي دواړو نبي ﷺ دَ دواړو لاسونو نه اونيولو، دَ يَو لاس نه يَوې فرشتې او دَ بل لاس نه بلې فرشتې. او پهٔ زمکه ئې واچولو او دَ نبي ﷺ سينه ئې پهٔ مينځ دوه ټکړې کړه او دَ نبي ﷺ زړهٔ ئې دَ هغهٔ دَ سينې نه رابهر کړو، يَو دوه څاڅکي وينه وه چې هغه زړهٔ پورې انختې وه هغه ئې ترې نه لرې کړه. دا يَو فرشته هغې بلې فرشتې ته وائي: "چې دا دَ شيطان دَ وسوسې هغه ځائے دے دا ترې لرې کوو". نو هغه ئې ترې لرې کړو او بيا ئې واپس دَ نبي ﷺ هغه زړهٔ صفا سُتره اووينځلو او دَ واورې اوبهٔ ورسره وې پهٔ هغې باندې ئې يخ کړو، پهٔ هغې کښې ئې لږ ساعت کيخودو او بيا ئې واپس دَ نبي ﷺ زړهٔ پهٔ سينه کښې بند کړو، او بيا ئې زر زر اوګنډلو واقعه وه.

دلته نه دَ نبي ﷺ رضاعي مور حليمه ﷺ او دَ هغې خاوند خپې يَبله خپې او سرتور سر پهٔ ځنګلو کښې منډې وهي: چې چرته به محمد ﷺ مړ پروت وي. چې دوي راغلل نو نبي ﷺ داسې يَو ديوال سره ولاړ وو او رنګ دَ نبي ﷺ تک زيَړ وو. دوي ورته اووئيل: "څهٔ دي؟". نبي ﷺ اووئيل: "څهٔ خو شته نهٔ". بيا ئې دَ نبي ﷺ نه واقعه معلومه کړه، نبي ﷺ ورته خپله قيصه اوکړه: "چې داسې دوه کسان راغلل او زما سينه ئې اوسيرله، زړهٔ ئې رااويستو او دَ هغې نه ئې يَو دوه تور ټکي لرې کړل وائي: دا پکښې دَ شيطان هغه حصه ده او بيا ئې واپس زما زړهٔ پهٔ سينه کښې بند کړو". چې دوي ئې لَمَن اوچته کړه نو دَ نبي ﷺ پهٔ سينه باندې صرف يَو نخښه وه، لکه چې سړي آپريشن کړے وي او بيا ئې دَ آپريشن هغه زخم ګنډلے وي او هغه نخښه ئې پاتې وي، نو هغه نخښه صرف ښکاريده. او نوره دَ نبي ﷺ هغه سينه پهٔ لږ وخت کښې الله جوړه کړې وه.

دا نا آشنا واقعه وه چرته داسې شوې نهٔ وو نو حليمې رضي الله عنها سره غم شو: چې يره! پردے ماشوم مې راوستے دے او ما خو وئيل: "چې وباء پرې رانهٔ شي نو کهٔ دے رانه دشمنانو مړ کړو، دَ دې څهٔ پته لګي، نو دا خو به ما ته لويه مسئله جوړه شي".

## دَ حليمې رضي الله عنها نبي ﷺ واپس راوستل

حليمې رضي الله عنها نبي ﷺ بيا واپس راروان کړو او مور ته ئې ورته ټوله قصه اوکړه. چې زړهٔ مې پرې نهٔ کيږي خو دَ دغې وجې نه ئې راولَم، چې هسې نه چې څوک ئې رانه مړ کړي؛ دا ځل ئې خو ورته صرف سينه راکولاؤ کړې ده. اوس هغې وخت کښې خو هغه مسلمانه نهٔ وه، او نهٔ نبي ﷺ ته پيغمبري ميلاؤ شوې وه، نهٔ ورته دا پته وه: چې دا ملائک دي، او داسې قيصه اوشوه. وائي: څوک به وو، خو څوک سړي وو. حليمې رضي الله عنها سره غم شو نو پهٔ دې وجه ئې ماشوم راوستو او نبي ﷺ ئې خپلې مور ته حواله کړو چې دا ماشوم دې واخله. نو مور ئې ورته اووئيل: "چې نا! ما خو دَ دې ماشوم دَ پيدائش پهٔ وخت کښې ډير نا آشنا نا آشنا حالات ليدلي دي، زما دَ ربّ نه اُميد دے چې دے به الله نهٔ ضائع کوي". خو هغې ورله حواله کړو: "چې دے واخله".

## څلور پيرې دَ نبي ﷺ سينه کولاؤ شوې ده

مؤرخين ذکر کوي: دَ نبي ﷺ سينه مبارکه څلور کرته فرشتو کولاؤ کړې وه، زړهٔ ئې ورته بهر راويستلے وو:

(۱) يَو پيره خو دغه ماشوم والي کښې.

(۲) دويم ځل دَ نبي ﷺ عمر لس کاله وو. چې دَ نبي ﷺ سينه مبارکه سيرلے شوې وه: دوه فرشتې راغلې او دَ نبي ﷺ سينه ئې دَ دې مرئ نه واخلې تر دَ خيټې تر آخره حده پورې اوسيرله او دَ نبي ﷺ زړهٔ مبارک ئې رابهر کړو، وائي: دا پکښې دَ شيطان هغه حصه ده او بيا ئې اووينځلو. او بيا ئې دَ نبي ﷺ هغه زړهٔ واپس دننه کړو او سينه ئې ورله واپس اوګنډله.

(۳) پهٔ دريم ځل: نبي ﷺ دَ بعثت پهٔ وخت کښې چې کله الله پيغمبري ورکوله نو پهٔ دغه وخت کښې هم جبرئيل امين عليه السلام راغلے وو او دَ نبي ﷺ سينه مبارکه ئې سيرلې وه. زړهٔ ئې ورله راويستلے

رو او وینځلے ئې وو او بیا ئې ورله وردننه کړو. او ملغرې دَ حکمت او دَ ایمان ئې پکښې واچولې.

(٤) پهٔ څلورم ځل باندې چې نبي ﷺ کله دَ معراج پهٔ شپه باندې آسمان ته سیل کولو، چکز ته تلو نو پهٔ دې موقع باندې هم دَ رسول الله ﷺ سینه مبارکه مخکښې اوسیرَلے شوه او هغې نه بعد ئې ورله بیا زړهٔ رااُوېستلو او بیا ئې دَ زمزم پهٔ اوبو اووینځلو، دَ سرو زرو پهٔ لوښې کښې ئې ورته اوبهٔ راوړې وې، بیا ئې ورله زړهٔ دننه کړو او سینه ئې ورله اوګنډله.

نو څلور ځله دَ نبي ﷺ زړهٔ مبارک رابهر شوے دے. ملائکو رابهر کړے دے او سینه ئې ورله کولاؤ کړې ده. دَ شق الصدر دا واقعه څلور ځله راغلې ده. بعضې علماء وائي: پنځهٔ ځله راغلې ده خو دا قول ضعیف دے.

## دَسینې دَ سیرَلو (شلول) حکمت

علماؤ لیکلي دي: چې پهٔ دې کښې څهٔ حکمت وو چې څلور ځله ئې دَ نبي ﷺ سینه مبارکه کولاؤوله؟ پهٔ ماشوم والي کښې ئې دَ نبي ﷺ سینه کولاؤ کړه، زړهٔ نه ئې ورله هغه تور ټاکے او وینې لرې کړې وې؛ نو دا دَ دې غرض دپاره چې دَ نبي ﷺ زړهٔ ته شیطان وسوسې نهٔ اچوي. شیطان دَ انسانانو زړونو کښې وسوسې اچوي، چې دَ نبي ﷺ زړهٔ دَ شیطان دَ وسوسو نه محفوظ وي.

او پهٔ دویم ځل چې دَ لسو کالو عمر کښې وو بیا ئې دَ نبي ﷺ سینه مبارکه کولاؤ کړې وه؛ دَ دې دپاره چې دَ نبي ﷺ دا زړهٔ دَ لهو ولعب نه پاک شي؛ ځکه لهو ولعب سړے دَ الله دَ دین نه غافله کوي. انبیاء علیهم السلام خو دَ ماشوم والي نه شریف وي او عزتمند وي، ورانې نهٔ کوي، مستیانې نهٔ کوي، چرته غلط قدم نهٔ کیږدي.

## دَیحیی علیه السلام قول

دَ یحیٰی علیه السلام باره کښې راځي: دے وړوکے ماشوم وو. نو ماشومانو به ورته وئیل: "یحیٰی راځه! مونږ سره ملګرے شه، لوبې کوو". وائي: یحیٰی به ورته اووئیل:

"إِنَّا لَمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا!". "مونږ دَ لوبو دپاره نهٔ یو پیدا شوي".

مونږ دنیا ته دَ لوبو دپاره نهٔ یُو راغلې. دَ پیغمبرانو طبیعت دَ وړوکوالي نه صحیح وي. نو دَ لسو کالو

عمر کښې ماشومان لوبو پسې کرځي. جبرئیل امین او میکائیل علیهما السلام دَ نبي ﷺ سینه کولاؤ کړه، زړهٔ ئې ترې رااویستو او اوئې وینځلو؛ دَ دې دپاره چې دَ دهٔ دَ زړهٔ نه دَ لهو ولعب هغه ماده لرې کړي.

پهٔ دریم ځل دَ نبي ﷺ دَ بعثت پهٔ وخت کښې بیا ئې دَ نبي ﷺ سینه مبارکه اوشلوله او زړهٔ ئې ترې راویستو؛ پهٔ دې کښې حکمت دا وو: چې الله وحي رالیږي، دَ قرآن علوم رالیږي چې دا دَ رسول الله ﷺ پهٔ سینه کښې کیخودلے شي؛ ځکه دا برداشت کول او یادول هم آسان کار نهٔ دے. دا دیرش سیپارې قرآن نبي ﷺ ته پهٔ یَو ځل اوریدو سره پهٔ سینه کښې الله کیخودو. دَ دې دَ برداشت دپاره دَ نبي ﷺ زړهٔ وینځلے شوے وو.

او څلورم ځل باندې نبي ﷺ دَ آسمانونو سیل کولو، پهٔ بره تلو. نو پهٔ دومره بره تلو باندې دَ انسانانو پهٔ زړهٔ باندې بے هوشي راځي، انسان باندې څهٔ چل کیږي چې داسې نا آشنا عذابونه ویني او چې داسې نا آشنا منازل ویني. نو هر سړے هغه برداشت کولے نهٔ شي دَ هغهٔ پهٔ زړهٔ ورته څهٔ چل کیږي نو پهٔ دې وجه جبرئیل امین او میکائیل علیهما السلام دَ نبي ﷺ زړهٔ رااویستو او اوئې وینځلو؛ دَ دې دپاره چې دَ نبي ﷺ دا زړهٔ چې دے هغې کښې نورانیت وردننه شي او چې زړهٔ ئې وانوړي، زړهٔ ئې مضبوط شي. نو څلور ځله دَ شق الصدر واقعه پیښ راغلې وه.

**پهٔ اول ځل دَ سینې کولاؤلو کښې ئې په واوره کیخودلو، نو واورې ته څهٔ ضرورت وو؟**

پهٔ اول ځل ئې چې دَ نبي ﷺ سینه کولاؤ کړه نو حدیث کښې راځي: دَ واورې اوبهٔ وې او واوره هم پکښې وه پهٔ هغې کښې ئې دَ نبي ﷺ دا زړهٔ وینځلے وو. نو دَ واورې اوبو ته څهٔ ضرورت وو؟

علماؤ لیکلي دي: چې دَ واورې اوبو ته ضرورت دا وو: چې دا واوره چې ده، پهٔ دې کښې برودت دے، یخ والے دے او پهٔ ګناهونو کښې حرارت او ګرمائش دے؛ نو دَ دې وجې نه ئې دَ نبي ﷺ زړهٔ پهٔ واوره باندې اووینځلو چې دَ ګناه هغه ماده ترې بالکل ختمه شي، هغه حرارت او ګرمائش ترې ختم شي. دغه وجه ده اثر دَ ګناه ګرم دے، چې اُور دَ جهنم دے هغه هم ګرم دے.

**ګناه کښې حرارت وي**

الله ربّ العزة فرمائي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾.(1)

---

(1) [سورة الفتح: 29].

"یقینًا هغه کسان چې هغوي دَ یتیمانانو مالونه پهٔ دهوکې او ظلم باندې خوري یقینًا دوي پهٔ خپلو خیټو کښې اُور اچوي او زر دے چې دننه به شي دوي اُور کرم ته".

نو کوره! دَ یتیم مال خوړل داسې دي لکه اُور خوړل؛ ولې دَ دې سزا دَ جهنم اُور دے کنه. نو کناه کښې حرارت وي.

## دَ صدقې ترغیب

دَ صدقې متعلق نبي ﷺ فرمائي: چې صدقه ورکوئ! ولې؟؛ ځکه چې:

«وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ».(1)

"صدقه کناه مړه کوي لکه ځنګه چې اُوبهٔ اُور مړ کوي".

نو صدقه چې ده نو هغه کناه داسې سړوي لکه ځنګه چې اوبهٔ سرے پهٔ اُوز باندې وارَوي نو اُور مړ شي نو داسې دَ صدقې سره کناه ختمیږي.

نو دَ کناه مثال دَ الله نبي ﷺ دَ اُور سره ورکړو او دَ صدقې مثال ئې دَ اُوبو سره ورکړو. نو چې اُور بل شي نو دَ هغې علاج څهٔ دے؟ پهٔ هغې اوبهٔ اړول، نو چې کناهونه درنه شوي دي نو صدقه ورکول چې تهٔ صدقه ورکوې نو ستا کناهونه به پرې الله تعالٰی ختموي.

## دَ غُصې علاج

او دغه وجه ده چې غُصه کناه ده او دَ دې علاج یخې اوبهٔ څښکل دي، پهٔ یخو اوبو اودس کول دي. نبي ﷺ فرمائي:

«إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ، وَإِنَّ الشَّيْطَانَ خُلِقَ مِنَ النَّارِ، وَإِنَّمَا تُطْفَأُ النَّارُ بِالْمَاءِ، فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ».(2)

"یقینًا غُصه دَ شیطان یَو وسوسه وي او یقینًا شیطان چې دے نو دے دَ اُور نه پیدا کړے شوے دے، او اُور چې مړ کولے شي نو هغهٔ پهٔ اوبو باندې مړ کیږي؛ لهٰذا کله چې یَو سړے غُصه شي نو پکار دے چې دے اودس اوکړي".

(1) أخرجه الترمذي في أبواب السفر، باب ما جاء في فضل الصلوة، برقم: (614)، وأحمد في "مسنده": (321/3).

(2) أخرجه أبو داود في كتاب الأدب، باب ما يقال عند الغضب، برقم: (4784).

نو اودس سره به ئې غُصه کمه شي، اُور بليږي چې اوبهٔ پرې وړواچوې نو اُور مړ شي نو چې غُصه درله راشي نو اودس اوکړه. پهٔ دې سره به ستا غُصه ختمه شي.

**دَ امام غزالي رحمه الله قول**

دَ دې وجې نه امام غزالي رحمه الله وائي: "چې څومره انسان له ډيره غصه ورځي نو دومره دې ډير پهٔ يخو اوبو اودس کوي نو غُصه به ئې راکميږي. ځکه کښې هم برودت دے، نو چې غُصه درله درغله او تهٔ ولاړ ئې نو کښېنه، او کهٔ ناست ئې نو ډډه اولګوه نو ستا نه به غصه لاړه شي.[1]

**دَ نبي ﷺ دعاء**

دَ دې وجې نه نبي ﷺ به دعاء کوله:

«اللَّهُمَّ اغْسِلْ عَنِّي خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالبَرَدِ».[2]

"يا الله! زما ګناهونه اووينځه پهٔ اوبو دَ واورې او دَ ګلئ باندې".

نو ګوره! پهٔ يخو اوبو باندې ښيرے نهٔ ځي، رنانه چې کپړې وينځي نو اوبهٔ ورته ګرموي او کهٔ دَ ګرمو اوبو څهٔ پروګرام نهٔ وي نو تازه ورته راخلي؛ ځکه څومره چې اوبهٔ يخې وي نو دومره ښيرې سختَوي، بيا ترې نه نهٔ لرې کيږي او حال دا دے: چې دَ الله نبي ﷺ وائي: چې زما ګناهونه اووينځه پهٔ اوبو دَ واورې او دَ ګلئ باندې الله! دَ واورې پهٔ اوبو زما ګناهونه اووينځه او الله! دَ ګلئ پهٔ اوبو زما ګناهونه اووينځه!. نو اوس دا ولې؟

**دَ "بماء الثلج والبرد " وجه څهٔ ده؟**

نو ما درته اول اووئيل: چې ګناهونو کښې ګرمائش دے. نو دَ ګرم څيز دپاره يخ څيز پکار وي نو دَ واورې دَ اُوبو نه نورې يخې نهٔ وي، دَ ګلئ دَ اُوبو نه نورې يخې نهٔ وي؛ نو دَ دې وجې نه دَ نبي ﷺ زړهٔ مبارک ئې دَ واورې پهٔ اوبو وينځلو، چې دَ ګناه هغه ماده ترې مکمل ختمه شي.

څلور ځله دَ نبي ﷺ دَ شق الصدر واقعه پيښه شوه.

**دَ نبي ﷺ خپلې مورته حواله کيدل**

بهر حال چې دَ نبي ﷺ دَ شق الصدر واقعه راغله نو حليمه رضي الله عنها اويريده او هغې اووئيل: چې

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (88/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (77/1).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الدعوات، بَابُ التَّعَوُّذِ مِنَ المَأْثَمِ وَالمَغْرَمِ، برقم: (6368).

ځوک رانه دا ماشوم ضائع نهٔ کړي. هغې دا ماشوم راوستو او مور ته ئې حواله کړو. کله چې نبي ﷺ مور ته حواله کړے شو نو دے دَ مور سره وو. کله چې دَ دهٔ عمر شپږو کالو ته اورسیدو نو چونکه پلار ئې خو دَ پیدائش نه مخکښې وفات وو خو چې دے دَ شپږو کالو شو نو دَ دهٔ مور آمنه بي بي هم وفات شوه. چونکه آمنه بي بي خو اصل کښې دَ مدینې وه، دَ نبي ﷺ دَ نیکهٔ دَ طرف نه نیا چې کومه وه نو هغه دَ مدینې وه. بنو نجار نه دَ نبي ﷺ نیکهٔ وادهٔ کړے وو. او دَ عبد الله هغه واقعه ما تاسو ته کړې وه: چې عبد الله شام ته دَ تجارت پهٔ غرض باندې تلو نو لار کښې بیمار شو. او پهٔ مدینه کښې وفات شو، ماماګانو کره یَو میاشت بیمار پروت وو، وائي: چې ښهٔ شم نو کور ته به لاړشم. دلته وارثانو ته ئې هم پته نهٔ وه او نهٔ څهٔ ټیلیفونونه او رابطې وې، بلکه پیدل سفرې به وې نو هغوي اووئیل: چې ښهٔ شي نو اوبه ئې لیږو، خو هغه دَ ماماګانو پهٔ ځائے کښې وفات شو.... پوره واقعه اوس مخکښې اووئیلے شوه.

بهر حال دَ نبي ﷺ مور آمنه بي بي دې اووئیل: چې لاړه به شم مدینې ته او دَ خپل خاوند قبر ته به هم لاړه شم. او نبي ﷺ ئې هم دَ ځان سره روان کړو، وړوکے بچے وو، دَ شپږو کالو پهٔ عمر کښې وو او یَو دَ دهٔ دَ پلار نه وینځه پاتې شوې وه "ام ایمن رضی الله عنها" چې نبي ﷺ ته هغې هم پئ ورکړې وو، هغه هم ورسره روانه وه بطور خادمه وه. او دا ام ایمن رضی الله عنها بیا مسلمانه شوې هم وه.

البته دَ نبي ﷺ خپل مور پلار دا مسلمانان دي او کهٔ نهٔ دي؟ نو پهٔ دې کښې توقُّف دے: چې دا مسلمانان دي او کهٔ نهٔ دي، بس مونږ ته دَ دې پته نشته، دَ دې پته صرف یَو الله ته ده. خو دَ نبي ﷺ دَ رضاعي دوؤ موریانو (دَ حلیمه سعدیه او ام ایمن) باره کښې راځي چې دوي مسلمانې شوې وې او دَ نبي ﷺ دَ بلې مور چې ثویبه وه نو دَ ثویبې رضی الله عنها باره کښې هم یَو قول مونږ نقل کړے وو: چې دا مسلمانه شوې وه. دَ نبي ﷺ ټولې خلور موریانې وې: یَو خپله مور وه او درې رضاعې وې.

**دَ نبي ﷺ دَ مور (آمنه بي بي) وفات**

نو دَ نبي ﷺ مور آمنه بي بي رضی الله عنها مدینې منورې ته روانه شوه، سره دَ نبي ﷺ او دَ ام ایمن رضی الله عنها نه. او بعضې علماء وائي: چې دَ نبي ﷺ نیکهٔ هم ورسره وو. او بعضې وائي: چې نا! دے ورسره نهٔ وو. مدینې

ته چې لاړل دَ نبي ﷺ دَ پلار دَ قبر ملاقات ئې اوکړو. بيا مدينه کښې يَو مياشت هلته کښې وه.
يَو مياشت بعد بيا دَ نبي ﷺ مور او نبي ﷺ سره دَ خپلې خادمې نه مکې ته واپس راروان دې. پهٔ لاره باندې دَ نبي ﷺ مور ناجوړه شوه. چې ناجوړه شوه نو نهٔ ډاکټران وو، نهٔ هسپتالونه وو، او نهٔ نور څهٔ علاج معالجه شته. شاړې او صحراګانې وې. اوس هم چې څوک دَ مکې او مدينې پهٔ مينځ کښې هغه صحراګانې اوګوري نو اوس هم هغې کښې آبادے نشته. شاړې لارې وې. ابواء مقام ته چې را اورسيده بيماري زياته شوه، نو ابواء مقام کښې دَ نبي ﷺ مور وفات شوه. بس پهٔ هغه ځائے کښې دفن شوه. نو يَو ام ايمن ﷺ وه، او يَو نبي ﷺ وو، نبي ﷺ ئې دَ لاس نه اونيولو او دَ خپل نيکهٔ کور ته ئې راوستو. نو مور ئې هم وفات شوه. او چې کله ئې مور وفات شوه نو بيا دَ نبي ﷺ دَ پرورش نور څوک نهٔ وو.
### نبي ﷺ عبدالمطلب ته حواله کيدل
نو عبد المطلب دَ نبي ﷺ نيکهٔ وو؛ پهٔ دې وجه نبي ﷺ عبد المطلب ته حواله شو. نيکهٔ وو خو دَ پلار نه ئې ورسره ډيره مينه وه. دَ عبد المطلب پهٔ باره کښې راځي: چې هغهٔ دَ نبي ﷺ سره دومره مينه کوله چې هغه وخت خو دومره اونې نهٔ وې لکه اوس چې څنګه اونې هلته نشته دے، سورې نهٔ وو، نو پهٔ هغې وخت کښې بيت الله صرف يَو کمره وه او دَ هغې سره ګير چاپيره ميدان وو. نو دهٔ به نبي ﷺ ځان سره راوستو دَ خانه کعبې سورې سره به ئې ورته بستره واچوله، وئيل به ئې: چې دې سورې ته به محمد کيښني، او ځامنو ته به ئې وئيل: چې تاسو به پهٔ دې خاورو کښې کښينئ. نو نبي ﷺ له به ئې دومره قدر او عزت کولو، چې نبي ﷺ به نهٔ وو راغلے نو پهٔ هغې بستره به څوک نهٔ کيناستل. وائي: دا زما دَ نوَسي بستره ده، پهٔ دې باندې به هغهٔ کښيني.
کله به دَ نبي ﷺ بعضې ترونه غُصه وو چې: "دا وړوکے ماشوم دے او دے ئې زمونږ نه هم اوچت کړے دے، کله ئې يَو ځائے کښې کرځوي او کله ئې بل ځائے کښې کرځوي". هغهٔ به ورته وئيل: "چې هر څهٔ منم خو کورے دَ دهٔ باره کښې خبره نهٔ منم، دَ دهٔ به ډير زيات خيال ساتئ"؛ ځکه عبد المطلب هم داسې نا آشنا نا آشنا حالات ليدلي وو چې هغه هم دَ نبي ﷺ نه ډير متأثره وو. نو دَ

نبي ﷺ سره ئې دومره مينه وه نو!

**دَ يو راوي قول**

يَو راوي دے کِندير بن سعيد هغه دَ خپل پلار نه نقل کوي، وائي: "دَ جاهليت زمانه وه، زهٔ حج له تلے اوم (دا حج دَ نبي ﷺ دَ زمانې نه مخکښې نه راروان دے، دَ ابراهيم عليه السلام دَ دور نه دا راروان دے)، نو چې کله مکې ته لاړم، يَو سړے پهٔ طواف کښې روان دے او پهٔ دې طواف طواف کښې يَو شعر وائي:

يَا رَبِّ رُدَّ رَاكِبِي مُحَمَّدَا    يَا رَبِّ رُدَّهُ وَاصْطَنِعْ عِنْدِي يَدَا[1]

"يا الله! ما ته زما شهسوار نوَسے محمد واپس راوله، يا الله! دا احسان پهٔ ما اوکړه زما هغه نوَسے ما ته واپس راوله، دا به ستا پهٔ ما ډير لوئې احسان وي".

وائي: ما اووئيل: چې دا سړے څهٔ وائي! خلق ذکر کوي، دعاګانې غواړي، او دے دا ذکر کوي چې ما له محمد (ﷺ) واپس راوله او شعر وائي، دے لا څهٔ وائي! نو ما تپوس اوکړو: چې دا بابا څهٔ وائي؟ وائي: يَو کس راته اووئيل: چې دا عبد المطلب دے. دهٔ خپل نوسے وو دَ دهٔ يَو اوښ روک شوے وو هغې پسې ئې ليږلے وو، چې تهٔ اوګوره! چې زما اوښ به چرته وي؟ نو هغه ماشوم لا نهٔ دے راغلے، دے وائي: چې اوښ خو روک دے، سر دې اوخوري خو زما هغه نوَسے لا نهٔ دے راغلے، هغهٔ له څهٔ تکليف نهٔ وي رسيدلے. نو دَ طواف پهٔ دوران کښې دے دا دعاء کوي: چې الله! ما له زما هغه نوَسے واپس راوله. وائي: لږ حصار شو چې پهٔ دې کښې مونږ کتل نو نوَسے يعني محمد ﷺ هم راغے او اوښ ئې هم دَ ځان سره راوستو".

داسې يَو خوش نصيب انسان چې روک اوښ پسې لاړشي نو څنګه به نهٔ پيدا کيږي؟ اوښ پيدا شو اوښ ئې نيولے وو، او راغے. نو عبد المطلب سره ډير غم وو. کوم مور پلار چې پهٔ بچو باندې مئين وي نو چې دَ ماښام بانګ اووئيلے شي نو هغه کله دننه او کله بهر چې يره! هلکانو ناوخته کړو، چې چرته به وي؟ او چې چا سره ئې غم نهٔ وي نو دَ شپې يَو بجه وي او هغه بے غمه اودهٔ وي او دَ بچو پته ئې نهٔ لګي: چې کوم ځائے کرځي. نو دا مينې پورې تعلق ساتي. نو عبد المطلب

---

(1) انظر: "دلائل النبوة" للبيهقي: (151/1).

ورسره انتهائي مينه او محبت ساتلو.

## دَ عبدالمطلب وفات او دَ هغهٔ دَ عمر باره کښې اقوال

دَ نبي ﷺ عمر چې شپږ کاله وو نو مور ئې وفات شوه نو چې دوه کاله عبد المطلب اوساتلو او هغه ورسره مينه شروع کړه نو دَ الله تقسيم وُو بابا ترې هم الله واغستو. دوه کاله بعد دَ نبي ﷺ نيکهٔ عبد المطلب هم وفات شو. پهٔ دې وخت کښې دَ نبي ﷺ عمر اتهٔ کاله وو.

دَ عبد المطلب پهٔ عمر کښې اختلاف دے:

(۱) يَو قول دَ علماؤ دا دے: چې دَ عبد المطلب دوه اتيا (۸۲) کاله عمر وو.

(۲) بل قول دا دے: چې پنځهٔ اتيا (۸۵) کاله عمر ئې وو.

(۳) بل قول دا دے: چې پنځهٔ کم سل (۹۵) کاله عمر ئې وو.

(٤) بل قول دا دے: يَو سل لس (۱۱۰) کاله عمر ئې وو.

(۵) او بل قول دا دے: چې يَو سل شل (۱۲۰) کاله عمر ئې وو.

## دَ عبد المطلب وصيت ابو طالب ته دَ نبي ﷺ باره کښې

کله چې عبد المطلب وفات شو نو دَ نبي ﷺ عمر اتهٔ (۸) کاله وو. خامخه چې يَو انسان دَ يَو سړي پرورش کړے وي او بيا ئې بابا هم وي نو انسان پريشانه وي. جحون کښې عبد المطلب وفات شو، او هغهٔ خپل ځوي ابو طالب ته وصيت اوکړو: "چې بچيه! کهٔ زهٔ نهٔ ووم نو زما نه بعد زما دَ دې نَوَسي پرورش تاته حواله کوم. دَ دهٔ به خيال ساتې، او دَ خپل ځان نه او دَ خپلو بچو نه به ئې ډير زيات خيال ساتې".

ام ايمن رضي الله عنها وائي: "چې کله دَ عبد المطلب کټ اوچت کړے شو او قبر ته ئې اوړو نو نبي ﷺ هغهٔ ته کتل او ژړل ئې"؛ ځکه چې بابا لاړے، دا پريشاني هم نبي ﷺ تيره کړه.

## ابو طالب ته دَ نبي ﷺ کفالت حواله کيدل

دَ دې نه بعد نبي ﷺ دَ ابو طالب پهٔ کفالت کښې راغے. چې کله ابو طالب ته حواله شو نو ابو طالب ورسره دَ ټولو نه سبوا محبت شروع کړو. نبي ﷺ ئې دَ خپل اولاد نه ډير خوښ کنړلو. اولاد سره به ئې دومره مينه نهٔ کوله لکه څومره ميته چې به ئې دَ نبي ﷺ سره کوله. يَو خو دَ مړ رور بچے وو دَ هغهٔ پهٔ سترګو به ئې وَرته کتل، بل دَ نبي ﷺ خوږونه داسې وو، عادتونه ئې داسې وو

چې چا به ليدو نو دَ هغهٔ به ورسره مينه پيدا کيده.

يَو ځل قحط وو او ابو طالب ته خلق راغلل چې باران نشته دے، ځومره زمانه اوشوه، قحط دے او خلق ډير زيات مُشکلاتو کښې ګير دے، دَ الله نه سؤال اوکړئ! (ځکه کافرو هم الله منلو) چې الله پهٔ مونږ باندې باران رحمت اوکړي. ابو طالب ورته وائي: لږ صبر اوکړئ ما ته يَو چل راځي. نبي ﷺ ئې پهٔ غيږ کښې واغستو او ځان سره ئې روان کړو، دَ دهٔ شاه ئې خانه کعبې طرف ته ورتاؤ کړه او دهٔ ته ئې اووئيل: بچيه! ګوته اوچته کړه او دَ الله نه اوغواړه چې الله پهٔ مونږ باران اوکړي. چې دهٔ څنګه آسمان ته لاس اوچت کړل نو حديث کښې راځي، دَ "صحيح البخاري" حديث دے چې: پهٔ آسمان وريځ چرته پهٔ نظر باندې نهٔ وه او يک دم آسمان کښې وريځ راغله او باران شروع شو او ډير زيات باران اوشو. ابو طالب دَ دهٔ پهٔ باره کښې دا شعر وئيلے وو:

وَأَبْيَضُ يُسْتَسْقَى الغَمَامُ بِوَجْهِهِ ثِمَالُ اليَتَامَى عِصْمَةٌ لِلْأَرَامِلِ[1]

"تک سپين مخ والا دے، دومره بختور دے، دومره خوش نصيبه دے چې دَ دهٔ پهٔ وجه (مخ) الله پهٔ خلقو بارانونه راوروي، دَ يتيمانانو فرياد رست دے او دَ کونډو دپاره او دَ بے وسو خلقو دپاره دَ بچاؤ يَو باعث دے".

باران چې اوشي نو پهٔ يتيمانانو هم راحت شي، پهٔ کونډو او غريبانانو هم راحت شي. دَ دهٔ پهٔ وجه به الله کونډو او يتيمانانو ته راحت رسوي. ابو طالب دَ دهٔ نه ډير متأثره وو. او ابو طالب تر خپل مرګه پورې دَ نبي ﷺ داسې دفاع کړې وه چې کافرانو به وئيل: دا نبي وژنو، وائي: ابو طالب سره به بيا څوک څهٔ کوي؟ دَ هغهٔ نه به مو څوک خلاصَوي؟ دَ پيغمبر پاک ﷺ مسئله ئې منلې نهٔ وه خو دَ الله نبي ﷺ ته چې پيغمبري هم ميلاؤ شوه نو بيا به هم ورته ابو طالب وئيل: "ورارهٔ! دا به نهٔ وائې چې کَنې خلق به راته دا اووائي يا به راته هغه اووائي، چې څنګه دې زړهٔ کښې راځي هغه شان وايه. او خلق پوهه شه او زهٔ پوهه شه".

ان شاء الله دَ ابو طالب هغه شعرونه او دَ هغهٔ هغه حالات هغه به روستو راشي. ابو طالب نبي ﷺ سره بے انتهائي مينه کړې وه. دَ هغهٔ پهٔ پرورش کښې نبي ﷺ بلوغ ته اورسيدو. دَ هغې حالات به ان شاء الله وريسې جُمعه کښې راځي.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(1) انظر: "صحيح البخاري"، أبواب الاستسقاء، باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء إذا قحطوا: (27/2)، رقم: (1008).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ

(سورة التوبة: 128)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه شپږمه

## "دَ نبي ﷺ ابو طالب سره شام ته تلل او دَ بحيرا راهب سره ملاقات او دَ خديجة الكبرىٰ رضي الله عنها سره دَ نبي ﷺ نکاح"

بتاريخ: 2022-01-14

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه شپږمه

## "دَ نبي ﷺ ابو طالب سره شام ته تلل او دَ بحيرا راهب سره ملاقات او دَ خديجة الكبرىٰ رضي الله عنها سره دَ نبي ﷺ نكاح "

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرت شروع وو. دَ رسول الله ﷺ دَ پيدائش او بيا دَ پيؤ ورکولو واقعات او حالات، بيا دَ رسول الله ﷺ دَ مور وفات، بيا دَ نيکهٔ په پرورش کښې راتلل او بيا دَ نيکهٔ وفات، دَ هغهٔ نه بعد بيا دَ ابو طالب پهٔ پرورش کښې راتلل تردې پورې واقعات مخکښې بيان شوي وو. دَ عبد المطلب دَ وفات نه پس دَ رسول الله ﷺ سکه ترهٔ ابو طالب هغهٔ ته دَ رسول الله ﷺ پرورش حواله شو. او ابو طالب به دَ نبي ﷺ سره دَ خپلو بچو نه هم زياته مينه او محبت کولو.

### دَ ابو طالب شام ته سفر

ابو طالب هغهٔ نبي ﷺ لره لويولو. کله چې دَ نبي ﷺ عمر دولسو کالو ته اورسيدو نو ابو طالب دَ قريشو دَ يو قافلې سره شام ته تلو دَ تجارت دپاره. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل: "کاکاجي! زهٔ هم درسره

(1) [سورة التوبة: 128].

ځم". ابو طالب چې دې ته اوکتل چې سفر دے، مشکلات دي، تکلیفونه دي نو هغه اووئیل: "چې ته راسره مه ځه". خو رسول الله ﷺ داسې خفه شو. نو دَ ابو طالب خو ورسره مینه ډیره وه، ډیر محبت ئې وو ورسره، نو هغهٔ اووئیل چې: "یره! سفر هم ګران دے خو بل خوا دے هم خفه کیږي". وائي: "خیر دے کهٔ تکلیف وي پهٔ مزه مزه به لاړ شو خو دے بوځم؛ ځکه چې دے به خفه شي".

## ابو طالب سره دَ نبي ﷺ تلل او بحیرا راهب سره ملاقات

نو دَ دې دَ وجې ابو طالب نبي ﷺ ځان سره روان کړو. پهٔ دې سفر کښې هم ډیر عجائبات وو. چې کله دوي روان شول، یَو علاقه راځي هغې ته بُصْرٰی وائي. چې دوي کله بصرٰی ته اورسیدل نو هلته کښې دَ نصاراؤ یَو ډیر نیک پیر او راهب وو، الله والا سړے وو. دَ هغې پیر صاحب نوم دے جرجیس. خو پهٔ نوم باندې دومره مشهور نهٔ وو، پهٔ بحیرا راهب باندې ډیر مشهور وو. چونکه پهٔ "انجیل" او پهٔ "توراة" کښې دَ نبي ﷺ هغه نخښې او علامې ذکر وې، دوي پهٔ دې انتظار وو چې هغه آخري نبي به دنیا ته راځي، هغه وخت هم راغلے وو. پهٔ آسماني کتابونو کښې چې دَ نبي ﷺ کومې نخښې ذکر وې، هغه دهٔ ټولې لیدلې وې، او یادې کړې ئې هم وې او پهٔ هغې باندې ذے پوهه هم وو.

کله چې نبي ﷺ دَ خپل ترهٔ سره روان شو، قافله روانه شوه او لاړل، بصرٰی ته چې اورسیدل نو دا راهب چې وو دَ دهٔ دا عبادت خانه او دا جونګړه داسې اوچت ځائے کښې وه. دے دَ دې قافلې دپاره راکوز شو او پهٔ دې قافلې کښې ئې دَ رسول الله ﷺ سره ملاقات اوکړو. نبي ﷺ ئې دَ دې لاس نه اونیولو او هغه ټولې نخښې ئې پکښې معلومې کړې کومې چې دَ نبوّت نخښې وې او "توراة" او "انجیل" او نورو آسماني کتابونو کښې ذکر وې. دے پوهه شو چې دا خو هم هغه سړے دے.[1]

## دَ ابو موسی اشعري رضی الله عنه روایت

"سنن الترمذي" کښې یَو روایت راځي: ابو موسٰی اشعري رضی الله عنه فرمائي: چې ابو طالب دې نورو مشرانو دَ قریشو دَ ځان سره روان کړو او شام ته تلل نو چې کله دَ دې راهب پهٔ خوا باندې تیریدل نو راهب خو دَ الله والا سړي وي، هغه پهٔ خلقو څهٔ کوي؟ چرته دَ دې نه مخکښې چې څو څو

(1) انظر: "شرح الزرقاني علی المواهب": (194/1).

ځله دوي پۀ دې لاره باندې تلي دي خو دۀ به ورته هډو توجُه نۀ کوله، چرته به ئې ورته ګخیر راغلې هم نۀ وئیلې. دا ځل چې دوي تلل نو هغه راهب دَ خپلې جونګړې نه راکوز شو او پۀ دې کښې دَ رسول الله ﷺ تلاش کولو، چې هغه هلک څۀ شو؟ چې کله ئې نبي ﷺ اولیدو نو بے اختیاره هغه راهب چغې کړې:

"هَذَا سَيِّدُ العَالَمِينَ، هَذَا رَسُولُ رَبِّ العَالَمِينَ، يَبْعَثُهُ اللهُ رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ".[1]

"دا دَ ټول مخلوق سردار دے، دا دَ ټولو مخلوقاتو دَ پالونکي ذات پیغمبر او استاذے دے او الله تعالیٰ به دۀ لره دَ ټول مخلوقاتو دپاره رحمت رالیږي".

دا راهب دَ دې عربو پۀ مخکښې لګیا دے. او عربو ته لا دغه وخته پورې پته نۀ وه چې دا هغه نبي دے او دے به الله نبي او پیغمبر جوړوي، نا آشنا نا آشنا څښې ئې لیدلې وې خو چا ته دومره علم نۀ وو. نو دوي دې راهب ته وائي: عجیبه سړے ئې سړے دې دَ لاس نه اونیولو او وائي "هَذَا سَيِّدُ العَالَمِينَ، هَذَا رَسُولُ رَبِّ العَالَمِينَ، يَبْعَثُهُ اللهُ رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ"، نو تا ته څنګه پته اولګیده چې دا دَ الله رسول دے؟ دا خو لا وړوکے دے، دَ دولسو کالو عمر کښې دے.[2]

## دَ نبي ﷺ پۀ باره کښې دَ راهب ګواهي

هغه راهب ورته وائي: "کله چې ستاسو دا قافله راروانه وه نو ما به دَ دې ځائے نه تاسو ته کتل، چې دا ماشوم راروان وو نو پۀ دې لاره باندې چې به چرته اُونه راغله، چرته چې به ګټه راغله نو هغې به دې ماشوم طرف ته سجده کوله. او دارنګې زمونږ پۀ کتابونو کښې ئې لیکلي دي: چې دا اُونې او ګټې سجده بل چاته نۀ کوي مګر صرف رسول ته به ئې کوي. نو دَ دې وجې نه ما معلومه کړه چې دا دَ الله هغه پیغمبر دے". او بیا ورته شاه طرف ته راتاؤ شو چې اوئې کتل دَ رسول الله ﷺ دَ دواړو اوګو تر مینځه دَ نبوّت هغه مهر ئې هم اولیدو، چې داسې برابر دَ سیب پۀ انداز باندې وو، دَ غوَښې یَو ټکړه وه. نو دې سره ئې نور هم یقین سېوا شو چې دا دَ الله هغه رسول دے.[3]

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب المناقب، بَابُ مَا جَاءَ فِي بَدْءِ نُبُوَّةِ النَّبِيِّ ﷺ، برقم: (3620).

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (95/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (83/1).

(3) انظر: "سيرة المصطفى" لمحمد ادريس كاندهلوي رحمه الله: (95/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (83/1).

**دَ بحیرا راهب قافلې والو له دعوت کول**

بحیرا راهب دوي ته وائي: چې زهٔ تاسو له دعوت کوم، ډوډۍ درله کوم او تاسو به ما سره میلمانهٔ کیږئ. دوي له ئې دَ ډوډۍ انتظام اوکړو. چې مخکښې ئې پرې چرته اوبهٔ هم نهٔ وې څښکولې. ټول قافلې والا ئې میلمانهٔ کړل. نبي ﷺ کشر وو، او کشر ماشوم خلق خدمتونو پسې لیږي. نو دَ ډوډۍ ټائم چې راغے او دوي ټول لاړل او نبي ﷺ ورسره نهٔ وو نو بحیرا راهب ورته اووئیل: "چې تاسو سره یَو ملګرے وو، هغه څهٔ شو؟". نو دوي ورته اووئیل: "چې هغه خو مونږ لیږلے دے چې اوښان اوڅَروي، اوبهٔ به ئې کړې نو هغه اوښانو سره تلے دے". راهب وائي: "څه! اوښانو سره تلے دے؟". دوي ورته اووئیل: "آو!". وائي: "هغه سړے پکار دے، هغه پسې څوک اولیږئ چې هغه راشي". نبي ﷺ ئې رااوغوښتو.

نو دوي بیاباز. کښې دَ یَوې اونې لاندې ناست وو، او دومره کسان وو چې ایله دَ دغې اونې دَ سورې لاندې راغلي وو. کله چې رسول الله ﷺ راغے نو نبي ﷺ خو کشر وو، نو دوي سره داسې اړخ ته کیناستو نو هغه اونه دَ هغهٔ طرف ته راکږه شوه، او هغه سورے دَ دوي نه ټاؤ شو او نبي ﷺ باندې جوړ شو. دوي چې دا اولیدل نو دا راهب ورته وائي: "اوموليدل: چې دهٔ پسې دَ اونې دا سورے څنګه راټاؤ شو او تاسو ئې پهٔ ځائے پریخودئ او سورے دهٔ لره راغے؟". عربو اومنل: چې واقعي سړي کښې ډیر کمالات دي.[1]

بیا ورته دا راهب وائي: چې "تاسو چرته ځئ؟". نو دوي ورته اووئیل: چې "مونږ خو تجارت له روان یُو، روم، شام دې غلاقو ته ځو". دا راهب ورته وائي: "چې زهٔ درته یَو مِنَت کوم چې دا هلک دَ ځان سره مهٔ بوځئ! ولې؟؛ دَ دهٔ دَ نبوت نخښې چې کومې پهٔ کتابونو کښې ذکر شوې دي هغه ټولې نخښې دهٔ کښې شته. او کهٔ چرته دے دَ روم نصاراؤ اولیدو نو هسې نه چې درنه شهید ئې کړي او مړ ئې کړي؛ څکه هغه خو دَ دین دشمنان دي، دَ دې پیغمبر دشمنان دي، لهٰذا دے ځان سره مهٔ بوځئ!". ابو طالب ورسره دوه کسان یَو ځائے کړل او دَ هغې ځائے نه ئې واپس مکې ته

(1) انظر: "سيرة المصطفى" لمحمد ادريس كاندهلوي رحمه الله: (95/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (84/1).

راوستو، او دوي خپل تجارت ته لاړل.[1]

**دَ روم نه څهٔ کسان راتلل**

پهٔ يَو روايت کښې دا هم دي: چې دا پيغمبر ﷺ دَ هغوي سره لا پهٔ هغې ځائے کښې وو چې پهٔ دې کښې څهٔ کسان دَ روم نه راغلل، تورې ئې غاړې ته اَويزاندې وې. دې راهب ته وائي: چې "پهٔ دې لاره څوک مسافر خو نهٔ دي راغلي؟". راهب ورته وائي: "څهٔ کوئ؟". دوي اووئيل: "هغه دور او هغه زمانه راغلې ده چې پهٔ هغې کښې دا دي چې آخرئ نبي به پهٔ عربو کښې پيدا کيږي، نو مونږ دَ هغهٔ مرګ پسې راوتلي يُو چې پيدا نهٔ شي". نو دا راهب ورته وائي: "زهٔ تاسو سره يَو خبره کوم ماته لږه توجُّه اوکړئ! چې الله رب العزة يَو شے موجود کړے وي او پيدا کړے ئې وي نو تاسو هغه روکولے شئ! مړ کولے ئې شئ!". نو دوي اووئيل: "نا!". نو راهب ورته وائي: "چې الله ئې دَ ژوند فيصله کړي وي هغه تاسو مړ کولے نهٔ شئ او چې الله ئې دَ ژوند فيصله نهٔ وي کړي نو تاسو ئې بچ کولے نهٔ شئ؛ لهٰذا ځان مهٔ سترے کوئ. چې الله وئيلي دي: چې زهٔ به دا پيغمبر راليږم نو بيا الله دَ هغه حفاظت هم کولے شي او تاسو هغه بيا نهٔ شئ وژلے". دوي ئې مطمئن کړل. دوي ورته اووئيل: چې "مونږ ئې خو مرګ پسې راغلي وو خو چې تهٔ وائي نو مونږ به واپس لاړ شو". بيا ئې سوچ اوکړو: چې واپس څهٔ له ځو؟ نو دَ هغې راهب سره پاتې شول. او دَ هغهٔ نه ئې بيا دَ دين څهٔ خبرې هم يادې کړې وې.[2]

نبي ﷺ ئې واپس مکې مکرمې ته رااوليږلو؛ ځکه چې هلته رانه نبي ﷺ څوک شهيد نهٔ کړي، څوک ئې مړ نهٔ کړي.

علماؤ ليکلي دي: چې دَ رسول الله ﷺ سره ابوطالب سيدنا بلال ؓ او سيدنا ابو بکر ؓ رااوليږل، او نبي ﷺ ئې واپس راوستو. خو دا ټکے مُدْرَج دے مِن الراوي. صحيح روايت کښې دا دي: چې يَو ابوبکر ؓ وو او بل "رَجُلٌ" يَو بل سړے وو. دَ هغوي سره نبي ﷺ واپس راوستے شو.

(1) انظر: "سيرة المصطفى" لمحمد ادريس کاندهلوي ؒ: (95/1)، وفي طبع: مکتبة عمر فاروق: (84/1).

(2) انظر: "سيرة المصطفى" لمحمد ادريس کاندهلوي ؒ: (96/1)، وفي طبع: مکتبة عمر فاروق: (84/1).

**دَ حافظ عراقي رحمه الله اشعار دَ دې واقعې باره کښې**

دَ حافظ عراقي رحمه الله يَو رساله ده: "ألفية السيرة النبوية". نو په هغې کښې ئې دا واقعه په شعرونو کښې راوړې ده. هغهٔ وائي:

أَوْصَى بِهِ جَدُّهُ عَبْدُ الْمُطلِبْ        إِلىٰ أَبِي طَالِبِ الْحَامِي الْحَدِبْ

"وصيت کړے وو دَ نبي ﷺ باره کښې نيکهٔ دَ دهٔ چې عبد المطلب وو ابو طالب ته هغه ابو طالب چې بنهٔ حفاظت کونکے وو او بنهٔ شفقت کونکے وو".

يَكفُلُهُ بَعْدُ، فكَانَتْ تَشْأتُهْ        طَاهِرَةً مَأمُوْنَةً غَائِلَتُهْ

"چې کفالت به کوي زما نه پس ته. نو تربيَّت دَ نبي ﷺ پاک وو، او محفوظ وو دَ هلاکتونو نه".

فكَانَ يُدْعٰى بِالْأَمِيْنِ، وَرَحَلْ        مَعْ عَمِّهِ لِلشَّامِ حَتّٰى إِذْ وَصَلْ

"نو وو دا نبي ﷺ چې دے به په امين سره رابللے کيدو. او دهٔ سفر کړے وو دَ خپل ترهٔ سره شام ته تردې پورې چې کله اورسيدو....".

بُصْرٰى، رَأٰى مِنْهُ بَحِيْرَا، الرَّاهِبُ        مَا دَلَّ أَنَّهُ النَّبِيُّ الْعَاقِبُ

"بُصْرٰى ته نو بحيرا پير صاحب دَ دهٔ نه هغه نخښې اوليدلې چې خبردارے ئې ورکولو په دې خبره چې دے به پيغمبر وي او آخرے پيغمبر به وي....".

مُحَمَّدٌ نَبِيُّ هٰذِهِ الْأُمَّهْ        فَرَدَّهُ؛ تَخَوُّفًا مِنْ ثَمَّهْ

"چې نوم ئې محمد دے او دَ دې امت نبي به وي، نو واپس ئې کړو دهٔ لره؛ ځکه چې يريدو په دهٔ باندې دَ دغې ځائے دَ يهودو نه (دَ ضرر او نقصان دَ هغوي نه)".

مِنْ أَنْ يَّرَى بَعْضُ الْيَهُوْدِ أَمْرَهْ        وَعُمْرُهُ إِذْ ذَاكَ ثِنْتَا عَشْرَهْ

"دَ دې دَ وجې نه چې يهود چرته دَ دهٔ دَ نبوَّت نه خبر نهٔ شي (هسې نه دا څوک شهيد کړي). او دغه وخت کښې دَ نبي ﷺ عمر مبارک دولس (۱۲) کاله وو".

نو نبي ﷺ يَو ځل بيره دَ دولسو کالو په عمر کښې تجارت دپاره تلے وو. او بيا دوباره چې تجارت ته تلو نو هغه بيا خديجې رضي الله عنها ليږلے وو. دَ هغې تذکره هم وروسته حافظ عراقي صاحب رحمه الله کوي او وائي:

ثُمَّ مَضَى لِلشَّامِ مَعْ مَيْسَرَةِ        فِيْ مَتْجَرٍ، وَالْمَالُ مِنْ خَدِيْجَةِ

"بیا نبي ﷺ شام ته لاړو سره دَ میسره (دا دَ خدیجې ﵂ غُلام وو) نه دَ تجارت دپاره او مال دَ خدیجې ﵂ وو".

مِنْ قَبْلِ تَزْوِیْجِ بِهَا، فَبَلَغَا بُصْرٰی فَبَاعَ وَتَقَاضٰی مَا بَغٰی"[1]

"مخکښې دَ نکاح کولو دَ خدیجې ﵂ نه. نو دا دواړه اورسیدل بُصرٰی (شام) علاقې ته او هلته کښې ئې سوداګانې خرڅې کړې او پوره ئې واغستل هغه څهٔ کوم چې دوي طلب کول".

**حرب الفجار**

دَ نبي ﷺ پهٔ زمانه کښې چونکه لا نبوّت خو نهٔ وو میلاؤ، جنګونه به هم راتلل، او جګړې به هم راتلې. دَ رسول الله ﷺ عمر مبارک څوارلس یا پنځلسو کالو ته اورسیدو (بعضو پکښې شل کاله هم لیکلي دي) نو پهٔ عربو کښې یَو لوئې جنګ واقع شوے وو، چې هغې ته "حَرْبُ الْفِجَار" وائي، یا "حَرْبُ الْفُجَّار" وائي.

دا حرب الفجار چې دے دا جنګ دَ قریشو او دَ قیس قبیلې پهٔ مینځ کښې راغلے وو. چونکه دَ الله نبي ﷺ ته خو لا نبوت نهٔ دے میلاؤ شوے، دَ الله نبي ﷺ ایله بالغ شوے دے؛ ځکه دَ څوارلسو یا پنځلسو کالو کښې ایله ماشوم بالغ شي. اول کښې داسې اوشول چې دا قیس قبیله پهٔ قریشو باندې زورَوره شوه او چې روستو بیا جنګ اوشو نو قریش والا پهٔ قیس باندې زورَور شو، آخر دا چې دَ دې دواړو فرِیقَیْنو مینځ کښې روغه او صُلحه اوشوه.

**پهٔ حرب الفجار کښې دَ نبي ﷺ شرکت**

بعضې علماؤ لیکلي دي: چې پهٔ دې حرب الفجار کښې رسول الله ﷺ شریک شوے وو، رسول الله ﷺ به خپلو ترونو له غشي ورکول. یعني به دَ غشو تورو او نیزو جنګونه وو.

علامه سهیلي ﵀ لیکلي دي: "وَإِنَّمَا لَمْ یُقَاتِلْ رَسُولُ اللهِ -صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ- مَعَ أَعْمَامِهِ وَكَانَ یَنْبُلُ عَلَیْهِمْ وَقَدْ كَانَ بَلَغَ سِنَّ الْقِتَالِ لِأَنَّهَا كَانَتْ حَرْبَ فِجَارٍ وَكَانُوا أَیْضًا كُلُّهُمْ كُفَّارًا، وَلَمْ یَأْذَنْ اللهُ تَعَالَی لِمُؤْمِنٍ أَنْ یُقَاتِلَ إِلَّا لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْیَا".[2]

---

(1) انظر: "ألفیة السیرة النبویة" للحافظ العراقي: (38/1).

(2) انظر: "الروض الأنف" للسهیلي: (147/2).

وائي: "رسول الله ﷺ دې حرب الفجار کښې جنګ نۀ کړے وو دَ ترونو پۀ ملګرتيا کښې، ليکن هغوي له ئې غشي ورکول او حال دا وو چې پيغمبر پاک ﷺ دَ جنګ عمر ته رسيدلے هم وو (دَ جنګ قابل وو)، ځکه دا خو دَ ګناه جنګ وو (چې تا داسې اوکړل او ما داسې اوکړل)، او دارنګې دوي ټول دواړه طرف ته کافران وو او پيغمبر پاک ﷺ خو پيدائشي مومن وو، الله تعالیٰ اجازت نۀ کوي يَو مؤمن ته چې اوجنګيږي مګر کۀ اجازت ورته کوي نو صرف دَ دې دپاره چې دَ الله دَ دين کلمه اوچته شي".

نو پيغمبر ﷺ هسې جنګونه نۀ کوي، بلکه پيغمبر چې جنګ کوي نو دَ دې دپاره ئې کوي چې: "لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْيَا" چې پۀ ملک کښې توحيد اوچت شي، دَ الله تعالیٰ دين بلندي حاصله کړي. نو چونکه دغه جنګ کښې دَ دين څۀ خبره نۀ وه نو ځکه دَ الله نبي ﷺ جنګ نۀ وو کړے.

دَ دې نه پس چې دا جنګونه او اختلافات راغلل. عربو کښې څۀ خلق رااوچت شول يَو دے فضل بن فضاله، بل دے فضل بن وداعه او دريم دے فضيل بن حارث دا سرداران وو. نور څۀ خلق ورسره ملګري شول نو دوي پۀ خپلو کښې يَو تنظيم او کُميټي جوړه کړه؛ چې ځو او دَ دې خلقو پۀ مينځ کښې دا جنګونه ختمَوو، او دا ظلمونه ختموؤ. دَ دې وجې نه زبير بن عبد المطلب دَ هغې هغه بعضې حالات پۀ اشعارو کښې ذکر کوي:

إِنَّ الْفُضُولَ تَحَالَفُوا، وَتَعَاقَدُوْا    أَلَّا يُقِيمَ بِبَطْنِ مَكَّةَ ظَالِمُ

"فضول چې دي دوي يَو بل سره لوظونه او وعدې اوکړې چې مکه کښې به ظالم سړے نۀ اوسيږي".

فضول نه مراد دلته کښې هغه درې کسان دي چې دَ هر يَو پۀ نوم کښې فضل راځي: فضل بن فضاله، فضل بن وداعه او دريم فضيل بن الحارث. دې درې واړو يَو بل سره لوظ کړے وو: چې پۀ مکه کښې به ظالم سړے نۀ پاتې کيږي او څوک چې ظلم کوي نو هغه به دَ مکې نه اوباسو. پۀ دې باندې ئې کُميټي جوړه کړې وه. او بيا زبير بن عبد المطلب وائي:

أَمْرٌ عَلَيْهِ تَعَاهَدُوا، وَتَوَاثَقُوا    فَالْجَارُ وَالْمُعَتَرُّ فِيهِمْ سَالِمُ[1]

"پۀ خبره هغوي دَ يَو بل سره لوظونه او وعدې اوکړې چې پۀ دې مکه کښې ګير چاپيره

(1) انظر: "الروض الأنف" للسهيلي: (47/2).

علاقو والا، ګاونډ والا دي او کوم چې دَ بل ځائے نه مسافر راغلے وي نو دې ټولو له به پۀ دې مکه کښې سلامتیا او امن وي".

نو کۀ دلته هر څوک وي دَ ټولو دپاره به امن او سلامتیا وي. څوک به هم دَ چا سره نۀ چیړي، دا به نۀ وائي: چې دَ دۀ خاندان وړوکے دے نو بس دے به وهو؛ ځکه دَ دۀ دَ تپوس کولو څوک نشته دے. نو دا کُمیټي به داسې کار کوي چې څوک ظالم وي دَ هغۀ لاس به نیسي، هغه به دَ ظلم نه منع کوي، کني دَ مکې نه به ئې اوباسي.

داسې یَو جماعت او تنظیم جوړ شو. دا هغه زمانه وه چې نبي ﷺ ته لا نبوّت میلاؤ شوے نۀ وو، نو نبي ﷺ هم پۀ دې عهد کښې او پۀ دې کُمیټۍ کښې ځان شامل کړو. او نبي ﷺ دَ عبد الله بن جدعان پۀ کور کښې حاضر شوے وو. عبد الله بن جدعان دې ټولې کُمیټۍ له ډوډۍ هم کړې وه او هلته کښې دا فیصله اوشوه.[1]

نبي ﷺ فرمائي: "کۀ ما له څوک دَ عربو هغه سرۀ قیمتي قیمتي اوښان راکوي دَ دغې کُمیټۍ پۀ مقابله کښې نو زما هغه سرۀ اوښان نۀ دي خوښ خو پۀ دې ډیر خوشحاله یم چې شکر دے چې پۀ دې کښې ما له دَ حاضرۍ موقع الله راکړې وه، چې دا دَ خیر کار ما دَ مخکښې نه هم کړے وو".

نو عبد الله بن جدعان ورته ډوډۍ اوکړه. دا کُمیټي جوړه شوه، پۀ دې کښې چونکه نبي ﷺ وو نو خلق به ئې پۀ فیصله باندې ډیر خوشحاله وو.

بیا دَ نبي ﷺ عمر مبارک چې کله پنځۀ ویشت کالو ته نزدې شو نو نبي ﷺ پۀ خلقو کښې رو رو مشهوریدو: چې پۀ عربو کښې یَو سړے دے، حسین هم دے، انتهائي ښائسته اخلاقو والا هم دے، انتهائي صبرناک هم دے او انتهائي ادب ناک هم دے، او انتهائي امین او امانت دار هم دے. دَ هغۀ امانت او دَ هغۀ صداقت او ریشتونوالے پۀ ټولو خلقو کښې مشهور شو.[2]

**دَ نبي ﷺ دَ امانت دارۍ نه دَ خدیجة الکبری رضي الله عنها خبریدل**

پۀ دې کښې دَ رسول الله ﷺ دَ امانت دارۍ نه خدیجة الکبرٰی رضي الله عنها هم خبر شوه. خدیجه رضي الله عنها

---

(1) انظر: "الطبقات" لابن سعد: (128/1-129).

(2) انظر: "سیرة المصطفی": (101/1)، وفي طبع: مکتبة عمر فاروق: (87/1).

دا ډیره مالداره زنانه وه. او دا په عربو کښې دَ ډیر مالدار خاندان والا زنانه وه. سره دَ دې چې مال ډیر وو خو دا یَو ډیره پاک دامنه زنانه وه. نسب او خاندان ئې ډیر اوچت او پاک وو. او دا دومره پاکه زنانه وه چې دَ جاهلیت په زمانه کښې به هم خلقو خدیجه ﷺ ته طاهره (پاکه) وئیله، چې دا دَ دهوکې نه هم پاکه ده، دَ ظلم او دَ زیاتي نه هم پاکه ده، او طاهره معنیٰ دا چې: دَ زِنا او بدکارئ نه هم پاکه ده. عفیفه ښځه وه.[1]

نو دا چې دَ نبي ﷺ دَ امانت دارئ نه خبر شوه نو دَ دې نه به خو چونکه خلقو پیسې اوړلې دَ تجارت دپاره او بیا به ئې ورله پکښې ګټه ورکوله، نو دې اووئیل: چې ماله خو الله مال راکړے دے او چې نبي ﷺ دومره صادق او امین دے نو زما مال دې هم یوسي. نو دې ابو طالب ښسي سؤال جواب اوکړو: "کۀ چرته تۀ او ستا دا وراړۀ دَ تجارت دپاره ځئ نو ما ته پته لګیدلې ده: چې دا ډیر صادق او امین دے، نو زۀ وایم چې دا خپل مال ورله ورکړم او پۀ دې باندې دے تجارت اوکړي، خیر دے چې نورو له څومره معاوضه ورکوم دۀ له به دَ هغې پۀ ډبل ورکړم".

نو ابو طالب ورته اووئیل: "چې دا خو ډیرِه ښۀ خبره ده". نبي ﷺ ته ئې مال رااولیږلو، نبي ﷺ هغه مال روان کړو او تجارت دپاره روان شو پۀ پنځۀ ویشتو کالو عمر کښې. بل خوا دَ خدیجة الکبرٰی ﷺ یَو خادم دے، غلام دے "مَیْسره". هغه ورسره هم ملګرے شوے. دې ورته اووئیل: څه! ته هم ورسره لاړشه، ته به ئې خدمت کوې. میسره چې دَ نبي ﷺ سره پۀ دې سفر کښې روان دے نو هغۀ به هم څۀ نا آشنا نا آشنا حالات لیدل: وریځ به دَ نبي ﷺ دپاسه سورے کیده؛ چې پۀ نمر ورته تکلیف میلاؤ نۀ شي، او دَ نبي ﷺ صداقت، امانت داري او اخلاق به ئې هم لیدل.

**دَ خدیجة الکبرٰی ﷺ دَ غلام میسره او دَ نبي ﷺ واپس راتلل**

نو سیدة خدیجة الکبرٰی ﷺ ته چې کله دوي واپس راغلل، تجارت ئې اوکړو او الله ورله پکښې ډیره ګټه ورکړه، دومره ډیره ګټه وه چې چرته چا هم دَ خدیجې ﷺ پۀ مال کښې دومره پیسې نۀ وې ګټلې څومره چې رسول الله ﷺ ته پۀ لږ وخت کښې الله ګټه ورکړه. نو چې رسول الله ﷺ واپس

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (100/7).

راغے او هغې له ئې مال ورکړو او نبي ﷺ له ئې گټه ورکړه. نو میسره خدیجې ﷵ ته هغه ټوله واقعه بیان کړه: چې داسې داسې نا آشنا نا آشنا قِصې وې، اونې به دهٔ له سورے کولو، وریځې به ورله سورے کولو، او لاره کښې ورسره ئو پیر میلاؤ شوے وو.

دویم ځل چې دا کوم پیر وو هغهٔ ته نسطورا وائي. راهب هم دا پیشن گویانې ورکړې وې، چې دَ الله نبي ﷺ ئې اولیدو نو وائي: دا هغه آخري پیغمبر ﷺ دے.

## دَ خدیجة الکبریٰ ﷵ دَ نبي ﷺ سره دَ نکاح اراده

نو خدیجه ﷵ پوهه شوه: چې واقعي دا آخري نبي دے.

بعضې علماؤ لیکلي دي: چې کله میسره او نبي ﷺ واپس راتلل نو خدیجه ﷵ دَ خپل کور پهٔ بالاخانه باندې وه، پهٔ چت باندې ولاړه وه، خدیجې ﷵ چې هغه نا آشنا مناظر: وریځ پرې دَ پاسه سورے وه، اولیدل نو نوره ئې هم مینه او محبت دَ نبي ﷺ سره پیدا شوه. چې مینه او محبت ئې دَ پیغمبر پاک ﷺ سره پیدا شو نو هغې اووئیل: "کهٔ چرته دا پیغمبر وادهٔ کوي نو زهٔ ورسره وادهٔ کولو ته تیاره یم، زهٔ ورسره وادهٔ کوم".

دَ نبي ﷺ عمر پهٔ دغه وخت کښې پنځهٔ ویشت (۲۵) کاله وو او دَ خدیجة الکبریٰ ﷵ عمر څلویښت (٤٠) کاله وو. او خدیجة الکبریٰ ﷵ دَ دې نه مخکښې دَ دوؤ خاوندانو نه هم کونډه شوې وه. نو وائي: کهٔ دے زما سره وادهٔ کوي نو زهٔ تیاره یم. ابو طالب ته ئې پیغام رااولیږلو. ابو طالب اووئیل: "زما خوښه ده". نبي ﷺ ته ئې اووئیل: "ورارهٔ! کهٔ ستا خوښه وي نو دَ دې زنانه سره به درته نکاح اوکړو؟". نبي ﷺ ورته اووئیل: "ډیره ښهٔ ده".

ابو طالب لاړو او څهٔ کسان نور هم لاړل دَ نکاح کولو دپاره. خدیجة الکبریٰ خو هغه وخت لا مسلمانه نهٔ وه. دَ هغې دَ پلار نوم خویلد وو، او دا خویلد وفات شوے وو، چې هغه خو دَ هغې یَو قسم مشر او وکیل دَ نکاح وو. نو نکاح به ورله څوک تړي؟ هغه خو پهٔ خپله زنانه وه نو دَ خدیجې ترهٔ دے عَمرو بن اسد هغه موجود وو نو هغهٔ دَ دې دَ طرف نه وکیل شو.

علماؤ لیکلي دي: چې ابو طالب نکاح خوان شو. او ابو طالب پهٔ هغې وخت کښې یَو خُطبه

هم وئيلي وه، دَ هغې بعضې تکي علماؤ ليکلي دي:

«أَمَّا بَعْدُ: فَإِنَّ مُحَمَّدًا مِمَّنْ لَا يُوَازَنُ بِهِ فَتًى مِنْ قُرَيْشٍ إِلَّا رَجَحَ بِهِ شَرَفًا وَنُبْلًا وَفَضْلًا وَعَقْلًا، وَإِنْ كَانَ فِي الْمَالِ قَلَّ، فَإِنَّمَا الْمَالُ ظِلٌّ زَائِلٌ، وَعَارِيَةٌ مُسْتَرْجَعَةٌ، وَلَهُ فِيْ خَدِيجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ رَغْبَةٌ، وَلَهَا فِيهِ مِثْلُ ذَلِكَ». [1]

دَ الله حمد او ثناء ئې اووئيله، بيا وائي: "دَ دې نه پس يَو خبره کوم: محمد ﷺ چې دے نو دا يَو داسې نوجوان دے چې پۀ ځوانانو کښې پۀ قريشو کښې يَو ځوان هم دَ دۀ سره برابريدلے نۀ شي، نۀ پۀ عزت کښې، نۀ پۀ شرافت کښې، نۀ پۀ فضيلت کښې، او نۀ پۀ عقل کښې. هان! دا منم چې غريب دے، فقير دے، صحيح ده چې مال به ورسره دومره نۀ وي (خديجه خو مالداره ده، او دۀ سره به دومره مال نۀ وي) خو دا مال دومره څۀ شے نۀ دے؛ ځکه چې دا مال خو يَو سورے دے چې نن پۀ تا دے او بيا روان دے (هميشه نۀ وي)، او دا داسې يَو سؤالي سامان دے چې بيا راتلونکے دے، نن نشته، صبا به ورسره وي. او دے (محمد) پۀ نکاح دَ خديجه بنت خويلد کښې رغبت او مينه لري، او دا خديجه هم دغه شان ده (محمد سره ئې مينه ده)".

نو ابو طالب ورته وائي: کۀ محمد سره مال نشته نو دې ته مۀ ګورے ځکه دا مال چې دے نو دا يَو سورے دے، نن پۀ تا صبا پۀ ما دے، او دا مال چې دے نو "عَارِيَةٌ مُسْتَرْجَعَةٌ"، دا يَو سؤالي سامان دے چې بيا راتلونکے دے، نن نشته نو صبا به ورسره وي. کله خلق وائي: دا غريب دے، دۀ له ئې نۀ ورکوو. هغه له الله دومره مال ورکړي چې دَ مالدار نه ډير وي. وائي: دا مالدار دے دۀ له ئې ورکوو. نو هغه الله داسې غريب کړي چې بيا بل ته ناست وي. دَ مال څۀ پته لګي.

نکاح اوتړلے شوه او پۀ هغې کښې شل (۲۰) اوښان پۀ مهر کښې مقرر شول. بعضې علماء وائي: دَ هغې قيمت پنځۀ سوه (۵۰۰) دراهم وو. دَ نبي ﷺ نکاح دَ خديجة الکبرٰی رضي الله عنها سره چې شوې وه نو هغه وخت دَ نبي ﷺ عمر پنځۀ ويشت کاله وو او دَ خديجة الکبرٰی رضي الله عنها عمر څلويښت (۴۰) کاله وو.

**دَ حافظ عراقي رحمه الله اشعار**

علامه حافظ عراقي رحمه الله ديته هم اشاره کړې ده: چې پۀ دويم سفر دَ نبي ﷺ چې وو نو هغۀ دَ

(1) انظر: "الروض الأنف": (238/2).

خدیجې ﷺ دَ تجارت دپاره تلے وو. نو حافظ عراقي رحمه الله وائي:

ثُمَّ مَضَى لِلشَّامِ مَعْ مَيْسَرَةِ فِيْ مَتْجَرٍ، وَالْمَالُ مِنْ خَدِيْجَةِ

"بیا نبي ﷺ شام ته لاړو، سره دَ میسره (دا دَ خدیجې ﷺ غلام وو) نه دَ تجارت دپاره او مال دَ خدیجې ﷺ وو".

مِنْ قَبْلِ تَزْوِيْجٍ بِهَا، فَبَلَغَا بُصْرٰى فَبَاعَ وَتَقَاضٰى مَا بَغٰى

"مخکښې دَ نکاح کولو دَ خدیجې ﷺ نه. نو دا دواړه (غلام او دَ الله نبي ﷺ) اورسیدل بُصرٰی (شام) علاقې ته او هلته کښې ئې سوداګانې خرڅې کړې او پوره ئې واغستل هغه څۀ کوم چې دوي طلب کول".

اول ئې دَ خدیجې ﷺ مال تجارت دپاره یوړو، بیا ئې ورسره روستو وادۀ کړے وو.

وَقَدْ رَأٰى مَيْسَرَةُ الْعَجَائِبَا مِنْهُ وَمَا خُصَّ بِهِ مَوَاهِبَا

"میسره پۀ دې لاره کښې ډیر عجائبات دَ الله دَ پیغمبر ﷺ نه اولیدل، او هغۀ تحفې ئې هم دَ دۀ سره اولیدلې چې دۀ سره کومې خاص وې".

وَحَدَّثَ السَّيِّدَةَ الْجَلِيْلَهْ خَدِيْجَةَ الْكُبْرٰى فَأَحْصَتْ قِيْلَهْ

"دۀ هغۀ ټوله قیصه هغه سردارې او لوئې شان والا زنانه چې خدیجې ﷺ وه هغې ته اوکړه نو هغې دَ دۀ دا خبرې ښائسته اوګنړلې، او دَ وادۀ نیت ئې زړۀ کښې راغے".

وَرَغِبَتْ، فَخَطَبَتْ مُحَمَّدَا فَيَا لَهَا مِنْ خِطْبَةٍ مَّا أَسْعَدَا!

"او دَ هغې دَ الله نبي ﷺ سره پۀ زړۀ کښې مینه پیدا شوه نو دَ نکاح پیغام ئې دَ الله نبي ﷺ ته اولیږلو. نو څومره بختوَره وه، دَ څومره اوچت انسان پۀ نکاح کښې راغله! او څومره خوش نصیبه بي بي وه".

وَكَانَ إِذَا زُوِّجَهَا ابْنَ خَمْسٍ مِنْ بَعْدِ عِشْرِيْنَ بِغَيْرِ لَبْسٍ[1]

"او وو دا نبي ﷺ چې کله ورته دا خدیجه ﷺ پۀ نکاح شوه دَ پنځۀ ویشتو کالو بغیر دَ څۀ شک نه".

ان شاء الله کۀ ژوند وو نو نور واقعات به بیا راځي. سیده خدیجه الله تعالٰی دَ خپل نبي ﷺ پۀ

(1) انظر: "ألفية السيرة النبوية" للحافظ العراقي: (38/1).

نکاح کښې راوسته.

**دَ الله حکمتونه**

سیدة خدیجة الکبرٰی ﷞ الله تعالٰی دَ خپل نبي ﷺ پهٔ نکاح کښې راوسته نو پهٔ دې کښې ډیر حکمتونه وو:

(۱) یَو خوا خو دَ الله نبي ﷺ کمزورے وو، غریب وو، یتیم پاتې شوے وو. لکه الله تعالٰی وائي: ﴿وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَىٰ﴾.[1]

"او موندلے وې الله رب العزة تهٔ غریب نو مالداره ئې کړې".

نو پیغمبره تهٔ ئې مالداره کړې پهٔ مال دَ خدیجې ﷞ سره. دَ پیغمبر پاک ﷺ پهٔ نکاح کښې الله تعالٰی مالداره ښځه راوسته، چې دے مالداره شي. دَ هغې پهٔ مال ئې اول تجارت شروع کړو او بیا ورته هغې هغه ټول هر څهٔ ورا وبخښل. نو دا پکښې دَ الله تعالٰی راز وو.

(۲) دویم دا: کهٔ دَ الله نبي ﷺ دَ یَو جینۍ سره نکاح کړے وے، نو دَ جینۍ سوچ دومره نهٔ وي، دَ هغې فکر هم دومره نهٔ وي، دَ هغې صبر هم دومره نهٔ وي او پهٔ نبوّت کښې خو پهٔ اول کښې ډیر تکلیفونه راځي، ډیرې سختې راځي، ډیر مصائب راځي نو هغه به دَ الله دَ نبي ﷺ نه مخکښې پریشانه وه. کله چې به دَ الله نبي ﷺ ته تکلیف میلاویدو، سخته به میلاویده نو دَ ټولو نه لویه تسلّي به خپلې بي بي خدیجة الکبرٰی ﷞ ورکوله او کله چې سړي ته څهٔ تکلیف میلاؤ شي او دَ کور طرف نه ورته بیا داډ او تسلّي میلاؤ شي نو بیا څهٔ پروا نهٔ وي. خو دا چې دَ بهر نه هم تکلیف وي او کور کښې هم خلق لګیا وي، پلار هم لګیا وي، مور هم لګیا وي، ښځهٔ هم لګیا وي نو بیا سړے وائي: چې دا پهٔ څهٔ غضب واوریدم. بیا کهٔ دَ هغهٔ هر څومره اوچته حوصله وي نو هغه رااوغورځیږي.

نو دَ الله دَ نبي ﷺ نکاح دَ خدیجې ﷞ سره اوشوه نو پهٔ دې کښې دا حکمت او دا راز هم وو چې نبي ﷺ له به تسلي ورکوي. دَ دې به درته یَو مثال اووایم:

"دَ الله نبي ﷺ له چې کله اوله وحي راغله او یریدو، کور ته راغلے، تبه ئې ده او پریشانه دے

(1) [سورة الضحی: 8].

نو خديجة الكبرٰى ﷺ ته وائي:

«لَقَدْ خَشِيْتُ عَلَى نَفْسِيْ».

"خديجې! په ځان باندې اوېرېدم (بس نور جوړې مړ کيږم)". نا آشنا نا آشنا حالات مې اوليدل.

سيدة خديجة الكبرٰى ﷺ دَ الله نبي ﷺ ته اوله خبره دا کوي:

"فَوَاللهِ لَا يُخْزِيكَ اللهُ أَبَدًا".[1]

قسم په الله چرته به هم الله تعالٰى تا نۀ رسوا کوي، چرې هم داسې نۀ ده، چرې به هم الله تعالٰى تا نۀ پرېږدي. او بيا نبي ﷺ ته ډاډګيرنه ورکوي، تسلّي ورله ورکوي: چې پرواه اونۀ کړې تا به الله تعالٰى نۀ خرابَوي؛ ځکه ستا په شان خلق الله نۀ ضائع کوي. نو اوله تسلي خديجة الکبرٰى ﷺ ورکوې. او دا دَ تکليف دَ وخت بي بي وه. دَ الله دَ نبي ﷺ چې دَ دې سره څومره مينه وه (روستو به حالاتو کښې زاشي) دومره مينه ئې دَ بلې بي بي سره نۀ وه. او دَ دې په ژوند دَ الله نبي ﷺ دَ بلې بي بي سره وادۀ هم نۀ وو کړے. دَ دې دَ وفات نه پس ئې بيا ډېر ودونه کړي دي. خو دا چې تر څو ژوندئ وه نو پيغمبر ﷺ بل وادۀ نۀ وو کړے.

باقي حالات به نورو جُمعو کښې راځي ان شاء الله.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

---

(1) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (444/1).

بسم الله الرحمن الرحيم

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ (1) خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ (2) اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ (3) الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (4) عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ

(سورة العلق: 1-5)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه اوومه

## "دَ وحي ابتداء "

بتاريخ: 2022-01-21

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه اوومه

## "دَ وحي ابتداء "

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾.(1)

حاضرینو عزتمندو مسلمانانو رونړوا دَ رسول الله ﷺ سیرت دَ هغې څهٔ حصې مخکښې جُمعو کښې بیان شوے دے: دَ نبوّت نه مخکښې حالات دَ رسول الله ﷺ مخکښې جُمعو کښې ذکر شول. نن بیان کښې به دَ وحي دَ ابتداء متعلق بحث اوکړو.

**دَ محمد رسول الله ﷺ دَ نبوّت ابتداء**

دَ رسول الله ﷺ عمر مبارک چې کله څلویښتو (۴۰) کالو ته قریب شو نو حدیث کښې راځي: "چې نبي ﷺ به ښائسته ښائسته خوبونه لیدل او بیا هغه خوبونه به هم دغه شان تعبیر والا وو څنګه چې به محمد عربي ﷺ لیدلي وو (یعني ښائسته تعبیر به ئې وو)".

بیا رسول الله ﷺ ته دَ دې خلقو دَ ناروا دَ کتلو دَ وجې نه.... چې پهٔ ملک کښې ډیر ناروا وو، نو رسول الله ﷺ ته خلاء او ځانله والے محبوب شو. چې بیان کولے نهٔ شم، اصلاح کولے نهٔ شم نو راشه دَ دې خلقو نه ځان له شه.

---

(1) [سورة العلق: 1-5].

## دَ سیده عائشه ﷺ فرمان مبارکه

دَ دې هغه نقشه سیده عائشه ﷺ بیانوي، په "صحیح البخاري" کښې حدیث دے: عائشه ﷺ فرمائي:

"أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللهِ ﷺ مِنَ الوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِي النَّوْمِ".[1]

"اول هغه چې شروع دَ وحي اوشوه رسول الله ﷺ ته دَ وحي نو هغه ښائسته ښائسته خوبونه لیدل وو په خوب کښې".

نو اول چې رسول الله ﷺ ته کومه وحي شروع شوې وه هغه ښائسته ښائسته خوبونه لیدل وو. او دا مسئله ده: چې

"رُؤْيَا الْأَنْبِيَاءِ وَحْيٌ".

"دَ انبیاء کرامو علیهم السلام خوبونه لیدل هغه هم وحي وي".

یَو زمونږ خوبونه وي نو زمونږ خوبونه به کله صحیح وي او کله به غلط وي، او یَو دَ نبي ﷺ خوب لیدل وي نو دَ نبي ﷺ دا خوب لیدل وحي وي. وجه څۀ ده؟ نو ځکه چې نبي ﷺ غلط خوبونه نۀویني. مونږ داسې اوده کیږو چې زمونږ دماغ هم اوده وي او زمونږ زړۀ هم اوده وي، مونږ دَ ځان نه نۀ خبریږو. او پیغمبران هغوي به چې اوده کیدل نو دَ هغوي زړونه به ویخ وو. لکه حدیث کښې راځي:

«إِنَّ العَيْنَ نَائِمَةٌ، وَالقَلْبَ يَقْظَانُ».[2]

"یقینًا سترګې ئې اودې دي او زړۀ ئې ویخ دے".

نو انبیاء کرام علیهم السلام چې وو نو هغوي به سترګې پټې کړې وې خو زړونه به ئې ویخ وو. نو چې پۀ ویخه باندې یَو سړے یَو شے اوویني نو هغه به څنګه بیا دروغ شي؟ نو پۀ دې وجه دَ انبیاء کرامو علیهم السلام خوب وحي وي.

## دَ ابراهیم علیه السلام خوب لیدل

ابراهیم علیه السلام خوب لیدلے وو، خوب کښې ورته الله رب العزة وائي: "چې ځوي دې حلال

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ، برقم: (3).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ، برقم: (7281).

کړه". چې سحر راپاڅیدو نو ځوي ته وائي:

﴿يَابُنَيَّ إِنِّي أَرَى فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ﴾.(1)

"بچیه! ما په خوب کښې خپل ځان لیدلے وو چې تا حلالوم".

ما ته مې رب وئیلي دي: چې دا ځوي دې حلال کړه نو:

﴿فَانْظُرْ مَاذَا تَرَى﴾.(2)

"ته سوچ اوکړه! چې ستا څۀ رائې ده؟".

نو اوس دا دَ نبي خوب دے، دروغ خو کیدے نۀ شي؛ پۀ دې وجه پۀ وینبه باندې ئې پۀ بچي چاړۀ راخکله. نو دَ پیغمبر خوب لیدل دا دَ هغۀ وحي وي.

دغه شان بل مثال اوګوره!

**دَ نبي ﷺ حالت اوګوره !**

نبي ﷺ بیمار دے، یهودو ورباندې سحر او جادو کړے دے. نبي ﷺ ته پته نۀ وه چې دا څۀ چل شوے دے. معلومه شوه: چې انبیاء کرام علیهم السلام عالم الغیب نۀ دي، عالم الغیب صرف یَو الله رب العزة دے. اوس خو داسې خلق پیدا شوي دي چې ستا دَ جادو نه هم خبر دي، وائي: تا باندې چا تور جادو کړے دے، او تا باندې چا فلانکے جادو کړے دے. هلکه! نبي ﷺ ته پته نۀ وه او تا ته پته اولګیده! نبي ﷺ ته پته نشته: یَو کار به ئې کړے وو خو ذهن کښې به ئې دا وو چې دا کار ما نۀ دے کړے او چې یَو کار به ئې نۀ وو کړے نو سوچ به ئې دا وو چې دا کار ما کړے دے، هر وخت به ئې بدن انختے وو، پریشانه پریشانه به وو، بیمار به وو. پته به ورته نۀ لګیده چې دا څۀ چل دے. خو کوم چې دعوت وو نو پۀ هغې کښې پرې اثر نۀ وو پریوتے؛ ځکه دَ هغې حفاظت خو الله رب العزة کولو.

نبي ﷺ اودۀ دے دې کښې دوه کسان راغلل، یَو ئې سر ته اودریدو او بل ئې خپو ته اودریدو (دا فرشتې وې او الله رب العزة رالیږلې وې). دا یَوه دَ بلې نه تپوس کوي: چې دا سړے ولې

---

(1) [سورة الصافات: 102].

(2) [سورة الصافات: 102].

پروت دے؟ دا بله ورته وائي:

«مَطْبُوبٌ، يَعْنِي مَسْحُورًا». "چې دهٔ باندې جادو شوے دے".

بيا ترې دا يَوه تپوس کوي: چې دهٔ باندې چا جادو کړے دے؟ نو وائي: لبيد بن اعصم. بيا ترې تپوس کوي: چې کوم ځائے کښې پروت دے؟ هغهٔ بله فرشته ورته وائي:

"فِي جُفِّ طَلْعَةِ ذَكَرٍ فِي مُشْطٍ وَمُشَاقَةٍ، تَحْتَ رَعُوفَةٍ[1] فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ".[2]

"بِئْرِ ذروان کښې دا جادو پروت دے، دَ منکز (کمنز) پهٔ غابنونو کښې د نبي ﷺ ويښتهٔ دي، او دَ کجورو بورئ ئې هم ورسره ملګرې کړې ده چې دَ پلنې ګټې نه لاندې ده".

اوس دا پهٔ وحي معلومه شوه، خوب کښې نبي ﷺ ته ملائک راغلل او خوب خو وحي ده. خبره مې هم دا راروانه کړې وه چې خوب دَ انبياء کرامو ﷺ وحي وي.

نبي ﷺ چې صحابه کرام ﷺ اوليږل نو دَ هغې کوهي اوبهٔ داسې زيړې شوې وې لکه دَ نکريزو دا رنګ چې پښکښې سرے ميلاؤ کړي. دَ هغې هغه اوبې داسې شوې وې لکه دَ مارانو سرونه، داسې ناکاره جادو ئې پهٔ نبي ﷺ باندې کړے وو. آخري سورتونه راغلل. دَ الله نبي ﷺ به هغه لوستل نو الله رب العزة دَ هغې اثر ختم کړو.

نو دا هم نبي ﷺ خوب ليدلے وو خو خوب دَ پيغمبرانو وحي وي نو دا وحي شوه.

**خوب دَ نبوّت حصه**

دَ دې وجې نه پهٔ حديث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي:

«الرُّؤْيَا الحَسَنَةُ، مِنَ الرَّجُلِ الصَّالِحِ، جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ».[3]

"دَ نيک سړي ښائسته خوبونه ليدل دا دَ نبوّت شپږ څلويښتمه (٤٦) حصه ده".

---

(1) قال علامة ابن حجر ﷫: حَجَرٌ يُوضَعُ عَلَى رَأْسِ الْبِئْرِ لَا يُسْتَطَاعُ قَلْعُهُ يَقُومُ عَلَيْهِ الْمُسْتَقِي وَقَدْ يَكُونُ فِي أَسْفَلِ الْبِئْرِ قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ هِيَ صَخْرَةٌ تُنْزَلُ فِي أَسْفَلِ الْبِئْرِ إِذَا حُفِرَتْ يَجْلِسُ عَلَيْهَا الَّذِي يُنَظِّفُ الْبِئْرَ. ["فتح الباري" لابن حجر العسقلاني: (234/10).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الأدب، بَابُ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾، برقم: (6063).

(3) أخرجه البخاري في كتاب التعبير، باب رؤيا الصالحين، برقم: (6983).

علماؤ ليکلي دي: چې شپږ مياشتې به مسلسل نبي ﷺ ښائسته ښائسته خوبونه ليدل.

**دَ علامه ابن قيم رحمه الله قول**

علامه ابن قيم رحمه الله ليکلي دي: دَ نبوّت نه بعد زندګي دَ نبي ﷺ درويشت (٢٣) کاله ده او دَ نبوّت نه مخکښې زندګې ئې څلويښت کاله ده. نو دا ټوله درې شپيتهٔ (٦٣) کاله زندګي شوه. خو چونکه دَ نبوّت زندګي درويشت کاله ده، څلويښت کاله زندګي خو دَ نبوّت نه مخکښې وه نو هغه ترې کټ کړه نو درويشت (٢٣) کاله نبي ﷺ ته الله رب العزة نبوّت ورکړے وو دنيا کښې ... ئې چلولو. په دې درويشتو کالو کښې چې دَ دې سره نور درويشت ملګري کړې؛ ځکه شپږ مياشتې دَ الله نبي ﷺ ښائسته ښائسته خوبونه ليدل، نو درويشتو سره چې درويشت ملګري کړې نو دَ دې نه شپږ څلويښت (٤٦) جوړيږي. يعني کال کښې دولس (١٢) مياشتې وي، دَ درويشتو (٢٣) کالو (شپږ څلويښتمه (٤٦) حصه) شپږ مياشتې جوړيږي؛ ځکه شپږ مياشتې نبي ﷺ مسلسل ښائسته ښائسته خوبونه اوليدل.

نو شپږ مياشتې به نبي ﷺ ښائسته ښائسته خوبونه ليدل، او حديث دَ "صحيح البخاري" کښې راځي:

«فَكَانَ لاَ يَرَى رُؤْيَا إِلاَّ جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ».[1]

"دَ الله نبي ﷺ به خوب نهٔ ليدو مګر هغه خوب او دَ هغې تعبير به داسې صفا راتلو لکه دَ صبا روښانه". لکه څنګه چې ورځ سحر کښې صفا سُتره وي، تيارهٔ ختمه شي نو دغه شان به دَ نبي ﷺ خوبونه روښانه راختل.

نو دا خوب دَ نبي ﷺ (دَ نبوّت) شپږ څلويښتمه (٤٦) حصه ده؛ ځکه خو دَ الله نبي ﷺ شپږ مياشتې ښائسته ښائسته خوبونه ليدل.

**يواځې والې نبي ﷺ ته محبوب وو**

حديث مبارَک کښې بيا راځي:

«ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الخَلاَءُ».[1]

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

"بیا دَ الله پیغمبر ﷺ ته خلاء او ځان له والے محبوب شو".

دا خلاء او ځانله والے ولې نبي ﷺ ته محبوب شو؟ ولې به دَ الله نبي ﷺ ځان له ځائے کښې خوشحاله وو؟ دَ هغې وجه دا وه: چې ډير ناروا به کيدل، شرکياتو کښې خلق مبتلاء وو، نارواه او ظلمونو کښې مبتلاء وو، دَ الله نبي ﷺ ته څۀ داسې طريقه معلومه نۀ وه چې دَ دې خلقو دَ اصلاح څۀ چل اوکړم؟

**دَ الله رب العزة دَ نبي ﷺ باره کښې اعلان**

﴿وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدَىٰ﴾.[2]

"موندلے وو تا لره الله رب العزة حيران او پريشان دَ قوم پۀ اصلاح کښې نو الله درته چل اوښودلو".

دَ الله نبي ﷺ به هغه ناروا هم نۀ شو کتلے او حيران وو: چې دَ دې خلقو اصلاح به څنګه کيږي!!! نو دَ دې وجې نه دَ الله نبي ﷺ ځانله والے اختيار کړو.

بيا عائشه ﵂ فرمائي: «وكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ».

دا روايت "صحيح البخاري" کښې شپږ کرته ذکر دے، "دَ الله نبي ﷺ به پۀ غارِ حراء کښې ځانله ناست وو".

او غارِ حراء دا دَ مکې مکرّمې نه تقريبًا دَ دوؤ ميلو پۀ اندازه باندې لرې دے. دا يَو غار دے. او اکثر خلق چې لاړ شي نو هغې ته ورشي. او دا داسې غر دے چې سرے پکښې دَ ورځې يريږي. دَ الله نبي ﷺ به هلته تلو.

"فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ". "نو دَ الله نبي ﷺ به پۀ هغې کښې عبادت کولو".

اوس سؤال راځي: چې تحنُّث څۀ ته وائي؟

نو امام بخاري ﵀ معنٰى کوي:

"وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ العَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ".

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

(2) [سورة الضحى: 7].

"دا يَو خو دَ شمار شپو عبادت وو، چې کور ته به پښکښې نهٔ راتلو او په دغه شپو کښې به ئې دَ کور نه ځان سره توخه اُوړله".

نو سؤال دا راځي: چې نبي ﷺ څنګه عبادت کولو؟ الله رب العزة خو لا دَ عبادت طريقه راليږلې نهٔ وه؟ نو دَ نبي ﷺ دَ عبادت طريقه څهٔ وه؟

جواب دا دے (او دا ذهن کښې واچوئ؛ ځکه خلق به درباندې اعتراض کوي نو چې بيا جواب درځي!): چې نبي ﷺ دَ ملتِ ابراهيمي پهٔ طريقه باندې عبادت کولو. او دَ ابراهيم عليه السلام دَ عبادت طريقه دا پهٔ قريشو کښې رائج وه لکه اوګوره! واقعه دَ زيد بن عَمرو بن نفيل رضي الله عنه:

**واقعه دَ زيد بن عَمرو بن نفيل رضي الله عنه**

دا دَ نبي ﷺ نه مخکښې يَو مؤحِّد تير شوے وو. زيد بن عمرو بن نفيل رضي الله عنه به وئيل: "ما له داسې يَو آسماني دين پکار دے چې زهٔ دَ هغې اتِّباع اُوکړم". نو دے لاړو يهودو ته او يهودو ته وائي: "چې ما له دَ دين حقّه نشان دهي اوکړئ چې زهٔ پهٔ هغې باندې عمل اوکړم؟". نو بعضې صحيح خلق هم وي، صحيح مشوره ورکړي. يهودو ورته اووئيل: "چې دا خو زمونږ دين دے او دَ آسمان نه نازل شوے دے، خو اوس هغه دين پاتې نهٔ دے، پهٔ يهودو خو دَ الله غضب دے، کهٔ دَ الله غضب ته ځان نيولے شې نو زمونږ دين قبول کړه، او کهٔ غضبِ الٰهي نه ځان بچ کولے شې نو دا بيا پريږده". دَ هغوي نه روان شو نو هغوي ته وائي: "چې ما ته داسې دين اوښايئ چې هغه به کوم دين وي چې زهٔ هغه اختيار کړم او دَ غضبِ الٰهي نه پرې بچ شم؟". نو هغوي ورته اووئيل: "کهٔ مونږ ئې منو او کهٔ نهٔ ئې منو خو ملَّتِ ابراهيمي حق دين دے". دَ هغوي نه را روان شو. نصاراؤ ته راغے، نصاراؤ ته وائي: "چې ما ته يَو صحيح دين اوښايئ؛ چې زهٔ هغې پسې روان شم؟ او کهٔ ستاسو دا دين حق وي نو چې دا اومنم". نصاراؤ ورته اووئيل: چې زمونږ پهٔ دين کښې خو ضلالت دے، ګمراهي ده، کهٔ ګمراهي دې خوښه وي خو راځه، او کهٔ ګمراهي دې نهٔ وي خوښه نو زمونږ دين پريږده. دهٔ اووئيل: نا! زهٔ خو هدايت پسې ګرځم. هغوي ورته اووئيل: چې هدايت پسې ګرځې نو دينِ ابراهيمي پسې لاړشه.

زيد بن عمرو بن نفيل هغه مکې ته راغے، او پۀ مکه کښې ئې اعلان اوکړو: چې دَ نن نه بعد زۀ پۀ ملَّتِ ابراهيمي باندې يم، نۀ زۀ پۀ يهوديت باندې يم او نۀ زۀ پۀ نصرانيت باندې يم، بلکه زۀ پۀ ملَّتِ ابراهيمي باندې يم. او قريشو ته ئې اووئيل: چې تاسو هم ملَّتِ ابراهيمي راتېنګ کړئ. او پۀ هغوي به ئې رد کولو چې ملَّتِ ابراهيمي کښې خو شرک نۀ وو، او تاسو شرک کوئ.

نو هغې زمانه کښې به زيد بن عمرو بن نفيل دَ شرک رد کولو چې نبي ﷺ ته نبوَّت هم لا نۀ وو ميلاؤ شوے. هغه به دَ غير الله دَ منختې نه څان ساتلو، چې کوم شے به دَ لات، منات او عُزّٰى پۀ نوم حلال شوے وو هغه به ئې نۀ خوړلو. وئيل به ئې: چې دا شے ناروا دے. او دَ ابراهيم عليه السلام پۀ طريقه به هغه عبادت کولو. دا يَو طريقه شوه.

او نبي ﷺ به هم عبادت پۀ ملتِ ابراهيمي باندې کولو. دويم دا چې نبي ﷺ ته به وحي راتله، خوب به ئې ليدو. دَ پيغمبر ﷺ خوب ليدل دا يَو قسم دے دَ وحي نه، نو نبي ﷺ ته به دَ عبادت طريقه خوب کښې اوښودلے شوه. دا دوه شوې.

او دريم دا: چې نور عبادت نۀ وو، خو دغه وخت عبادت دَ نبي ﷺ هغه دَ الله پۀ قدرتونو کښې سوچ او فکر وو او دَ دې نه دَ الله عظمت معلومول وو. او دا مسئله ده: علماؤ ليکلې ده، علامه ابن قيم رحمه الله ذکر کړې دي، دَ بعضې سلفو علماؤ نه نقل دي وائي:

"تَفَكُّرُ سَاعَةٍ خَيْرٌ مِنْ عِبَادَةِ سِتِّيْنَ سَنَةً".(1)

"يَو ساعت سوچ کول دَ الله پۀ عظمت او دَ الله پۀ لويئ کښې او دَ هغۀ پۀ مخلوق کښې دا دَ شپيتؤ (٦٠) کالو دَ بے سوچه او بے فکره عبادت نه بهتر دي".

نو دا هم يَو قسم عبادت وو: چې دَ الله قدرتونه به ئې دَ دې اشياؤ نه معلومول، دا عبادت شو.

نو دَ الله نبي ﷺ به دغه غارِ حراء کښې عبادت کولو يا پۀ ملتِ ابراهيمي باندې، يا به ورته خوب کښې اووئيلے شو، خوب به ئې اوليدو او يا دا چې سوچ او فکر به ئې دَ الله پۀ قدرتونو کښې کولو.

(1) انظر: "مفتاح دار السعادة ومنشور ولاية العلم" لابن القيم: (180/1).

"قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ...". "كور ته دَ راتلو نه مخكښې، هلته به وو او دَ الله نبي ﷺ به دَ ځان سره توخه اوړله".

او محدثين ذكر كوي: چې نبي ﷺ به ټول رمضان كښې په غارِ حراء كښې وو.

ځان سره به ئې دَ خوراك، څښكاك سامان اوړلو نو چې هغه به خلاص شو:

"ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا".

"بيا به راكوز شو او دَ خديجې ﷺ خوا ته به راغے نو بيا به ئې دَ ځان سره هغه شان توخه واغسته". چې څومره ورځې به حِصار وو نو دَ هغې خوراك، څښكاك به ئې دَ ځان سره واغستو.

"حَتَّى جَاءَهُ الحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ".

"تر دې چې نبي ﷺ ته وحي راغله او نبي ﷺ په غارِ حراء كښې وو".

وحي شروع شوه، نو دَ وحي ابتداء څنګه وه؟

"فَجَاءَهُ المَلَكُ فَقَالَ: اقْرَأْ".[1]

نبي ﷺ فرمائي: "جبرئيل امين ﷺ راغے او ماته وائي: لوله". شابه وايه! نو ما ورته اووئيل:

«مَا أَنَا بِقَارِئٍ».

"زهٔ قاري نهٔ يم"، زهٔ لوستونكے نهٔ يم، ما چرته سبق نهٔ دے وئيلے.

حديث كښې راځي: نبي ﷺ فرمائي:

"فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الجَهْدَ".

"جبرئيل امين ﷺ زهٔ اونيولم او دَ ځان سره ئې جوښت كړم، ما ته ئې ډير زور راكړو تردې پورې چې اورسيدو ما ته دَ دې نه ډير تكليف".

هغې وخت كښې خو دا پته نهٔ وه چې دا جبرئيل امين ﷺ دے، نو نبي ﷺ وائي: ما له ئې زور راكړو تردې پورې چې اورسيدو ما ته دَ هغې نه ډير تكليف. پهٔ دې معنٰى سره "الجهدُ" فاعل دَ "بلَغَ" شو. معنٰى ډير تكليف سره مخامخ شوم. او دا يا مفعول د "بَلَغَ" دے او "جبرئيل"

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

ورله فاعل دے، نو معنٰی دا شوه: چې جبرئیل امین ﷵ زما نه ډیر تکلیف ته اورسیدو، معنٰی ډیر تکلیف ئې ما له راکړو او ډیر زور ئې ما له راکړو، ښۀ زور ئې ما له راکړو.

"ثُمَّ أَرْسَلَنِي، فَقَالَ: اقْرَأْ، قُلْتُ: مَا أَنَا بِقَارِئٍ".

"بیا ئې پریخودم، نو ما ته وائي: چې: اقْرَأْ، اوس وایه، ما ورته بیا هغه جواب ورکړو چې: مَا أَنَا بِقَارِئٍ، زۀ خو لوستونکے نۀ یم، ما څۀ نۀ دي وئیلي".

"فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي، فَقَالَ: اقْرَأْ".

"نو بیا ئې اونیولم، بیا ئې ما له زور راکړو او ښۀ زور ئې راکړو نو بیا ئې پریخودم نو بیا ما ته وائي: اقْرَأْ، ما ورته بیا اووئیل: چې مَا أَنَا بِقَارِئٍ، زۀ قاري نۀ یم، ما سبق نۀ دے وئیلے نو څۀ شے اووایم؟ (څکه ابتداء وه)".

"فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي، فَقَالَ: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ﴾ [العلق: 1-3]".(1)

وائي: "په دریم ځل ئې اونیولم، زور ئې راکړو او بیا ئې په دریم ځل هم پریخودلم او جبرئیل امین ﷵ زما نه مخکښې لکیا شو او ما ته وائي: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾"(2).

دا تلاوت شروع شو، څۀ نا آشنا الفاظ.وو! دَ سورة العلق دا ابتدائي آیتونه راغلل. محدثین وائي: دا دَ قرآن اولنئ وحي وه چې نبي ﷺ ته دَ جبرئیل امین ﷵ په واسطه شوې وه. خو اول وحي دا نۀ ده؛ څکه اول وحي ښائسته ښائسته خوبونه لیدل وو، لکه څنګه چې درته ما مخکښې اووئیل: چې شپږ میاشتې به ئې ښائسته ښائسته خوبونه لیدل، هغه خو به جبرئیل امین ﷵ نۀ راوړل. جبرئیل امین ﷵ چې کومه وحي راوړې ده نو هغې کښې اولنئ وحي دَ سورة العلق دا ابتدائي آیتونه دي.

الله رب العزة خپل پیغمبر ﷺ ته وائي: چې: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ﴾.

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3) وأيضًا برقم: (4953).

(2) [سورة العلق: 1-5].

"اولوله پهٔ امداد دَ نوم دَ ربّ ستا چې تمام مخلوق ئې پیدا کړے دے".

## دَ سورة العلق دَ ابتدائي آیتونو مقصد

علماءِ تفسیر لیکي: چې دَ دې آیتونو دَ سورة العلق څهٔ مقصد دے؟

نو ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ ئې اووئیل او "اِقْرَءْ بِاسْمِ اللهِ" ئې اونهٔ وئیلو، "اِقْرَأْ بِاسْمِ الرَّحْمٰنِ" ئې اونهٔ وئیلو؟ نو دې کښې اشاره دیته ده: چې ربّ څا ته وائي؟ ربّ تربیت کونکي ته وائي، پرورش کونکي ته وائي.

علماؤ لیکلي دي: چې تربیت څهٔ ته وائي؟ نو تربیت وائي:

"اِنْشَاءُ الشَّيْءِ حَالاً فَحَالاً اِلَى حَدِّ الْكَمَالِ".

"چې هغه دَ یَو څیز پرورش کوي پهٔ رو رو باندې تر دې چې هغه کمال ته ئې اورَسَوي".

نو دې ته تربیت وائي، چې څوک دا کارونه کوي هغه ربّ دے. نو معلومه شوه دا خبره: چې ربّ ستا پرورش اوکړو پهٔ وړوکوالي کښې پهٔ یَو نا آشنا طریقه، دَ ټولو خلقو نه پهٔ نا آشنا طریقه باندې وو، تهٔ پهٔ نا آشنا طریقه باندې پیدا شوې. تا له دَ پیو انتظام الله پهٔ نا آشنا طریقه اوکړو، تهٔ الله پهٔ نا آشنا طریقه باندې لوی کړې، کانړو پهٔ تا سلامونه اچول، وُنو پهٔ تا باندې سوري کول، وریځې پهٔ تا باندې سوري کیدلې، ستا پهٔ وجه به الله نورو خلقو له خیر او برکت ورکولو. ځنګه چې الله تعالٰی ستا جسماني تربیت کړے دے نو اوس هغه ذات ستا روحاني تربیت کول غواړي نو ځکه ئې دَ "ربّ" نوم راوړو.

﴿خَلَقَ﴾ "هغه ذات چې مخلوق ئې پیدا کړے دے".

دلته ئې "خَلَقَ" اووئیلو او دَ دې دپاره ئې مفعول ذکر نهٔ کړو؛ اشاره ده تعمیم ته، یعني چې څهٔ شے دے نو هغه الله پیدا کړے دے، لکه جواهر الله پیدا کوي، آسمانونه، زمکې، فرشتې، انسانان دا ټول مخلوق هغهٔ پیدا کړے دے. نو ځکه ئې "خَلَقَ" اووئیلو او مفعول ئې ظاهر نهٔ کړو، تعمیم ته اشاره ده.

﴿خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ﴾.[1]

"پیدا کړے دے الله رب العزة انسان دَ توټې دَ وینې نه".

نُطفې نه وینه جوړه شي، او دَ وینې نه بیا غوښه جوړه شي، او بیا دَ هغې نه هډوکے جوړ شي، او دَ هډوکي د پاسه بیا غوښه راشي. نو انسان ئې دَ یو توټې وینې نه پیدا کړے دے، اشاره دې ته ده: چې دا نطفه یا دا وینه څنګه چې هغې کښې عقل نۀ وو، پوهه نۀ وه، څۀ حرکت نۀ وو، هغې نه الله انسان پیدا کړو، انسان ئې جوړ کړو، او عقلمند ئې جوړ کړو. نو اے نبي ﷺ! څنګه چې ستا سینه کښې قرآن نشته، نو زۀ تا دَ قرآن قاري جوړول غواړم، او زۀ ستا پۀ سینه کښې قرآن دننه کول غواړم.

﴿اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ﴾.[2] دوباره ئې دا اووئیل، نو دا دوباره تاکیدًا وائي. چې دا کوړے! هسې وړه خبره نۀ ده. "خامخه دا قرآن وایه".

یا علماء وائي: دَ اول نه مراد دا دے: چې اوس قرآن وایه، او دَ دویم نه مراد دا دے: چې سفر کښې هم قرآن وایه، او حضر کښې ئې هم وایه.

یا اول معنٰی دا ده: چې خارج الصلوٰة ئې وایه، او دَ دویم معنٰی دا ده: چې مانځۀ کښې هم قرآن وایه.

او یا تعمیم دَ اوقاتو ته اشاره ده، چې هر وخت قرآن وایه.

"اولوله قرآنِ عظیم ربّ ستا دے ډیر عزتمند"، هغه به تا لره عزت درکوي، هغه به تا لره لوئي مقام درکوي دَ دې قرآن دَ تعلیم پۀ وجه باندې؛ ځکه قرآن عزتمند دے. نو دَ دې سره تۀ خپل نسبت جوړ کړه الله به تا عزتمند کړي. او کۀ دَ دې سره دې نسبت کټ شو نو تۀ به ذلیله شې.

﴿الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ﴾.[3]

"هغه ذات چې ښودنه ئې کړې ده هر څیز ته پۀ قلم باندې".

علماء کرام ذکر کوي: چې دَ دې څۀ معنٰی ده؟ نو وائي: اشاره ده دې خبرې طرف ته: چې

(1) [سورة العلق: 2].

(2) [سورة العلق: 3].

(3) [سورة العلق: 4].

کوم الله رب العزة چې هغه پۀ اوچ قلم کښې دا طاقت کیخودے دے چې هغه داسې تکي لیکي چې انسان بیا دَ هغې نه تعبیر کولے شي نو ستا پۀ دماغو کښې به الله تعالٰی دا قرآن کیښنَوي، تۀ به ئې خلقو ته بیانولے شې. او څنګه چې قلم دا یَو ذریعه دَ تعبیر ده او ذریعه دَ تعلیم ده نو دغسې جبرئیل امین ﷺ چې دے تا لره دا قرآن راوړي نو پۀ دې ذریعه تا لره تعلیم درکولے شي.

او یَو نکته علماؤ دا هم لیکلې ده: چې قلم باندې لیکل کیږي خو کاتب دَ دې قلم نه بهتر وي، قلم ذریعه ده دَ لیکلو لیکن دا کاتب (لیکونکے) ترې بهتر وي نو جبرئیل امین ﷺ ذریعه دَ وحي دَ راوړو ده لیکن نبي ﷺ نه بهتر نۀ دے. نبي ﷺ دَ جبرئیل امین ﷺ نه بهتر وو. شاګرد دے خو دَ استاذ نه بهتر شو.

او یا اشاره ده دیته: چې کله یَو خبره دَ انسان نه هیریږي نو هغه ئې اولیکي نو بیا ترې نۀ هیریږي نو اے نبي ﷺ! لکه څنګه چې قلم باندې خبره پۀ ریکارډ کښې راشي نو دغسې زۀ به دا خبرې ستا پۀ سینه کښې بندوم، او ستا نه به بیا نۀ هیریږي. لکه الله تعالٰی قرآنِ کریم کښې فرمائي:

﴿سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ﴾.[1]

"زر ده چې لوستل به اوکړو مونږ پۀ تا باندې نو تۀ به ئې نۀ شې هیرولے".

**دَ نبي ﷺ خواته دَ یَو کس راتلل**

یَو سړے راغے، نبي ﷺ ته وائي: اے دَ الله نبي! زما نه دَ علم ډیرې خبرې هیریږي، څۀ وظیفه راته راکړه. نبي ﷺ ورته وائي:

"اسْتَعِنْ بِيَمِينِكَ".[2]

"پۀ ښي لاس باندې امداد حاصل کړه". لیکه بیا به درنه نۀ هیریږي.

﴿عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾.[3]

---

(1) [سورة الأعلى: 6].

(2) أخرجه الترمذي في أبواب العلم، باب ما جاء في الرخصة في كتابة العلم، برقم: (2666).

(3) [سورة العلق: 5].

"ښودنه ئې کړې انسان ته دَ هغه څهٔ چې دے ورباندې نهٔ پوهیدو".

اشاره ده دیته: چې څنګه انسان پیدا شو نو دَ څهٔ نه خبر نهٔ وو، خبرې ئې ورته اوښودلې، سوچ او فکر ئې ورله ورکړو نو دغسې دین به ورته هم الله تعالیٰ ښائي.

بهر حال دا وحي نبي ﷺ ته راغله.

**دَ وحي نه بعد دَ نبي ﷺ کور ته راتلل**

دا آیتونه چې نبي ﷺ واوریدل نو:

"فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ".[1]

"دَ الله نبي ﷺ کور ته راغلے او دا زړهٔ ئې داسې ریږځي".

او بعضې روایت کښې "تَرْجُفُ بَوَادِرُهُ".[2] تکي راځي، "بَوَادِر" معنیٰ: دَ دواړو اوګو پهٔ مابین کښې غوښه ئې ریږځیده. او "فُؤَاد" زړهٔ ته وائي.

ما تاسو ته مخکښې وئیلي وو: چې دَ الله تعالیٰ پهٔ هر کار کښې حکمت وي، الله رب العزة دَ نبي ﷺ پهٔ نکاح کښې دا دَ څلویښتو کالو زنانه ځکه راوسته؛ چې دَ دې ډیرې تجربې شوې وې ډیره دَ مضبوط زړهٔ والا وه.

"فَدَخَلَ عَلَى خَدِيجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَقَالَ: «زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي»".

"دَ الله نبي ﷺ دَ خدیجه بنت خویلد ﷺ (دَ خپلې بي بي) خوا ته لاړو، وائي: ما پهٔ کمبل کښې را اُونغاړئ، ما پهٔ کمبل کښې را اُونغاړئ (دَ الله پهٔ نبي ﷺ باندې رُعب راغلے وو)".

"فَزَمَّلُوهُ حَتَّى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ. فَقَالَ لِخَدِيجَةَ وَأَخْبَرَهَا الخَبَرَ".[3]

"نو هغوي نبي ﷺ پهٔ کمبل کښې رااُونغښتو تر دې پورې چې دَ الله نبي ﷺ نه رُعب لرې شو، یره ئې کمه شوه. خدیجې ﷺ ته وائي: اے خدیجې! دا پهٔ ما څهٔ چل شوے دے؟ هغه قصه ئې ورته ټوله بیان کړه".

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3) وأيضًا برقم: (4953).

(2) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

(3) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3) وأيضًا برقم: (4953).

نبي ﷺ ورته وائي: «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي». "خديجې! قسم په الله چې زۀ په خپل ځان باندې اويَريدم"، نور ما سره دَ ځان غم شو.

دا دَ الله نبي ﷺ دَ کومې خبرې نه يريدو چې وائي: «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي»؟ نو پۀ دې کښې علماؤ ډير توجيهات کړي دي، څۀ صحيح دي او څۀ پکښې ضعيف دي. څوک وائي: «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي»، "زۀ پۀ ځان اويَريدم چې چرته ليونے نۀ شم، کَډوَډ حالات وينم، کهانت راباندې رانۀ شي".

خو دا خبره بالکل ضعيفه ده؛ ځکه نبي ﷺ ته دَ مخکښې نه الله تعالیٰ دا معلومات ورکړي وو: چې تۀ به نبي جوړيږې. نو نبي نۀ ليونے کيږي.

يا «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي» پۀ دې کښې ښائسته توجيه دا ده: "چې خديجې! زۀ اويريدم پۀ خپل ځان باندې دَ مرګ نه. چې داسې نا آشنا حالات وينم چې مړ کيږم او کۀ څنګه؟".

يا «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي» "زۀ اويريدم پۀ خپل ځان دَ بيمارئ نه". چې پۀ ما به دَ دې نه بيماري راشي.

يا «لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي» شيخ رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله معنیٰ کوي: "زۀ پۀ ځان باندې اويريدم چې دا خو ما ته الله ډيره لويه ذمه واري حواله کوي، زۀ به دا اورسولے شم او کۀ نۀ؟ دا راسره غم دے.

نور توجيهات هم علماؤ نقل کړي دي. سيده خديجې رضي الله عنها ته خو مخکښې نه داسې معلوم شوي وو چې دۀ له به الله نبوّت ورکوي؛ ځکه نا آشنا نا آشنا قِصې ئې اوريدلې وې، نو سيده خديجه رضي الله عنها ورته وائي:

"كَلَّا وَاللهِ مَا يُخْزِيكَ اللهُ أَبَدًا، إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ، وَتَكْسِبُ المَعْدُومَ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".[1]

"چرې هم داسې نۀ شي کيدے، زما دې پۀ الله قسم وي چې الله به تا چرې هم نۀ

[1] أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

سپورَوي (نهٔ رسوا کوي، الله تعالٰی به ستا امداد نهٔ پرېږدي)...".

ولې؟؛ ځکه چې تا ته الله ډېر ښائسته عادتونه درکړي دي. دا مخکښې نه خدیجه ﷺ ته معلومه وه چې چا کښې دا عادتونه وي نو هغه الله نهٔ ضائع کوي؛ دَ دې وجې نه پهٔ عربو کښې دَ اسلام نه مخکښې هم هغوي دا کارونه ښهٔ گڼړل.

"إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ". "یقینًا تهٔ خپلوانو سره خپلوَلي پالې".

خپلوَلي پالل دا دَ انسان دَ هلاکت نه دَ بچ کیدو لویه ذریعه ده.

## رزق کښې برکت

دَ الله نبي ﷺ فرمائي: "څوک چې دا خوښَوي چې ما له دې الله پهٔ رزق کښې برکت واچوي نو دا سړے دې خپلوَلي او رشته داري نهٔ کټ کوي. او څوک چې دا خوښَوي چې ما له دې الله پهٔ عمر کښې برکت واچوي نو دا سړے دې خپلوَلي او رشته داري نهٔ کټ کوي؛ ځکه دې سره رزق کښې او عُمر کښې الله برکت اچوي".

نو صله رحمي پالل به دې عمر کښې برکت اچوي او دَ هلاکت نه به دې بچ کوي. او دا چې کوم انسان ډېر بُغضي او حسدي وي نو دے دَ ډېر لږ عمر خاوند وي، ډوډئ به مخکښې وي او دے به وریسې وي، ټول عمر به دے خوار وي. بُغضي سړے او حسدي سړے دے به الله نهٔ ښهٔ کوي، دے به ټول عمر خوار او ذلیل وي. مینه کوه، محبت کوه، خپلوَلي پاله، ښهٔ اخلاق پیدا کړه نو تا به الله چرته هم نهٔ خرابَوي. نو اے پیغمبره! تا به الله څهٔ نهٔ کوي؛ ځکه تهٔ خپلوَلي پالې.

"وَتَحْمِلُ الكَلَّ، وَتَكْسِبُ المَعْدُومَ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".[1]

"او تهٔ دَ خلقو بوجونه پهٔ غاړه باندې اوچتَوې...".

بے وسه دے، کمزورے دے دَ هغه بوج تهٔ اوچتَوې. غریب سره امداد کوه، کونډې سره، یتیم سره، داسې خلقو سره تعاون کوه. نن زمونږ پهٔ معاشره کښې داسې خلق روک دي، دَ مالداره سړي خدمت ته هر سړے ولاړ دے، او دَ غریب نه هر سړے سر تکَوي.

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

"وَتكسِبُ المعْدُومَ". "تهٔ کسب کوې معدوم لره". معنٰی دا ده: چې کوم سړے بے وسه دے، عاجز دے، فقیر دے، دَ هغهٔ سره تهٔ احسان کوې.

"وَتَقْرِي الضَّيْفَ". "تهٔ خو میلمَنو له میلمستیا ورکوې".

"وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".

"او تهٔ دَ حق پهٔ حوادثو کښې دَ خلقو سره امدادونه کوې".

دَ الله دَ طرف نه چې پهٔ خلقو باندې کوم آفت راشي نو ځې او دَ هغهٔ تسلّي کوې، دَ هغهٔ سره تعاون کوې. نو پهٔ دې وجه به الله تا نهٔ خرابَوي.

**دَ نبي ﷺ ورقه بن نوفل ته بوتلل**

خدیجه رضي الله عنها ورته وائي: دا خبرې څهٔ نا آشنا دي، خو دَ یَو اوښیار سړي نه به تپوس اوکړو.

"فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ حَتَّى أَتَتْ بِهِ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْنِ أَسَدِ بْنِ عَبْدِ العُزَّى ابْنَ عَمِّ خَدِيجَةَ وكَانَ امْرَأً تَنَصَّرَ فِي الجَاهِلِيَّةِ، وكَان يَكْتُبُ الكِتَابَ العِبْرَانِيَّ، فَيَكْتُبُ مِنَ الإِنْجِيلِ بِالعِبْرَانِيَّةِ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَكْتُبَ".

"خدیجې رضي الله عنها نبي ﷺ دَ لاس نه اونیولو او ځان سره ئې روان کړو تر دې چې نبي ﷺ ئې دَ ورقه بن نوفل خوا ته راوستو، چې دا دَ خدیجې رضي الله عنها دَ ترهٔ ځوي دے، وائي: زما دَ ترهٔ دا ځوي ډیر ماهر دے، دے یَو داسې سړے دے چې دَ جاهلیت پهٔ زمانه کښې دهٔ نصرانیت قبول کړے وو، او دهٔ دَ عبرانۍ لیکل هم یاد کړي وو، دهٔ به دَ انجیل نه پهٔ عبرانۍ کښې لیکل کول او دَ هغې ترجمه به ئې بیا پهٔ عربۍ کښې خلقو ته کوله".

"وكَانَ شَيْخًا كَبِيرًا قَدْ عَمِيَ".

"او دا ورقه بن نوفل ډیر اوښیار سړے وو، او ډیر بوډا وو، دَ سترګو نظر ئې ختم شوے وو".

"فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ: يَا ابْنَ عَمِّ! اسْمَعْ مِنَ ابْنِ أَخِيكَ".

"نو خدیجې رضي الله عنها ورته اووئیل: اے دَ ترهٔ ځویه! دَ دې وراره خبرې دې لږې واوره".

"فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ: يَا ابْنَ أَخِي! مَاذَا تَرَى؟ فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللهِ ﷺ خَبَرَ مَا رَأَى".

"نو ورقه نبي ﷺ ته اووئیل: اے وراره! څهٔ دې لیدلي دي؟ څهٔ چل شوے دے؟ نو دَ الله نبي ﷺ

ورته تو له قصه اوکړه (چې داسې يَو کس راغے او زۀ ئې درې ځله رااونيولم، او ما له ئې زور راکړو او بيا ئې راته دا آيتونه اووئيل... هغه آيتونه ورته ياد وو)".

چې دې سړي دا خبرې واوريدې نو هغه چونکه ډير اوښيار سړے وو نو هغه ورته وائي:

"هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي نَزَّلَ اللهُ عَلَى مُوسَى".[1]

"دا خو هغه ناموس دے، هغه صاحب السِّر دے، هغه دَ پټ راز والا ملګرے دے چې الله ئې پيغمبرانو ته راليږي، دۀ موسٰى عليه السلام ته بار بار وحي راليږله".

نو دا خو تا ته جبرئيل امين عليه السلام راغلے دے. اوس دلته حديث کښې راغلل چې دے نصراني وو نو دے خو دَ عيسٰى عليه السلام دَ مذهب والا شو، داسې نۀ وائي: چې دا جبرئيل امين عليه السلام هغه فرشته ده: چې عيسٰى عليه السلام ته به ئې وحي راوړه، بلکه دے دا وائي: چې دا هغه فرشته ده چې موسٰى عليه السلام ته به ئې وحي راوړه. نو عيسٰى عليه السلام ئې ولې ياد نۀ کړو؟

نو دَ دې څو وجوهات علماء کرام ذکر کوي:

(۱) يَو وجه: علماء کرام وائي: دَ موسٰى عليه السلام نبوّت ډير مشهور وو پۀ نسبت دَ عيسٰى عليه السلام باندې.

(۲) دويمه وجه: چې دغه ځائے کښې يهود ډير وو.

(۳) دريمه وجه: چې دَ موسٰى عليه السلام او دَ نبي ﷺ شريعت پۀ ډيرو مسائلو کښې يَو شان وو، دَ عيسٰى عليه السلام شريعت کښې ډير احکامات نۀ وو، دَ موسٰى عليه السلام شريعت کښې احکامات ډير وو.

(٤) څلورمه وجه: چې دۀ سره به خلق دُشمني کوي او دے به پرې غالب کيږي لکه څنګه چې فرعون باندې موسٰى عليه السلام غالب شوے وو.

نو دا مختلف تعبيرات علماء کوي؛ ځکه ئې موسٰى عليه السلام ياد کړو.

**دَ ورقه بن نوفل ارمان**

نو يَو ارمان هغې سړي هغه وخت کښې اوکړو، وائي:

"يَا لَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا، لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ".[2]

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

(2) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

"افسوس دے چې زهٔ پهٔ هغه وخت کښې ځوان وے، دَ سترګو نظر مې ختم نهٔ وے، او بوډا نهٔ وے، کاش! چې زهٔ بیا ژوندے وے کله چې ستا دې قوم تهٔ دَ ملک نه ویستلې! نو چې ما ستا امداد کړے وے (خو دا به داسې وخت وي چې زهٔ به یا مړ یم او یا به زهٔ کټ کښې پروت یم، بیا به زما وَس نهٔ کیږي)".

دَ الله نبي ﷺ ورته وائي: «أَوَ مُخْرِجِيَّ هُمْ؟».

"ولې دا خلق به ما دَ ملک نه شړي".

نو هغه ورته وائي: "نَعَمْ، لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلاَّ عُودِيَ، وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا. ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ، وَفَتَرَ الوَحْيُ".[1]

"کهٔ هر څومره ښهٔ سړے وي خو دا تا ته چې کوم قانون او کوم دین تا ته حواله کیږي، کوم نظام چې تا ته حواله کیږي نو دا مسئلې چې چا هم کړې دي نو هغهٔ سره خلقو دُشمنیَانې کړې دي، هغهٔ سره خلقو عداوتونه کړي دي، نو کاش چې تهٔ دا مسئلې کوې او دا خلق ئې نهٔ منې او تا سره جنګونه کوي او دَ ملک نه دې شړي چې ما خو دې امداد کړے وے! بیا به ستا دَ امداد هم څوک نهٔ وي، ټول به درنه مخالف کیږي، (دَ الله پیغمبر ﷺ ډیر پریشانه وو) نو ورقه ورته وائي: دا مې درسره وعده ده کهٔ داسې وخت راغے، تا دعوت شروع کړو او زهٔ پهٔ هغې وخت کښې ژوندے وے نو زهٔ به ستا مضبوط امداد کوم (زهٔ به ستا مَلاتړ شم). یَو څو ورځې بعد ورقه بن نوفل وفات شو او بیا یَو څو ورځې وحي بنده شوه".

نو بیا دوباره وحي شروع شوې ده. ان شاء الله دَ هغې تذکره به آئنده جُمعه کښې راشي.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ.

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

بسم الله الرحمن الرحيم

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ (1) خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ (2) اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ (3) الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (4) عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ

(سورة العلق: 1-5)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه اتمه

## "دَ وحي بعضې لطائف"

بتاريخ: 28-01-2022

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه اتمه

## "دَ وحي بعضې لطائف"

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾.(1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! پهٔ تيره جُمعه دَ رسول الله ﷺ دَ نبوّت او دَ اولنئ وحي ذکر شوے وو چې پهٔ غارِ حراء کښې رسول الله ﷺ ته اولنئ وحي جبرئيل امين ؑ دَ سورة العلق راوړې وه. دَ هغې تفصيل او وضاحت هغه شوے وو.

### لطائف دَ وحي

نن جُمعه کښې دَ هغې بعضې لطائف به ان شاء الله بيانوُو. رسول الله ﷺ ته چې پيغمبري ميلاويده نو دا کوم وخت وو؟ کوم کال وو؟ او دَ رسول الله ﷺ عمر څومره وو؟ نو پهٔ دې باندې تمام محدِّثين او مؤرِّخين متفق وو چې رسول الله ﷺ ته پيغمبري چې ميلاويده، وحي راتله نو هغه دَ کل ورځ وه، دَ دو شنبې ورځ وه. بيا دا کومه مياشت وه نو پهٔ دې کښې دَ علماؤ اختلاف دے:

### دَ علامه ابن عبد البر ؒ قول

علامه ابن عبد البر ؒ ليکلي دي: "چې دَ ربيع الاول مياشت وه او دَ هغې اتم (۸) تاريخ وو".

(1) [سورة العلق: 1-5].

دا چې اوس کومه میاشت ده جمادي الثاني دَ دې نه مخکښې میاشت وه جمادي الاول، او دَ هغې نه مخکښې میاشت وه ربیع الثاني، دَ هغې نه مخکښې میاشت وه ربیع الاول نو وائي: دا اتم تاریخ دَ ربیع الاول وو. چې نبي ﷺ په دغې میاشت کښې پیدا هم وو نو په اتم تاریخ دَ ربیع الاول نبي ﷺ ته اول وحي شوې وه.[1]

نو دَ دغې قول مطابق دَ بعثت په وخت کښې دَ رسول الله ﷺ عمر مکمل څلویښت کاله وو، چې څلویښتو کالو ته رسول الله ﷺ اورسیدو نو اولنۍ وحي ورته راغله، او دا دَ ربیع الاول میاشت وه، اتم (۸) تاریخ او دَ ګل ورځ وه.

**دَ محمد بن اسحاق رحمه الله قول**

محمد بن اسحاق رحمه الله وائي: چې دا دَ رمضان المبارک میاشت وه، او په رمضان کښې اولسم (۱۷) تاریخ وو چې رسول الله ﷺ ته اولنۍ وحي راغلې وه. او بیا هغه شعر هم نقل کړے دے:

وَأَتَتْ عَلَيْهِ أَرْبَعُوْنَ فَأَشْرَقَتْ شَمْسُ النُّبُوَّةِ مِنْهُ فِيْ رَمَضَانِ

"دَ الله دَ پیغمبر ﷺ چې څلویښت کاله برابر شول نو دَ نبوّت هغه نمر دَ نبي ﷺ چمک اووهلو، او هغه روښانه شو".

نو دا دَ رمضان میاشت وه او اولسم (۱۷) تاریخ وو. نو بیا په دغې اعتبار دَ نبي ﷺ دَ بعثت او دَ نبي ﷺ دَ نبوّت میلاویدو والا وخت بیا داسې جوړیږي چې شپږ (٦) میاشتې او څلویښت (٤٠) کاله عمر ئې وو. څلویښت کاله او شپږ میاشت پرې دَ پاسه. ولې چې دَ ربیع الاول نه واخلې تر هغې رمضان پورې شپږ میاشتې جوړیږي.[2]

اوس په دې قول باندې اعتراض راځي: چې نبوّت خو په څلویښتم کال میلاویږي نو دا شپږ میاشتې څنګه روستو شوې؟ نو جواب دا دے: چې ما تاسو ته وئیلي وو: چې دا شپږ میاشتې رسول الله ﷺ ښائسته خوبونه لیدل، نو دَ انبیاؤ علیهم السلام خوب لیدل چې وي هغه وحي وي، نو په دغې بنیاد دَ نبي ﷺ دَ نبوّت ابتداء اصل کښې دَ خوبونو نه (په څلویښتم کال) شوې ده. او دغه

---

(1) انظر: "الاستیعاب": (15/1).

(2) انظر: "سیرة المصطفی": (142/1).

وجه ده؛ چې نبي ﷺ وائي: "صحیح خوب لیدل چې وي نو دا دَ نبوّت شپږ څلویښتمه برخه ده".

نو دا شپږ څلویښتمه برخه ورته په دغه بنیاد باندې وائي: چې دَ نبي ﷺ عمر دَ نبوّت نه بعد درویشت (۲۳) کاله وو، نو درویشت له دو کښې ضرب ورکړې نو ۲۳×۲=٤٦ شپږ څلویښت شو، او په کال کښې دولس میاشتې وي نو دا کال چې په دو تقسیم شي نو شپږ میاشتې دا دَ کال نیمه شوه. نو خوب لیدل دَ نبوّت شپږ څلویښتمه برخه په دغې اعتبار ده: چې دَ نبوت نه دَ نبي ﷺ زندګي درویشت کاله وه، په دې درویشت کاله کښې شپږ میاشتې نبي ﷺ ښائسته ښائسته خوبونه لیدل نو دا خوب لیدل دَ نبوّت دَ نبي ﷺ شپږ څلویښتمه (٤٦) برخه شوه.

نو دَ نبي ﷺ عمر شپږ میاشتې او څلویښت کاله وړ چې کله ورته نبوّت میلاؤ شو (یعني ابتداء وَ وحي جلي اوشوه). اولنۍ وحي په غارِ حراء کښې په رمضان المبارک کښې شوې وه او دا قول اصحّ دے. علامه زرقاني رحمه الله، علامه ابن حجر "فتح الباري" کښې په کتاب التعبیر کښې او کتاب التفسیر کښې لیکلے دے، هلته کښې ئې تفصیل کړے دے. او شیخ الحدیث مولانا محمد ادریس کاندهلوي رحمه الله په "سیرة مصطفٰی" کښې لیکي: "چې علامه ابن حجر رحمه الله دا قول صحیح ثابت کړے او صحیح ئې منلے دے: چې شپږ میاشتې او څلویښت کاله عمر ئې وو چې وحي ورته راتله؛ او دَ هغې وجه دا ده: چې رسول لله ﷺ به چې غارِ حراء ته تلو او اعتکاف چې به ئې کولو نو رمضان کښې به تلو، نو په رمضان کښې نبي ﷺ په اعتکاف کښې وو په غارِ حراء کښې چې هلته ئې دَ ربّ عبادت کولو".

نو زیات تر اصحّ قول دا دے: چې اولنۍ وحي رمضان کښې راغلې ده؛ او رمضان کښې ځکه چې نبي ﷺ به ټول کال په غار حراء کښې نهٔ وو ناست، صرف په رمضان کښې به تلو. نو چې په رمضان کښې شي نو دا قول به اصحّ شي.[1]

**فوائد او لطائف**

اوس یَو څو خبرې دي:

(۱) یَو دا چې: دَ رسول الله ﷺ عمر څلویښتو کالو ته اورسیدو نو الله ورته نبوّت ورکړو،

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر: (313/12).

انسان دَ بلوغ نه پس ډارک مکلّف شي، نو دا نبوّت ولې ډارک نهٔ میلاویږي؟ چې څلویښت (۴۰) کاله بعد نبي ته نبوّت میلاویږي؟

اصل وجه دا ده: چې تر څلویښتو کالو پورې انسان دَ دهٔ سوچ او فکر، دَ دهٔ قوّت او طاقت او دارنګې دَ دهٔ هغه بدن ترقّي کوي، دَ څلویښتو کالو نه پس هغه بیا نوره ترقّي نهٔ کوي. الله هر نبي له نبوّت دَ څلویښتو کالو نه مخکښې نهٔ ورکوي، څلویښتو کالو ته چې دَ انسان عمر اورسي، بدن کمال ته اورسي، نو اشاره ده دیته: چې دَ انسان قوّتِ روحاني او قوّتِ جسماني دواړه کمال ته اورسي نو هله هغهٔ له الله رب العزة نبوّت او پیغمبري ورکړي.[1]

کله کله داسې وي چې یَو انسان ډیر قابل وي، علم به ئې ډیر وي، پوهه به ئې ډیره وي خو کشر وي نو تجربه ئې دومره نهٔ وي نو هغه بیا هم نقصان شي. لوئې عالم به وي خو چې دَ عمر نه کشر وي، نوجوان وي نو بعضې وخت جذبه شي، بعضې وخت غصه شي، یَو خبره لږه پکار وي او دے ئې تیزه اوکړي، ولې چې دَ عقل او تجربې هم کمے وي. نو الله رب العزة چې نبي له کله مکمل استعداد ورکړي نو دَ هغې نه پس بیا ورله نبوت او پیغمبري ورکړي. تر څلویښتو کالو پورې دَ انسان بدن کښې قوّت او طاقت او دارنګې سوچ او فکر کښې ئې زیادت راځي، دَ څلویښتو کالو نه بعد بیا پهٔ ځائے اودریږي او بیا کمي طرف ته راځي؛ نو ځکه الله رب العزة نبوّت پهٔ څلویښتم کال ورکوي چې دا نبوّت یَو ډیر قیمتي څیز دے دا ضائع نهٔ شي.

(۲) **دویم:** دا چې شیخ الحدیث مولانا ادریس کاندهلوي ؒ لیکلي دي: "دَ امام شعبي ؒ پهٔ یَو مرسل روایت کښې دي چې هغه امام احمد بن حنبل ؒ پهٔ خپل تاریخ کښې لیکلے دے: چې کله نبي ﷺ ته پیغمبري میلاؤ شوه نو دَ بعثت پهٔ اول کښې حضرت اسرافیل علیه السلام مامور وو چې تهٔ به دَ نبي ﷺ پهٔ رفاقت او ملګرتیا کښې کرځې....".

اسرافیل علیه السلام دا هغه فرشته ده: چې دا الله رب العزة مقرر کړې پهٔ دې ده چې کله قیامت قائمیږي نو تهٔ به شپیلۍ اووهې، پهٔ دې سره به قیامت قائم شي. دوه شپیلۍ به وهې، اولنۍ شپیلۍ

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (142/1).

سره به قیامت قائم شي:

﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ﴾.[1] "او پوک به اووهلے شي پهٔ شپیلۍ کښې نو بے هوشه به شي هغه څوک چې پهٔ آسمانونو او زمکه کښې دي مګر هغه چې دَ الله خوښه شي بیا به دوباره پهٔ دې شپیلۍ کښې پوک اووهلے شي نو ناڅاپه دوي به ولاړ وي او کوري به".

نو دَ دهٔ اولنۍ شپیلۍ سره به ټول مخلوق ختم شي، مړهٔ به شي، بیا به څلویښت کاله پس دے دویمه شپیلۍ اووهي هغې سره بیا دوباره ټول مخلوق راژوندي شي.

نو اسرافیل علیه السلام به دَ نبي ﷺ سره ابتداءً پهٔ رفاقت او ملګرتیا کښې ګرځیدو.

وائي: "نبي ﷺ ته به اسرافیل علیه السلام وقتًا فوقتًا دَ محاسنو او دَ آدابو تعلیم او تلقین ورکولو. نبي ﷺ باندې اسرافیل علیه السلام چرته وحي نهٔ ده راوړې....".

یعني دَ قرآن آیتونه ټول جبرئیل امین علیه السلام راوړي دي. اسرافیل علیه السلام به دغه شان آداب ورته ښودل، ښائسته اخلاق به ئې ورته ښودل، دَ نقصاناتو نه به ئې بچ کولو، صرف دَ دې دپاره وو.

علماؤ لیکلي دي: چې اسرافیل علیه السلام به ولې دَ نبي ﷺ سره ګرځیدو؟ ولې ئې دَ نبي ﷺ سره ملګرتیا کوله؟؛ نو پهٔ هغې کښې وجه دا وه: اسرافیل علیه السلام هغه ملک دے چې دے پهٔ دې انتظار باندې دے چې الله ورته حکم اوکړي چې شپیلۍ کښې پوکے اووهه چې قیامت قائم شي، اسرافیل علیه السلام چونکه دَ قیامت دَ قائمیدو دپاره دے نو دَ نبي ﷺ نه پس بل نبي نشته دے؛ ځکه نبي ﷺ فرمائي:

«بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ».[2]

"زهٔ او قیامت داسې رالیږلے شوي یُو لکه دا دوه ګوتې".

یعني زمانه روستو صرف قیامت دے بل نبي نشته دے. دَ دې وجې نه چې کوم خلق وائي: چې دَ دې نبي ﷺ نه روستو بل نبي شته دے نو دا سړے کافر دے؛ ځکه چې دَ نبي ﷺ او دَ قیامت

(1) [سورة الزمر: 68].

(2) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب قول النبي ﷺ: «بعثت أنا والساعة كهاتين»، برقم: (6504).

پهٔ مینځ کښې بل هیڅ شے نشته دے. دَ نبي ﷺ نه پس بیا قیامت دے، هغه کهٔ لږ وخت پس راځي او کهٔ ډیر وخت پس راځي، خو قیامت به راځي، بل نبي نهٔ شي راتلے.

"نو اسرافیل علیه السلام به ځکه دَ نبي ﷺ سره رِفاقت او ملګرتیا کښې ګرځیدو؛ چې دَ دې نه پس صرف دَ اسرافیل علیه السلام دَ شپیلۍ انتظار دے، دَ بل نبي دَ راتلو انتظار نشته، او دَ نورې وحي دَ راتلو انتظار هم نشته دے".[1]

(۳) دریم دا چې: دَ "صحیح البخاري" پهٔ حدیث کښې راځي:

«ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الخَلاءُ».[2]

"بیا دَ الله نبي ﷺ ته ځانله والے محبوب شو".

"حُبِّبَ" دَ مجهول صیغه راوړې، دَ دې فاعل هغه محذوف وي دَ هغې پهٔ ځائے نائبِ فاعل راځي، نو "الخَلاءُ" نائب فاعل دے نو معنٰی دا ده: "بیا محبوب کړے شو هغهٔ ته ځانله والے". نو چا ورته ځانله والے محبوب کړو؟ یَو ذات وو، چې هغهٔ ورله محبوب کړو، دلته ذکر نهٔ دے، نو دلته فاعل معلوم نهٔ دے یعني پهٔ خپله ورته نهٔ وو، محبوب کړے شوے وو ورته. مطلب دا دے: چې دَ هر انسان مزاج او فطرت دا وي چې دے دَ خلقو سره یَو ځائے اوسیږي، او نبي ﷺ کښې الله تعالٰی دا فطرت پیدا کړو چې دے به دَ خلقو نه ځانله وو. دا ولې؟ ځکه دَ خلقو نه ځانله والي کښې چې کوم سوچ او فکر کیږي نو هغه دَ خلقو سره پهٔ یَو ځائے والي کښې نهٔ کیږي. نو دَ دې وجې نه نبي ﷺ ته خلوت او ځانله والے محبوب شو.[3]

(٤) څلورم دا چې: اول ورته لا نبوّت نهٔ دے میلاؤ، نو ځانله خوشحاله دے، او چې کله نبوّت میلاؤ شو نو بیا دَ الله نبي ﷺ چرته ځانله شاړ کښې نهٔ دے پاتې شوے، نو پهٔ دې کښې څهٔ حکمت وو؟ یَو ابتدائي حالت وو او بل بیا انتهائي حالت وو (صوفیاء حضرات پهٔ دې

(1) انظر: "سيرة المصطفٰى": (143/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (124/1).
(2) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).
(3) انظر: "سيرة المصطفٰى": (143/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (124/1).

پوهيږي)، ابتداء کښې چې يَو سړے نوے وي نو هغه له ځانله والے پکار وي، چې د دهٔ دا توجّه او دَ دهٔ دا سوچ او فکر دَ دې معاشرې نه راجمع شي او راغونډ شي، او پهٔ غفلت کښې واقع نهٔ شي. کهٔ يَو سړے ذکر کوي، فکر کوي نو دهٔ له خِلوت پکار وي او کله چې يَو سړے دَ الله پهٔ عبادت کښې کلک او مضبوط شي نو بيا کهٔ دے دَ خلقو سره يَوځائے والے کوي، جَلوت ته شي نو بيا پهٔ دهٔ باندې څهٔ اثر نهٔ پريوځي؛ ځکه الله رب العزة فرمائي:

﴿رِجَالٌ لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ﴾.[1]

"پهٔ دې بيت الله کښې داسې سړي دي چې نهٔ غافله کوي هغوي لره تجارت او نهٔ اغستل، خرخول دَ الله دَ ذکر نه او دَ پابندئ دَ مانځهٔ نه".

دومره دَ الله پهٔ دين کښې مستغرق (ډوب شوي) شوي دي، کهٔ تجارت کوي خو دَ الله دين ورته نهٔ پريږدي، بيا انسان عادت شي نو بيا ئې پهٔ دې ټولو اشياؤ باندې پروا نهٔ وي. ابتداء کښې سختي لره ډيره وي بيا سړے عادت شي، بيا سختي کمه شي. نو ځکه نبي ﷺ له اول کښې ځانله والے محبوب شو.[2]

(۵) پنځم دا چې: نبي ﷺ سره دَ دې نه چې لوئي متوکّل وو، دَ الله پهٔ ذات ئې ډير اعتماد وو، دا ټول خلق دَ هغهٔ نه پهٔ توکّل کښې روستو دي خو نبي ﷺ غارِ حراء لِه ځي، دَ الله عبادت له ځي خو ځان سره خپله توخه اوړي، ځان سره خپل خوزاک ښښکاک اوړي. اشاره ديته ده: چې اعتماد ديته وائي: چې تهٔ به اسباب استعمال کړې او دَ اسبابو نه پس به دِ هغې نتيجه الله ته اوسپارې، د دې وجې نه چې کله ستا پهٔ دماغو کښې دا وي: چې يره! عبادت کوم خو چې خوراک به راله ميلاؤ شي او کهٔ ميلاؤ به نهٔ شي؟ کهٔ دا سوچونه کوې نو بيا هم تهٔ صحيح عبادت نهٔ شې کولے. ځان سره څهٔ خوراک او ښښکاک يَوسه، چې الله خو به ما له رزق راکوي، خو کهٔ ميلاؤ نهٔ شي نو دا خو راسره شته کنه، نو ستا به توجّه برابر وي، انسان کښې چې يَو مخلوق ته احتياج وي نو دا ښهٔ شے نهٔ دے. نو اسباب استعمالَوه او احتياج يَو الله ته ښکاره کوه نو دا جائز دي.

---

(1) [سورة النور: 37].

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (143/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (124/1).

دَ دې وجې نه موسٰی علیه السلام وائي:

﴿رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ﴾.[1]

زنانوٴ له ئې کډې او بيزې اوبۀ کړې بيا سورې ته واوړيدو او هلته کيښناستو او الله ته وائي: "اے زما ربّه! تۀ چې ما له کوم خير نازِلَوې نو زۀ ورته محتاج يم".

دَ الله رب العزة نه خير غوښتل دا دَ انسان دَ زهد او دَ تقوٰی نه خلاف نۀ دي. دَ علامه ابن تيميه رحمه الله شعر دے، وائي:

وَالْفَقْرُ لِيْ وَصْفُ ذَاتٍ لَّازِمٌ أَبَدًا كَمَا الْغِنَى أَبَدًا وَّصْفٌ لَّهُ ذَاتِي

وائي: "يا الله! دا فقر او احتياج زما تا له دا زما ذات سره لازم صفت دے، او تړلے شوے دے، الله! لکه څنګه چې ستا غِنٰی او مالداري صفت دے او تا سره لازم او تړلے دے".

دَ دې شعر مطلب شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله وائي:

تو غنی مطلق اے ذوالجلال! من فقیرم مطلقم بے قیل و قال

"يا الله! تۀ مطلق غني ذات ئې، او يا الله! زۀ مطلق فقير ذات يم، بنده يم او محتاج يم".

توکریمی من گدائے مطلقم توعزیز من ذلیل مطلقم

"الله! تۀ کريم ئې، او الله! زۀ ګدا يم، الله! تۀ عزيز ئې او زۀ ذليل يم".

ذات پاکت منبع جود و نوال ماز سر تا پا شده نقش سوال[2]

"الله! ستا ذات پاک دے، هغه دَ سخا او دَ ورکولو يَو منبع دے، او زۀ دَ سر نه تر خپو پورې دَ سؤال نه جوړ يم".

بهر حال نبي ﷺ دَ ځان سره خوراک څکاک اوړے دے، دا اسباب استعمالول جائز دي.

(٦) شپږم دا چې: نبي ﷺ به پۀ غارِ حراء کښې وو، خو چې کله به خوراک خلاص شو نو کور ته به راغے، دومره خوراکونه ئې دَ ځان سره نۀ دي اوړي چې دَ کور ضرورت به نۀ راتلو. نو دا هم نښته

(1) [سورة القصص: 24].

(2) انظر: "سيرة المصطفٰى": (144/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (125/1).

چې یو سړے په غارونو کښې پروت دے، ښارو کښې پروت دے او د ښځې تپوس نهٔ کوي، د بچو تپوس نهٔ کوي، وائي: بس الله به ئې ساتي. نا! راځې به، د خپلې ښځې او د بچو تپوس به کوې، د هغې د خرچې او نفقې تپوس به کوې. نبي ﷺ به کور ته راغے د خدیجې رضي الله عنها د حال تپوس به ئې اوکړو.[1]

(۷) اووم دا خبره ترې معلومه شوه: چې نبي ﷺ به په غارِ حراء کښې وو... یو سړے به په یو ځائے کښې د ربّ عبادت کوي نو کور کښې دې اووائي: چې زهٔ په فلانکي ځائے کښې یم، کهٔ څهٔ ضرورت شي، د هغهٔ خدمتِ شي او یا کور کښې ضرورت شي چې خلق ورپسې تلے شي. نو چې ځائے معلوم وي، داسې نه چې د مخلوق نه داسې ځان غیب کړه چې چا ته پته هم نهٔ لګي، نبي ﷺ به کور وئیلي وو چې زهٔ په غارِ حراء کښې یم.[2]

(۸) اتم دا چې: جبرئیل علیه السلام چې راغے او نبي ﷺ له ئې درې ځله زور ورکړے وو، په دې درې ځله زور ورکولو کښې دې خبرې طرف ته اشاره وه چې د جبرئیل علیه السلام په سینه کښې کوم علوم دي چې په آسانه هغه د نبي ﷺ سینې ته منتقل شي، دارنګې هغه برکات هم ور منتقل شي. او دا طریقه شته دے، نبي ﷺ هم داسې کړې دي: یو ځل د الله نبي ﷺ سیدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنه (چې دا د نبي ﷺ د ترهٔ ځوي وو) راراونیولو او د سینې سره ئې داسې راجوخت کړو، او دعاء ئې ورته اوکړه:

«اللَّهُمَّ عَلِّمْهُ الكِتَابَ».[3]

"اے الله! زما د ترهٔ دې ځوي له د خپل کتاب علم ورکړې".

دغه راجوختول او دعاء د رسول الله ﷺ داسې الله قبوله کړه چې په ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه لوئې عالم نهٔ وو.

### د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه فرمان

ابو هریره رضي الله عنه وائي: ما د الله نبي ﷺ ته اووئیل: چې د الله نبي! حدیثونه یادوم او زما نه

---

[1] انظر: "سيرة المصطفى": (145/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (126/1).

[2] انظر: "سيرة المصطفى": (145/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق: (126/1).

[3] أخرجه البخاري في كتاب العلم، باب قول النبي ﷺ: «اللهم علمه الكتاب»، برقم: (75).

هېرېږي، داسې وظيفه راته اوښايه چې زۀ ئې اوکړم؛ چې ما ته يادېږي. وائي: نبي ﷺ راته اوفرمائيل: چې ابو هريره! څادر دې خور کړه، چې څادر مې خور کړو دَ الله نبي ﷺ داسې لپې راخلي، ما ته پته نۀ لګي چې څۀ شے راخلي، داسې لپه راخلي او څادر کښې ئې غورځوي. درې لپې دَ الله نبي ﷺ داسې راجمع کړې، او ماته وائي: چې شابه! دا څادر دَ سينې سره راجوخت کړه. سيدنا ابو هريره رضي الله عنه وائي: ما څادر رابند کړو او دَ سينې سره مې جوخت کړو، دَ هغې نه بعد چرته زما نه دَ رسول الله ﷺ خبره نۀ ده هېره شوې. دماغ داسې کولاؤ شول، سينه داسې کولاؤ شوه چې بيا دَ رسول الله ﷺ يَو حديث زما نه نۀ دے هېر شوے.

دَ نبي ﷺ دَ علومو چې کومې خزانې وې دا هغه لپې وې، چې هغه صرف نبي ﷺ ليدلې او نورو صحابؤ رضي الله عنهم نۀ ليدلې. هغۀ ورله پۀ څادر کښې واچولې وائي: دا دَ سينې سره جوخت کړه. نو دا هم ثابت شو او جائز دي.

(۹) نهم دا چې: رسول الله ﷺ ته چې کله وحي راغله او کور ته راغے حضرت خديجة الکبرٰی رضي الله عنها هغه ورته تسلّي ورکوي، ورته وائي: "إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ...". هغه اوږد حديث دے، دا ښۀ ښۀ صفتونه دَ نبي ﷺ خديجه رضي الله عنها ئې ورته بيانوي. نو دې کښې اشاره ده دې خبرې ته چې: چا کښې دا ښۀ ښۀ صفتونه وي هغه الله نۀ خرابوي. کافرانو هم دا خبره منله. چې څوک خپلوَلي پالي، رشته داري پالي، څوک دَ غريبانانو پۀ سر لاس ايږدي، دَ هغوي بوجونه اوچتوي، دَ هغوي سره احسانات کوي، ميلمه له ميلمستيا ورکوي، پۀ چا څۀ حادثه راشي دَ هغۀ سره مرسته او تعاوُن کوي، نو داسې خلق الله پۀ معاشره کښې چرته.هم نۀ ضائع کوي. ځکه ورته حضرت خديجة الکبرٰی رضي الله عنها تسلّي ورکوي.

(۱۰) لسم دا چې: "رسول الله ﷺ کله لاړو او ورقه بن نوفل ته ئې قصه اوکړه. دَ دې نه دا خبره هم معلومه شوه: چې يَو سړے درنه پۀ علم کښې اوچت او بهتر نۀ دے خو عمر رسيده (مشر) دے نو دَ هغۀ نه مشوره اغستے شي. دلته اوګوره! نبي ﷺ دَ ورقه بن نوفل خوا ته لاړو او مشوره ترې اخلي، نو نبي ﷺ نه ورقه څۀ پۀ علم کښې اوچت خو نۀ وو او نۀ ترې بهتر وو.

(۱۱) **یوولسم** دا خبره ترې معلومه شوه: چې دَ مشرانو به قدر او عزت کوې اګر چې تهٔ لوئي سړے ئې، خو چې ستا نه مشر دے، دَ هغهٔ قدر او عزت به کوې. نبي ﷺ دَ ورقه بن نوفل سره ډیر پهٔ قدر او احترام باندې میلاؤ شو.

(۱۲) **دولسم:** چې کهٔ تهٔ ډیر لوئي سړے ئې خو کهٔ مشر تا ته دَ کشرانو الفاظ استعمال کړي نو دا خیر دے، استعمالولے ئې شي. لکه نبي ﷺ ته ورقه وائي: "يَا ابْنَ أَخِي! مَاذَا تَرَى؟". "اے ورارهٔ! تهٔ څهٔ وینې؟". نو دَ دې لفظ استعمال جائز دے؛ ځکه مشر دَ کشر دپاره دَ کشرانو الفاظ استعمالولے شي.

(۱۳) **دیارلسم** دا خبره ترې معلومه شوه: چې چا دَ حق خبره کړې وه هغه خلقو پهٔ آرام نهٔ دے پرېښودے؛ ځکه ورقه بن نوفل یَو ارمان اوکړو: چې کاش! چې زهٔ ژوندے وے کله چې دې قوم تهٔ ایستلې او ما ستا مضبوط امداد کړے وے!. نبي ﷺ وائي: دوي به ما اوباسي؟ وائي: آو!، چې دا مسئلې چا کړي دي نو هغه چا پهٔ آرام نهٔ دے پرېښودے.

پهٔ دې کښې هر داعي ته تسلّي ده: چې کله دَ قرآن او دَ سنت او دَ حق خبره کوي نو ضرور به بعضې خلق دَ دهٔ عداوت او دشمني کوي، نو دا څهٔ نوې او نا آشنا خبرې نهٔ دي، بلکه دا دَ پیغمبرانو دَ زمانې نه داسې راروانې دي.

الله رب العزة دې دَ صحیح عمل کولو توفیق رانصیب کړي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (1) قُمْ فَأَنْذِرْ (2) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ

(سورة المدثر: 1-3)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه نهمه

## "دَ وحي بنديدل او دوباره وحي شروع کيدل "

بتاريخ: 10-02-2022

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه نهمه

# "دَ وحي بنديدل او دوباره وحي شروع کيدل"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنْذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾. (1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! په تېرو جمعو کښې دَ رسول الله ﷺ دَ وحي تذکره شوې وه چې رسول الله ﷺ ته اولنۍ وحي چې راغلې وه، دَ هغې کيفيت څهٔ وو؟ او پهٔ کوم ځائے کښې راغلې وه؟ نو دَ هغې وضاحت شوې وو، کوم آيتونه راغلي وو؟ دَ سورة العلق ابتدائي آيتونه نازل شوي وو، او دَ هغې آيتونو مختصر وضاحت شوے وو.

### دَ فترت وحي زمانه

نن جُمعه کښې به دَ فترتِ وحي دَ زمانې ذکر کوو، او ورپسې بيا کومه وحي راغلې وه؟ نو دَ هغې وضاحت به کوو. "صحيح البخاري" کښې امام بخاري نقل کړي دي: چې رسول الله ﷺ ته دا اولنۍ وحي راغله نو دَ دې نه بعد بيا وحي بنده شوه، او دغې زمانې ته زمانه دَ فترت وائي، دَ وحي دَ بنديدو زمانه، انقطاع دَ وحي راغله.

### دَ جابر بن عبد الله الأنصاري ﷺ روايت

دَ جابر بن عبد الله ﷺ نه روايت دے او دے دَ نبي ﷺ نه نقل کوي: چې رسول الله ﷺ

(1) [سورة المدثر: 1-3].

فرمائي (دَ الله نبي ﷺ پهٔ خپله دَ وحي دَ بنديدو هغه حال بيانوي): وحي بنده شوې وه او زهٔ يَو ځل روان اُوم، ناڅاپه ما يَو آواز واوريدو دَ آسمان دَ طرف نه، نو چې ما داسې بره اوکتل نو ناڅاپه هغه فرشته راغلې وه چې کومه ما له پهٔ غارِ حراء کښې راغلې وه، او اولنئ وحي ئې راوړې وه، دا فرشته دَ دې زمکې او دَ آسمان پهٔ دې مابين کښې پهٔ دې فضاء کښې پهٔ يَو کرسئ باندې ناسته وه. چې دَ الله نبي ﷺ اوليده، يَو لوئي شخصيت وو، نو دَ الله نبي ﷺ فرمائي: زهٔ دَ هغې نه مرعوب شوم، او اويَريدم، چې دا څهٔ دي؟ نو واپس راغلم او بيا نبي ﷺ باندې سارهٔ راغے، او تبه پرې راغله او سيده خديجې رضي الله عنها ته وائي:

«زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي».[1]

"ما پهٔ کمبل کښې رااُونغاړئ، کمبل راباندې واچوئ".

**دَ وحي راتلل**

چې نبي ﷺ کمبل واغوسته، دَ وحي بنديدو نه بعد بيا وحي راغله: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ * وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ * وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾.[2] نو دا دَ انقطاع دَ وحي نه بعد اولنئ وحي وه.

دَ رسول الله ﷺ دا وحي بنديدل چې وو نو دا څومره وخت وحي بنده وه؟ نو فترت پهٔ احاديثو کښې دوه (۲) قسمه راځي:

(۱) يَو فترت دے: ﴿عَلَىٰ فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ﴾.[3] پيغمبران بند شوي، او نور پيغمبران نهٔ راتلل، ډير وخت مينځ کښې تير شوے وو، دَ هغې نه بعد الله پيغمبر ﷺ رااوليږلو. نو هغې ته هم زمانه دَ فترت وائي. او ذا زمانه دَ فترت دَ "صحيح البخاري" دَ جلد اول پهٔ آخر کښې راځي.

**دَ نبي ﷺ او دَ عيسى عليه السلام پهٔ مينځ کښې فاصله**

دَ نبي اکرم ﷺ او دَ عيسٰى عليه السلام پهٔ مينځ کښې شپږ سوه کاله تير شوي وو چې الله پکښې بل

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق، باب إذا قال أحدكم: آمين والملائكة في السماء، آمين فوافقت إحداهما الأخرى، غفر له ما تقدم من ذنبه، برقم: (3238).

(2) [سورة المدثر: 1-5].

(3) [سورة المائدة: 19].

څوک پیغمبر نهٔ وو رالیږلے. شپږ سوه (۶۰۰) کاله بعد رسول الله ﷺ الله پیغمبر رااولیږلو. شپږ پیړئ ډیر شے دي، دومره فاصله چرته دَ نورو پیغمبرانو پهٔ مابین کښې نهٔ وه راغلې. دا دومره فاصله صرف دَ عیسٰی علیه السلام او دَ نبي ﷺ پهٔ مینځ کښې وه. نو دې زمانې ته هم زمانه دَ فترت وائي. څوک پنځهٔ سوه اویا (۵۷۰) یادَوي، څوک پنځهٔ سوه شپېتهٔ (۵۶۰) یادَوي او څوک شپږ سوه یادَوي.

دا هغه زمانه دَ فترت وه، دَ وحي دَ بندیدو زمانه.

(۲) دویم فترت: هغه انقطاع دَ وحي ته وائي چې وحي دَ پیغمبر ﷺ کښې تاخیر راغلے وو تر څهٔ زمانې پورې. نو دا فترت او دا انقطاع وحي څومره زمانه وه؟ نو پهٔ دې کښې دَ علماؤ ډیر اقوال دي:

(۱) یَو قول: امام ابن الحجر رحمه الله پهٔ "فتح الباري" کښې نقل کړے دے: چې دا زمانه دَ فترت چې وه نو دا درې (۳) کاله وه، اول وحي راغله بیا درې کاله نوره وحي نهٔ وه راغلې.

(۲) دویم قول دا دے: چې دا زمانه دَ فترت دوه نیم کاله وه.

(۳) بعضې علماؤ وائي: چې درې ورځې وې، درې ورځې وحي بنده وه.

(۴) صاحب دَ "الرحیق المختوم" دې له ترجیح ورکوي: چې زمانه دَ فترت دومره اوږده نهٔ وه، بس یَو څو ورځې وحي بنده شوې وه.

او زمونږ استاذ محترم شیخ الحدیث مولانا یار بادشاه رحمه الله دَ هغوي دَ "صحیح البخاري" چې کوم تقریر دے "الکوثر الجاري"، هغوي پهٔ درس کښې هم مونږ ته وئیل او پهٔ تقریر کښې ئې هم لیکلي دي: چې اصحّ قول دا دے: چې ذا درې کاله انقطاع وه، یعني وحي درې (۳) کاله بنده شوې وه، او دا څوک چې وائي: یَو څو ورځې وحي بنده وه نو دا صحیح قول نهٔ دے؛ ځکه داسې وحي څو ډیرو وختونو کښې بنده شوې وه، هغې ته څو چا فترت نهٔ دے وئیلے.

**دَرسول الله ﷺ نه تپوسونه شوي وو...**

مثال پهٔ طور دَ رسول الله ﷺ نه تپوسونه شوي وو، مشهوره واقعه ده: یهودو تپوس اوکړو: چې تهٔ نبي ئې نو مونږ ته دَ اصحابِ کهف واقعه بیان کړه؟ چې دا څوک وو؟ او دَ دوي واقعه څنګه وه؟ دَ ذوالقرنین واقعه راته بیان کړه؟ او دَ روح حقیقت راته بیان کړه؟ نبي ﷺ ورته اووئیل: چې

صبا راشئ او صبا به درته زهٔ جواب درکوم. انِ شاء الله ئې اونهٔ وئیله نو صبا وحي رانغله، بل صبا هم وحي رانغله، بله ورځ هم رانغله تردې چې پنځلس ورځې وحي بنده وه، او بیا پنځلّس (۱۵) ورځې بعد جواب راغے. نو کهٔ مطلق فترت او بندیدل پهٔ دې باندې دَ فترت اطلاق کیږي نو بیا خو دغه هم فطرت شو، حالانکه دیته څوک هم دَ فترتِ زمانه نهٔ وائي. پنځلّس (۱۵) ورځې بعد جواب راغے او نبي ﷺ له قانون راغے چې:

﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا * إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ﴾.(1)

"دَ یَو کار پهٔ باره کښې به دا نهٔ وائې چې دا کار به زهٔ صبا خامخه کوم مګر مخکښې دَ هغې نه ان شاء الله وایه".

دَ ان شاء الله معنٰی دا ده: چې کهٔ چرته دَ الله خوښه شي نو زهٔ به ئې اوکړم، او کهٔ خوښه ئې نهٔ شي نو زهٔ ئې کولے نهٔ شم. نو اے پیغمبره! تا ان شاء الله نهٔ وو وئیلے نو ځکه وحي بنده شوه. خلقو اعتراضونه کول چې نبي ﷺ خوا ته جبرئیل عليه السلام نهٔ راځي نو الله دَ تسلّئ دپاره سورت راالیږي چې:

﴿وَالضُّحَىٰ * وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَىٰ * مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾.(2)

بعضې روایاتو کښې راځي: دَ الله نبي ﷺ ناجوړه شو، بیمار شو، یَو څو ورځې رااوچت نهٔ شو، راپا نهٔ سیدو نو خلقو اعتراضونه شروع کړل نو الله تسلّي راالیږي:

﴿وَالضُّحَىٰ * وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَىٰ * مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾.(3)

"شاهد دے ساخت، او شاهد ده شپه کله چې تیارهٔ کړي، (څهٔ خبره باندې شاهد دي؟) ﴿مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾ اے نبي ﷺ! نهٔ تهٔ ستا ربّ پریخودے ئې او نهٔ ئې تا سره عداوت او دشمني کړې ده".

نو شهادت الله قائم کړو چې وخت دَ ساخت او شپه ګواه ده چې ما تهٔ پریخودے نهٔ ئې، صحیح ده چې کله به وحي راتلې او کله به نهٔ راتلې.

او پهٔ دې کښې دَ الله ډیر حکمتونه وي چې کله الله وحي راالیږي او کله نهٔ، لکه: دنیا کښې

---

(1) [سورة الكهف: 23-24].

(2) [سورة الضحى: 1-3].

(3) [سورة الضحى: 1-3].

کله ورځ وي نو کله شپه وي نو دَ ورځې خپلې فائدې دي او دَ شپې خپلې فائدې دي. دغه شان نبي ﷺ ته کله وحي راځي نو دَ هغې خپلې فائدې دي او کله نۀ راځي نو دَ هغې خپلې فائدې دي؛ ځکه چې الله وحي نۀ وي راليږلي نو دنيا ته به پته اولګي: چې الله وحي نۀ ده راليږلې، جواب ئې نۀ دے راليږلے نو دا پيغمبر خو دَ خپل خواهش نه خبرې نۀ کوي، او دَ ځان نه جواب نۀ شي ورکولے. نو دا وحي نۀ راتلل هم ستا دَ صداقت دليل دے. نو اوګوره! دا وحي يَو څو ورځې بنده وه خو ديته څوک فترت نۀ وائي.

**پۀ عائشه صديقه ﷺ باندې الزام**

پۀ سيده عائشته ﷺ باندې الزام لګيدلے وو، مشهوره واقعه ده، "صحيح البخاري" کښې تفصيلي روايت دے، نبي ﷺ ته پته نۀ وه چې حقيقت څۀ شے دے؟ نو يَو مياشت مکمل وحي بنده وه، يَو مياشت مکمل وحي نۀ راتله. نبي ﷺ پريشانه دے، کله دَ يَو چا نه مشوره اخلي او کله دَ بل چا نه مشوره اخلي، يَو مياشت بعد وحي راغله:

﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَكُمْ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَكُمْ﴾.[1]

"يقينًا هغه خلق چې پۀ دروغه ئې راتلل کړي دي دا يَو ډله ده ستاسو نه...".

دَ سيدة عائشه ﷺ صفائي الله دَ آسمان نه رااوليږله، يَو مياشت پورې وحي بنده وه، نبي ﷺ دَ صحابه کرامو ﷺ نه مشورې اخلي، صحابه کرام ﷺ څوک ورته وائي: مۀ ئې طلاقوه، او څوک ورته وائي: چې طلاقه ئې کړه، تا له نورې ښځې ډيرې دي، خو دَ الله نبي ﷺ فيصله نۀ شي کولے.

نو مياشت وحي بنده ده او زمانه دَ فترت ورته څوک نۀ وائي. داسې خو پۀ مياشتو مياشتو وحي بنده شوې ده او دَ الله نبي ﷺ ته بيا وحي شروع شوې ده. دا خو مينځ مينځ کښې هم داسې شوې دي. نو دا وحي ډيره بنده وه ځکه ورته زمانه دَ فترتِ وحي وائي. نو دا اصح قول دے: چې درې (۳) کاله وحي بنده وه. رسول الله ﷺ ډير پريشانه وو، چې ولې وحي نۀ راځي!!!

الله رب العزة دې مونږ پۀ دين مئين کړي، کله چې سړے دَ دين خوَند واخلي او بيا نۀ وي نو

---

(1) [سورة النور: 11].

بیا سړے پریشانه کیږي، او کله چې سړے دَ بے دینۍ خوند واخلي او هغه نۀ وي نو بیا هغه هم ډیره پریشانه کیږي. دَ دین داسې یَو نشه ده، او یَو خوَند دے لکه څنګه چې دا خلق پۀ نشه باندې عادت شي، دَ نشې والا سړي له دې هیڅ نۀ وي خو چې نشه ئې برابر وي نو دے ښۀ پۀ سُر وي، او چې نشه پرې بنده کړې نو بیا دے یَو کار هم نۀ شي کولے، پریشانه وي. دغسې دَ دین هم یَو نشه ده، انسان عادت شي چې دَ دین خدمت نۀ وي نو بیا انسان پریشانه کوي، خفه وي.

**نبي ﷺ ته دَ دین لذّت او خوند**

یَو خوَند او لذَت دَ الله نبي ﷺ ته میلاؤ شوے وو، نو بیا جبرئیل امین علیه السلام نۀ راتلو، نو پۀ حدیث کښې دا راځي: "رسول الله ﷺ ډیر پریشانه وو، کله کله به دَ الله نبي ﷺ دَ غر سر ته اوختو او زړۀ کښې به ئې دا فیصله اوکړه چې دَ دې غر نه ځان راااوغورځوم!؛ دَ ډیر خفګان او دَ ډیرې پریشانۍ نه. نو چې کله به چې دَ الله نبي ﷺ اراده اوکړه چې ځان راغورځوم پۀ دې کښې به جبرئیل امین علیه السلام راغے او هغۀ به آواز ورکړو: چې "يَا مُحَمَّدُ! إِنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ حَقًّا" (اے محمد تۀ څۀ یَو عام سړے خو نۀ ئې چې تۀ به ځان راااوغورځوې او خبره به ختمه شي، تۀ کۀ ځان غورځوې نو ټول مخلوق محرومه پاتې کیږي، تۀ خو الله دَ دې خلقو دپاره یَو رسول مقرر کړے ئې، تۀ الله دې له نۀ ئې رالیږلے چې تۀ به ځان هلاک کړې او ځان به اوغورځوې، تۀ خو الله دَ دې خلقو دپاره یَو خیر او دَ هدایت پیغمبر رالیږلے ئې). نو چې نبي ﷺ به دَ جبرئیل امین علیه السلام دا آواز واوریدو نو بیا به ئې زړۀ ته سکون او آرام راغے، بیا به ئې زړۀ ته خوشحالي راغله چې یره! آواز راځي او سړے نۀ ښکاري".[1]

علماؤ لیکلي دي: وحي جلي بنده وه، خو مکمل جبرئیل امین علیه السلام منع نۀ وو، راتلو به او نبي ﷺ له به ئې تسلي ورکوله، راتلو به او نبي ﷺ له به ئې غیبي آواز ورکولو، لکه پۀ دې حدیث کښې راغلل چې: "يَا مُحَمَّدُ! إِنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ حَقًّا". وحي جلي بنده وه لیکن وحي خفي بنده نۀ وه. درې (۳) کاله بعد بیا وحي شروع شوه.

(1). أخرجه البخاري في كتاب التعبير، باب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحي الرؤيا الصالحة، برقم: (6982).

## دَوحي دَ بنديدو حکمتونه

اوس پهٔ دې کښې دَ الله رب العزة څهٔ رازونه وو؟ دَ الله تعالیٰ هر کار دَ حکمت وي. چې وحي شروع شوه نو مسلسل ولې وحي نهٔ راليږي؟ چې نبي ﷺ دومره پريشانه دے چې دَ غر نه ځان غورځوي، ځان وژلو له تيار دے، دهٔ باندې به خومره خفګانونه تير شوي وي، څومره پريشانۍ به پرې تيرې شوي وي نو دارک ولې وحي نهٔ شروع کيږي؟ دا بنديږي مينځ کښې ولې؟

**(۱) اول حکمت دَ وحي دَ بنديدو: "چې پهٔ دې پنځو آيتونو کښې لږ سوچ اوکړي "**

نو اصل وجه دا ده: چې اول الله رب العزة دا اولني آيتونه رااوليږل بيا الله تعالیٰ وحي بنده کړه، چې اے نبي ﷺ! نوره وحي به راليږم خو تهٔ اول پهٔ دې آيتونو کښې سوچ او فکر اوکړه، چې دَ دې نه تهٔ پوره سبق او عبرت ياد کړې؛ ځکه پهٔ دې کښې دَ الله رب العزة دَ خالقيت بيان دے: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ﴾.[1] پهٔ دې کښې دَ الله رب العزة دَ خالقيت بيان دے، او دَ الله رب العزة دَ قدرت بيان دے پکښې چې هر څهٔ له الله رب العزة دَ قلم پهٔ ذريعه باندې تعليم ورکړے دے. پهٔ دې کښې دَ الله دَ علم بيان دے: ﴿عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾.[2] "الله هر څهٔ انسان ته ښودلي دي"، دا پهٔ انسان کښې خپل څهٔ کمال نهٔ وو. دارنګې پهٔ دې کښې دَ انسان دَ عجز بيان دے: کهٔ دې انسان له الله رب العزة تعليم نهٔ وے ورکړے نو انسان به پهٔ هيڅ يَو څيز باندې نهٔ وو پوهه شوے. نو دَ دې وجې نه پهٔ دې کښې دَ ټول قرآن مضمون پروت دے، دَ الله رب العزة صفتونه ترې معلوميږي، دَ الله وحدانيت ترې معلوميږي، دَ انسان عجز او کمزوري ترې معلوميږي نو ځکه ئې وحي بنده کړه؛ چې اے نبي ﷺ! في الحال پهٔ دې کښې سوچ او فکر کوه.

**(۲) دويم حکمت دَ وحي دَ بنديدو: "چې دَ نبي ﷺ زړه مطمئن شي "**

وحي بنديدو کښې دَ الله رب العزة دويم حکمت دا وو: چې علماء کرام وائي: دا وحي ئې ځکه بنده کړه؛ چې رسول الله ﷺ پهٔ غارِ حراء کښې پهٔ اول ځل وحي باندې ډير زيات مرعوب شوے وو،

---

(1) [سورة العلق: 1].

(2) [سورة العلق: 5].

ډیر یریدلے وو، او ما تاسو ته وئیلي وو: چې سیده خدیجه ﷺ ته نبي ﷺ راغـے او ورته وائي: چې «لَقَدْ خَشِيْتُ عَلَى نَفْسِيْ»، خدیجې! زۀ پۀ خپل ځان باندې اویریدم، نور جوړې زۀ مړ کیږم، او دَ دنیا نه ځم. دَ الله دَ نبي ﷺ بالکل دَ ځان نه طمع قطع شوه، دَ الله نبي ﷺ ډیر مرعوب وۀ؛ نو دَ دې دپاره الله رب العزة پۀ وحي کښې انقطاع راوسته چې دَ نبي ﷺ زړۀ بیا مطمئن شي او بیا کلک شي، چې دا رعب او یره عې دَ زړۀ نه ختمه شي. دا هم یَو حکمت وو.

**(۳) دریم حکمت دَ وحي دَ بندیدو: "چې دَ وحي یَو ثقل وو، برداشت ئې ګران وو "**

یا دا وجه ده: چې دا وحي داسې آسان شے هم نۀ دے، دا یَو ډیر وزني کلام (قرآن) دے... دَ دې پته ما او تا ته نۀ لګي؛ ځکه چې مونږ خو صرف اورو کنه، چې تۀ یَو سړي ته وائې: چې دا کار داسې اوکړه او هغه کار هم ګران وي نو هغه به ورته سوچونه کوي، چې دا به زۀ څنګه کوم؟ او کۀ دا ورته اووائې: چې کۀ تۀ دا کار کوې او کۀ نۀ ئې کوې خو صرف واوره نو بیا خو اوریدل آسان دي. مونږ ته خو ځکه تکلیف نشته دے چې مونږ ئې صرف اوریدو والا یُو، عمل والا خو نۀ یُو، یعني اکثر خلق صرف اوریدل کوي او عمل نۀ کوي هغوي مراد دي. او دا خو دَ نبي ﷺ ذمه واري وه چې دا به وائي، او دا به کوي او دا به نۀ کوي، نو قرآن کښې یَو ډیر ثقل دے، ډیر وزني دے، قرآنِ کریم کښې الله رب العزة دَ دې هغه ثقل ذکر کوي نو فرمائي:

﴿إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا﴾.(1)

"یقینًا اے نبي! مونږ خامخا رالیږو پۀ تا باندې یَو وینا ډیره وزني او ډیره درنه".

دا ډیره درنه وینا ده، ډیره دَ وزن والا خبره ده، برداشت ئې ګران وو. دَ الله نبي ﷺ به پۀ اوښه باندې سور وو چې وحي به راغله نو اوښه چې هغه څومره مضبوط بارونه او بوجونه اوړي، هغه به پۀ لاره کړه وړه روانه وه، تا به وئیل: چې خپې ئې ماتې نۀ شي دَ ډیر ثقل دَ وجې نه. صحابي وائي: یَو ځل دَ الله نبي ﷺ زما پۀ پتون باندې سر مبارک کیخودے دے او وحي شروع شوه، وائي: ما وئیل کني چې زما دا پتون چوري چوري شو، مات شو، دومره یَو وزن پۀ دې باندې راغـے.

(1) [سورة المزمل: 5].

**په ژمي کښې په نبي ﷺ باندې خولې راتللې**

"صحيح البخاري" کښې راځي: په يخ ژمي کښې دَ الله په نبي ﷺ وحي چې به راتله نو دَ الله دَ نبي ﷺ دا تندے چې وو، دَ هغې نه به دا خولې ښکته رابهيدلې. نو په يخه ژمي کښې به دَ الله دَ نبي ﷺ نه خولې رواني وې. قرآن ډير ثقيل کتاب دے.

نو الله به وحي مسلسل ځکه نۀ راليږله؛ چې عادت شي، او دَ نبي ﷺ طبيعت ورسره عادت شي، بوج نۀ شي، مثال ئې داسې وي: لکه چې نوے ماشوم راشي نو استاذ ورته وائي: دا يَو ټکے نن ياد کړه، او هغه ماشوم ورته وائي: ما ته دا ټول مخ اووايه، هغۀ ورته وائي: نا! دا يَو ټکے درته ډير دے، او بيا ورته وائي: ځه! ستا چهټي شوه، کۀ هغه ورانے هم اوکړي نو استاذ ورته څۀ نۀ وائي، وائي: دا نوے دے، چې عادت شي. او چې کله دَ مخکښې نه راځي او تکړه وي او سبقونه ئې وئيلي وي نو هغه سره بيا سختي کوي.

نو دغسې چونکه دَ نبي ﷺ هم ابتدائي دور وو، اولنئ وحي وه نو الله لږه وحي رااوليږله او بيا ئې پکښې انقطاع راوسته، چې نبي ﷺ دَ دې وحي سره عادت شي، بيا ورباندې ثقل او بوج نۀ جوړيږي. دا پکښې يَو هم حکمت وو.

**(٤) څلورم حکمت دَ وحي دَ بنديدو: "چې دَ نبي ﷺ مينه ورسره پيدا شي، او بوج پرې نۀ شي"**

بل دا دے: چې دَ نبي ﷺ شوق پيدا شي، مينه ئې پيدا شي دَ وحي سره. نو څنګه شوق پيدا شي؟! نو هغه داسې چې کله چې يَو شے هميشه وي نو دَ هغې نه دَ انسان زړۀ موړ شي، او چې کله وي او کله نۀ وي نو بيا ئې شوق ډير وي.

عبد الله بن مسعود ﷺ به روزانه تقرير نۀ کولو. صحابۇ ﷺ ورته اووئيل: "کچرته تۀ مونږ له روزانه بيان کوې نو دا به ډيره ښۀ وي". هغه ورته وائي: "نا! زۀ درته کله کله وعظ ځکه کوم؛ چې دَ الله نبي ﷺ به مونږ له هم داسې کله کله بيان کولو". وائي: "دَ دې وجې نه چې مونږ ستړي نۀ شو، بوج راباندې نۀ شي".

نو نبي ﷺ ته الله رب العزة وحي شروع کړه او بيا ئې بنده کړه؛ دَ دې دپاره چې دَ نبي ﷺ په

طبیعت باندې بوج نۀ شي، او دَ دې دپاره ئې بنده کړه چې شوق ئې پیدا شي. نو چې شوق ئې بنهٔ پیدا شو، دومره شوق ئې پیدا شو چې ځان ئې دَ هغې دپاره وژلو نو بیا الله وحي شروع کړه.

**(۵) پنځم حکمت دَ وحي دَ بندیدو: "استعداد دَ پیغمبر ﷺ ئې معلومولو"**

علماء وائي: چې دَ نبي ﷺ هغه استعداد پۀ دې معلوم شي: چې دۀ ته وحي راليږم نو دے دَ دې برداشت کولے شي او کۀ نۀ شي کولے؟ ځکه دَ صوفیاؤ دا طریقه ده: چې کله مرید له ذکر او اذکار ورکړي نو بیا ورته وائي: څۀ ورځې عبادت اوکړه بیا راشه، بیا به اجازت درکوم. نو چې هغه پۀ صحیح طریقه باندې عبادت کړے وي نو بیا ورته اجازت ورکړي: چې اوس تا له زما اجازت دے. او چې نۀ ئې وي کړے نو وائي: لړ نور هم حِصار شه.

نو دا ټول حکمتونه دي دَ فترت (بندیدو) دَ وحي.

بهر حال وحي بنده وه، چې کله وحي شروع شوه، دَ الله نبي ﷺ وائي: ما یَو غیبانه آواز واوریدو، نو آسمان طرف ته مې اوکتل نو جبرئیل امین علیه السلام مې اولیدو نو زۀ پوهه شوم چې دا هم هغه فرشته ده چې کومه ما له پۀ غار حراء کښې راغلې وه.

**اشکال**

دلته یَو اشکال دے، هغه اشکال دا دے: چې غارِ حراء کښې چې نبي ﷺ ته فرشته راغلې وه نو دا خو دَ انسان پۀ شکل کښې راغلې وه او چې کله پۀ فضاء کښې نبي ﷺ دا جبرئیل امین علیه السلام لیدلے وو نو هغه ئې پۀ خپل شکل کښې لیدلے وو نو دَ الله نبي ﷺ څنګه اوپیژندلو چې دا هغه فرشته ده چې کومه پۀ غارِ حراء کښې راغلې وه؟

جواب کښې مختلف اقوال دي:

(۱) یَو قول دا دے: چې اول نبي ﷺ ته دا فرشته انساني شکل کښې ښکاره شوه نو هغۀ اوپیژنده، نو بیا پۀ مَلَکي شکل کښې شوه نو ځکه نبي ﷺ اووئیل: چې دا هغه فرشته ده، خو شکل ئې بدل وو.

(۲) دویم قول: چې دا دَ اول نه پۀ مَلَکي شکل کښې راغلې وه نو بیا ئې ورته شکل بدل کړو نو انساني شکل شو. نو بیا ئې اوپیژندلو.

(۳) دريم قول: علماء وائي: دَ خبرو نه ئې اوپېژندو؛ ځکه کله کله دَ خبرو نه هم سړے پېژندلے شي، تا سره دَ يَو سړي خبرې شوي وي، ټيليفون درته اوکړي وائي: اودې پېژندم؟ نو کله کله خو دماغ کار نۀ کوي وائي: يره! ذهن کښې مې نۀ راځي، او کله ډارک وائي: وائي: آو! ما دَ خبرو نه اوپېژندې. نو دَ خبرو نه ئې اوپېژني، ولې چې دا خبرې واوري وائي: دا خو دَ فلاني خبرې دي، نو دۀ خو لا ليدلے نۀ دے خو خبرې ئې ورله واوريدې نو وائي: پوهه شوم.

نو صحيح ده چې جبرئيل امين ﷺ پۀ غارِ حراء کښې پۀ انساني شکل کښې راغلے وو او بيا پۀ دې فضاء کښې پۀ مَلَکي شکل کښې راغلے وو خو هلته چې دَ الله نبي ﷺ سره پۀ کوم آواز خبرې کړې وې نو پۀ هغه آواز ئې هم خبرې اوکړې نو دَ الله نبي ﷺ پوهه شو چې دا هغه مَلَک دے چې کوم ما له غارِ حراء کښې راغلے وو، دَ هغې آواز نه ئې اوپېژندو. چې کله ئې اوپېژندو نبي ﷺ بيا مرعوب شو؛ ځکه دا هيئت دَ الله نبي ﷺ چرته نۀ وو ليدلے. نو نبي ﷺ کور ته لاړو، او کمبل ئې واغوستو نو دَ سورة المدّثر ابتدائي آيتونه راغلل. سيده خديجه ﷺ ته وائي:

«زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي».[1]

"ما پۀ کمبل کښې را اونغاړئ، ما پۀ کمبل کښې را اونغاړئ". کمبل را باندې واچوئ.

چې ځان ئې پټ کړو نو جبرئيل امين ﷺ راغے او وحي ئې راوړه. وحي کومه وه؟ نو دا دويم نمبر وحي ده:

﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ * وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ * وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ * وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ * وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ *﴾.[2]

دا آيتونه راغلل: ﴿الْمُدَّثِّرُ﴾ "دَثر" دَ "دَثار" نه ماخوذ دے، دَ يَو څيز ثقل او وزن ته وائي، نو معنٰى ئې دا ده: ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ "اے دَ دعوت بوج اوچتونکيه! ما تا له پيغمبري درکړې چې تۀ څادر واغونده او اودۀ شه".

﴿قُمْ فَأَنذِرْ *﴾.

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

(2) [سورة المدثر: 1-7].

"پاسیږه نو خلق اویَروه"، ستا پهٔ سر غټه ذمه واري ده، ستا پهٔ سر باندې ډیر لوئي بوج دے، تهٔ ما دنیا ته آرام له نهٔ ئې رالیږلے، تهٔ ما دَ دین دَ بیان دپاره رالیږلے ئې. نو دا یَو معنٰی ده.

**دَ ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ دویمه معنی**

﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ "دَثار" اصل کښې هغې جامې ته وئیلے کیږي چې سرے ئې دَ جامې دپاسه واغوندي، لاندې بَنین دے. دپاسه قمیص دے، لاندې قمیص دے، دپاسه واسکټ دے یا بل شے دے دې ته "دَثار" وئیلے کیږي. نو معنٰی دا ده: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ "اے دَ نبوّت جامه اغوستونکیه! تا له ما پیغمبري درکړې ده، تهٔ ما نبي جوړ کړے ئې، تهٔ ما دَ دې دپاره نهٔ ئې جوړ کړے چې تهٔ آرام اوکړې". ﴿قُمْ فَأَنْذِرْ﴾. "پاسه خلق اویَروه"، خلقو له دعوت شروع کړه.

یا (۳) دریمه معنٰی: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾.

"دثار" وئیلے کیږي: خیرِ کثیر ته نو معنٰی: "اے دَ ډیر خیر خاونده! چې تا له الله ډیر لوئي خیر درکړے دے، تا له الله پیغمبري درکړې ده، او چا له چې الله پیغمبري ورکړي نو دهٔ له الله لوئي خیر ورکړي، تا له الله علم دَ قرآن درکړے دے او چا له چې الله علم دَ قرآن ورکړي نو دهٔ له الله لوئي خیر ورکړي".

**لوئي خیر قرآن دې**

قرآنِ عظیم کښې الله رب العزة فرمائي:

﴿وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾.[1] "چا له چې پهٔ دین کښې پوهه ورکړے شوه نو پهٔ تحقیق سره هغه ته لوئي خیر ورکړے شو".

نبي ﷺ تا له الله ډیر لوئي خیر درکړے دے:

﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾.[2]

"یقینًا درکړے دے مونږ تا له لوئي خیر".

(1) [سورة البقرة: 269].

(2) [سورة الكوثر: 1].

نو اے نبي (ﷺ)! دَ دې خير شکريه دا ده: چې دا خلقو ته اورسَوه، او دا خلقو ته بيان کړه.

الله نبي ﷺ له دَ نبي ﷺ هغه صفتونه مخې له کوي، دا ورته نهٔ وائي: چې يا محمد!، دا ورته نهٔ وائي: چې "يا أَيُّها الرسول!"، دا ورته نهٔ وائي: "يا أَيُّها النبيُّ"، اولنے خطاب چې کوي نو ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ سره کوي، کله وائي: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ﴾ دا ولې؟ دا دَ کمالِ محبت دليل دے، دا دَ نرمۍ هغه نمونه ده. دَ عربو عادت دا وو: چې کوم سړي کښې به کوم صفت وو نو پهٔ هغې صفت باندې به ئې هغه يادولو، لکه نبي ﷺ کمبل اچولې ده، نو الله ورته وائي: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ نبي ﷺ دَ نبوّت ذمّه واري اغستې ده نو الله ورته وائي: ﴿يَاأَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ﴾ نرمي غوندې ورسره کوي، چې دے مضبوط شي، تکړه شي.

**مثال**

مثال ئې دا دے: نبي ﷺ دَ سيدنا علي ﷺ کور ته راغے، سيده فاطمه ﷺ ته وائي: چې علي څهٔ شو؟ فاطمه ﷺ ورته وائي: چې يا رسول الله! ما سره ئې لږ پهٔ څهٔ تکرار راغے، نو غصه شو او دَ کور نه اووتو، ما ته پته نشته چې چرته لاړو؟ نبي ﷺ وړپسې کرځيدو، چا ورته اووئيل: چې يا رسول الله ﷺ! سيدنا علي ﷺ جومات ته تلے دے، جومات کښې دے، چې راغې جومات کښې نور څوک نشته. سيدنا علي ﷺ يَواځې جومات کښې دے او پهٔ خاورو کښې پروت دے، او بدن باندې ئې خاورې انختې وې، اودهٔ شوے دے. دَ نبي ﷺ دَ ترهٔ ځوې هم وو، او زوم ئې هم وو، ډير پرې مئين وو، نبي ﷺ راغے او ورسره خوا کښې کيښناستو، ورته وائي:

«اجْلِسْ يَا أَبَا تُرَابٍ مَرَّتَيْنِ».[1]

او بعضې روايتونو کښې راځي:

«قُمْ يَا أَبَا تُرَابٍ».[2]

نو دا خو دَ هغهٔ لقب نهٔ وو، خو خاورې پرې پرتې وې.

(1) أخرجه البخاري في كتاب أصحاب النبي ﷺ، بَابُ مَنَاقِبِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ القُرَشِيِّ الهَاشِمِيِّ أَبِي الحَسَنِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، برقم: (3703).

(2) أخرجه أبو بكر محمد بن هارون الروياني في "مسند الروياني"، برقم: (1021).

«قُمْ يَا أَبَا تُرَابٍ». "اے دَ خاورو پلاره! پاسیږه".

هغهٔ چې سترګې را واړولې نو رسول الله ﷺ وو، رانيغ شو، او کیښناستو نو نبي ﷺ هغهٔ له ابو تراب وئیلو. نو بیا به خلقو سیدنا علي ﷺ ته دَ سپکوالي او تحقير دپاره ابو تراب وئیلو، وائي: علي ﷺ خو ابو تراب دے، دَ خاورو پلار دے. نو سیدنا علي ﷺ ورته وائي: تاسو ما ته ابو تراب وایئ، قسم پهٔ الله دے! پهٔ دې زهٔ ډیر زیات خوشحالیږم؛ ځکه دا هغه تکے دے چې دا ما ته رسول الله ﷺ پهٔ خپل زبان مبارک باندې وئیلے دے، دا خو ما له خوند را کوي، چې څوک ما ته ابو تراب وائي، نو دا دَ ملاطفت دَ وجې نه داسې وو. او یا علماءِ کرام وائي: پهٔ دې لفظ ئې ورسره خطاب دَ دې دپاره کولو چې رسول الله ﷺ ډېره لګولې وه او پروت وو، سړے چې ستړے شي نو ډېره اولګوي، نو الله وائي:

﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾.

"اے څادر اغوستونکیه! اے کمبل کښې ځان پټونکیه!"، اشاره ده دې خبرې طرف ته چې نبي ﷺ ما تا له ډیر لوئي پیغام درکړے دے، ډیر لوئي مقام مې درکړے دے، لویه ذمه واري مې درکړې ده، دَ دې علاج دا نهٔ دے چې تهٔ آرام اوکړې، بلکه دَ دې علاج دا دے: چې تهٔ پاسه! دا بوج دَ سر نه لرې کړه، خلقو له دَ الله دین بیان کړه. نو ځکه ئې پهٔ دې القابو نبي ﷺ مخاطب کړو.

**اشکال**

﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾.(1)

"پاسه! خلق اویَرَوه".

دلته اشکال دے: چې خلق اویَرَوه نو نبي ﷺ خو صرف یرول نهٔ کول، دَ نبي ﷺ صفت خو ﴿بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾(2) دے. زیرے ورکونکے او یره ورکونکے، نو دلته څنګه وائي: چې ﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾؟

یَو جواب دا دے: چې دا اولنے بیان دے، دَ زیري خلق پکښې څوک نهٔ وو، ټول کافران

---

(1) [سورة المدثر: 1-7].

(2) [سورة البقرة: 119، سورة سبا: 28].

دي؛ نو ځکه الله خپل نبي ﷺ ته وائي: چې ﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾.

يا وجه دا ده: چې انذار دَ نقصان نه ځان بچ کول دي، او بشارت خو دَ فائدې دَ شي زيرے ورکول دي، او قاعده ده: چې "دَ ضرر نه يَو سړے بچ کول دا ډير اهم دي پهٔ نسبت دَ فائدې رسولو"، مثال پهٔ طور يَو سړے دَ دې چت نه را اوغورځيږي دا هم اهمه خبره ده، خو هغهٔ پهٔ نمر دے هغه سوري ته کول دا هم اهمه خبره ده. خو کهٔ يَو سړے دَ چت نه راغورځيږي اول هغه دَ دې غورځيدو نه بچ کول غواړي روستو ئې بيا سوري ته کښينَوه. فائده روستو رسوه خو دَ نقصان نه ئې محکښې بچ کوه. يَو سړے دے هغهٔ باندې دا چت راپريوځي دا اوس هغهٔ له ضرر دے، خوراک څښکاک هغهٔ له فائده ده، خو تهٔ اول داسې اوکړه چې دَ دې ځائے نه ئې لرې کړه، چې دا چت پرې را اونهٔ غورځيږي، خوراک څښکاک ورله روستو راوړه، دا پروا نهٔ کوي، ضرر نه بچ کول دا محکښې دي پهٔ نسبت سره نفعې رسولو ته، نو انذار محکښې دے، دَ جهنم نه ځان بچ کړه، خلق اويَروه، نو روستو ورته بيا دَ جنتونو او بشارتونو خبرې کوه.

او يا بله وجه علماء دا وائي: ﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾، کامل انذار دا دے: چې هغې کښې بشارت هم وي، نو بشارت (زيرے) پکښې داخل دے.

﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾.[1]

پهٔ دې کښې طريقه دَ دعوت ذکر شوې ده: چې نبي! اوله شروع دَ الله دَ توحيد نه اوکړه، "دَ ربّ لوئي خلقو له بيان کړه"، دَ ربّ شان بيان کړه؛ چې خلق دَ شرک نه بچ شي. او بيا وړيسې وائي:

﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾.[2]

"خپله جامه پاکه کړه".

دَ دې دوه معانې دي: يا خو ظاهري جامه مراد ده؛ ځکه چې مونځ کوې نو جامه پاکول فرض دي، چې جامه دې ګنده وي نو مونځ نهٔ کيږي. دَ مونځ دپاره پاکې جامې اچول فرض دي،

---

(1) [سورة المدثر: 3].

(2) [سورة المدثر: 4].

خارج دَ مانځهٔ نه پاکې جامې اچول ثواب دے، فضیلت دے، ښهٔ خبره ده چې ستا جامې دې مونځ نه بهر هم پاکې وي. نو دا یَو معنٰی ده.

(۲) دویمه معنٰی: ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾.[1]

یا دَ دې نه مراد باطني عمل ده. او دا واورئ! علماؤ لیکلي دي: چې ظاهري صفائي سبب دے دَ باطني صفائي، یَو سړے په جنابت کښې نهٔ دے، یَو سړے پهٔ اودس کښې کرځي نو دَ دهٔ باطن به هم الله صفاء کړي. او چې کوم سړے اودس نهٔ کوي، هر وخت کنده کرځي نو دَ دهٔ باطن به دَ دې نه سیوا کنده وي. دَ کوم سړي جامې چې صفا وي نو دَ دهٔ باطن به هم الله دَ کناهونو نه صفا کړي، جامې ئې کنده دي نو پوهه شه! چې دے به دننه هم داسې وي، ظاهري صفائي دا دَ باطني صفايئ یَو علامه ده.

(۳) دریمه معنٰی: ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾.[2]

دَ دې نه مراد باطني طهارت دے، یعني خپل عمل پاک کړه، خپل زړهٔ پاک کړه، ولې؟؛ کهٔ یَو سړے دے او دَ هغهٔ پهٔ خیټه کښې حرام پراتهٔ دي، جامه ئې دَ حرامو ده، ظاهري جامه دې ښهٔ وینځلې ده، خو حرامه جوړه ده نو مونځ پکښې نهٔ کیږي، اګر چې تا ښهٔ صفا وینځلې دي او بیا دې خوړلې دي او حرام دي نو ستا دعاء ګانې قبلیږي؟ ستا عبادت قبلیږي؟ دَ الله نبي ﷺ وائي: یَو سړے به تلے وي، دَ لرې نه به ئې مزل کړے وي، هلته به الله ته ژاړي وائي به چې:

«يَا رَبِّ، يَا رَبِّ، وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ، وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ، وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ، وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ، فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ؟».[3]

"اے زما ربّه! اے زما ربّه!... (دَ دهٔ دعاء به څنګه الله قبوله کړي) خوراک ئې دَ حرامو، څښکاک ئې دَ حرامو، جامه ئې دَ حرامو، او دے لوئې شوے پهٔ حرامو وي نو دَ دهٔ دعاء به څنګه قبوله شي؟". نو خپل خوراک پاک کړه.

---

(1) [سورة المدثر: 4].

(2) [سورة المدثر: 4].

(3) أخرجه مسلم في كتاب الزكاة، بَابُ قَبُولِ الصَّدَقَةِ مِنَ الْكَسْبِ الطَّيِّبِ وَتَرْبِيَتِهَا، برقم: (1015).

(٤) **څلورمه معنٰی** دا ده: عمل سم کړه، دَ شرکیاتو او بدعاتو نه ځان اوساته!.

(٥) **پنځمه معنٰی**: اخلاق خائسته کړه. دَ داعي دپاره زبردست شے هغه اخلاق دي، نبي ﷺ سره چې به يَو سړے ميلاؤ شو دَ هغهٔ دَ اخلاقو نه به متاثّره شو.

﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾.[1]

"او دَ ګندګئ نه ځان اوساته!".

"رِجْز" هر ګند، هره ګناه. او مفعول ئې مقدَّم کړو دپاره دَ حصر، دَ دې مطلب دا دے چې: دَ هرې ګناه نه به ځان ساتې!، داعي دپاره دا ضروري دي.

﴿وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ﴾.[2]

"پهٔ چا احسان مهٔ کوه چې هغه بيا ډير ګنړې، يا دَ هغې نه ډير ترې غواړې"، او طمع ترې کوې چې ما ورته اوړي وو نو ما له به هم راوړي. نبي ﷺ دا شے نهٔ کولو؛ ځکه نبي ﷺ چې به چا سره څهٔ احسان کولو نو دَ الله رب العزة دَ رضاء دپاره به ئې کولو.

﴿وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ﴾.[3]

کله چې دعوت ورکوې نو ضرور به درته تکليفونه رسي، مصيبتونه به درته رسي، نو کهٔ تهٔ دا سوچونه کوې نو بيا درنه کار پاتې کيږي، "دَ الله دِ رضاء دپاره به صبر هم کوې".

دا آيتونه راغلل او حديث کښې راځي: دَ دې نه بعد بيا وحي ګرمه شوه، بيا وحي مسلسل شروع شوه. آئنده جُمعه کښې به ان شاء الله بيا وضاحت کوؤ چې دَ نبي ﷺ دَ دعوت طريقه کار څنګه وو؟

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

---

(1) [سورة المدثر: 5].

(2) [سورة المدثر: 6].

(3) [سورة المدثر: 7].

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (1) قُمْ فَأَنذِرْ (2) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ (٣) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ

(سورة المدثر: 1-4)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه لسمه

## "دَ دعوت اوله مرحله او اول ايمان چا راوړي وو؟ "

بتاريخ: 2022-02-18

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سیرة النبي ﷺ حصه لسمه

## "دَ دعوت اوله مرحله او اول ایمان چا راوړي وو؟"

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنْذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ * وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾.[1]

عزتمندو حاضرینو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سیرتِ مبارکه دَ هغې څۀ حصه مونږه بیان کړې وه. دا وئیلے شوي وو: چې رسول الله ﷺ ته اولنۍ وحي چې راغله نو دَ هغې نه بعد پۀ وحي کښې انقطاع او بندش راغے، څوک دوه نیم کاله او څوک درې کاله وقفه یادَوي او څوک کمه یادَوي، اختلاف دَ اقوالو شته، وحي بنده وه او دویمه وحي چې بیا راتله نو دَ سورة المدثر ابتدائي آیتونه نازل شول، دَ هغې تفصیل او وضاحت مخکښې شوے وو.

### دَ دعوت ابتداء او اولنې ایمان

نن جُمعه کښې دا ذکر کوو: چې دَ رسول الله ﷺ دعوت دَ کوم ځائے نه شروع شو او اول پۀ نبي ﷺ باندې ایمان چا راوړے وو؟ دا مسئله دَ محدثینو پۀ مابین کښې اختلافي ده: څوک وائي: اول ایمان سیده خدیجې ؓ راوړے دے، څوک وائي: اول ایمان سیدنا علي ؓ راوړے وو، څوک وائي: اول ایمان زید بن حارثه ؓ راوړے وو، او څوک وائي: چې اول ایمان ابو بکر صدیق ؓ

(1) [سورة المدثر: 1-4].

راوړے وو. دَ هر يَو خپل وجوهات او دلائل هم دي، خو جګړو ته ضرورت نشته دے.

**دَامام ابو حنيفه رحمه الله تطبيق**

تطبيق به داسې شي: امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي (او نورو محدثينو او علماؤ هم دا ليکلي دي): "چې پۀ زنانؤ کښې اول ايمان خديجة الکبرٰی رضي الله عنها راوړے وو، او پۀ مشرانو سړو کښې اول ايمان ابو بکر صديق رضي الله عنه راوړے وو، پۀ غلامانو کښې اول ايمان زيد بن حارثه رضي الله عنه راوړے وو، او پۀ ماشومانو کښې اول ايمان علي رضي الله عنه راوړے وو". نو دا بيا بيله بيله طبقه شوه.

**دَ شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله قول**

شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله پۀ "سيرة المصطفٰی" کښې داسې وائي: چې اول ايمان دَ ټولو نه مخکښې خديجة الکبرٰی رضي الله عنها قبول کړے وو، او اول مونځ هم دَ نبي ﷺ سره خديجة الکبرٰی رضي الله عنها کړے وو، چې دا-دَ اسلام يَوه نخښه وه. بيا ورقه بن نوفل دَ دۀ باره کښې هم اختلاف شته: خوک وائي: چې دے مسلمان شوے وو، تصديق ئې دَ نبي ﷺ کړے وو. مخکښې ما دَ دۀ تفصيل کړے وو، چې ورقه بن نوفل دَ خديجې رضي الله عنها دَ ترۀ ځوي کيدو، او دے نصرانيت ته اوړيدلے وو، نصرانيت ئې قبول کړے وو، انجيل به ئې لوستلو او دَ دې معنٰی به ئې بيا خلقو ته پۀ عربئ ژبه کښې کوله، ډير اوښيار وو، مشر سړے وو، نبي ﷺ چې خديجې رضي الله عنها دَ ورقه بن نوفل خوا ته بوتلو، خبرې اترې اوشوې نو ورقه ورته وائي: دا هغه ناموس دے، دا هغه صاحب السِّر دے، هغه پټ راز والا سړے دے چې کوم به موسٰی عليه السلام ته وحي راوړه، او تۀ به پيغمبر ئې او خلقو ته به بيان کوې. او يَو ارمان ئې هم کړے وو: چې کاش! زۀ پۀ هغه وخت کښې تکړه وے او قابل وے، مضبوط وے، يا ژوندے وے چې ما ستا مضبوط امداد کړے وے. نو بعضې علماء دا وائي: چې دَ دې خبرو نه ئې دا معلوميږي چې دۀ پۀ نبي ﷺ باندې ايمان راوړے وو.

بعضې وائي: چې نبي ﷺ خو لا دعوت نۀ وو شروع کړے نو دۀ پۀ نبي ﷺ باندې څنګه ايمان راوړے وو؟ نو دا يَو قسم تصديق غوندې شو. خوک وائي: دَ دۀ ايمان لکه دَ بحيرا راهب پشان وو، مخکښې دَ هغۀ واقعه تيره شوې وه. خوک وائي: چې منلے ئې وو خو دے بيا وفات شوے

وو. وریسې بیا علي ﷺ ایمان راوړے وو. او بیا وریسې ابو بکر صدیق ﷺ ایمان راوړے وو.

صاحب دَ "الرحیق المختوم" هم پهٔ دې طریقه نقل کړې دي؛ وجه دا وه: چې دا اولنۍ خبرې چې نبي ﷺ اول دَ خپلې کورنۍ نه شروع اوکړه، نو دَ ټولو نه اول نبي ﷺ خدیجې ﷺ ته دَ خپل ځان حال بیان کړو، او هغې پرې ایمان راوړو. او دا ما مخکښې وئیلي وو: چې خدیجې ﷺ دا نخښې دَ مخکښې نه معلومې کړې وې، هغې ته میسره وئیلي وو. میسره چې دَ هغې غُلام وو، دَ الله دَ نبي ﷺ سره تجارت ته تلے وو، نو هغهٔ ورته دَ سفر قصې کړې وې: چې وریځ به دَ دهٔ دپاسه روانه وه، دارنګې وُنو به دهٔ ته سوري کول، خلقو دَ هغهٔ دَ نبوّت شهادتونه ورکول، دَ هغې نه دَ خدیجې ﷺ پهٔ زړهٔ کښې دا خبره وه: چې دهٔ له به الله پیغمبري ورکوي.

بل دا چې خاوند له ښځهٔ ښهٔ معلومه وي او ښځې له خاوند ښهٔ معلوم وي. نو دَ نبي ﷺ هغه خویونه او عادتونه دَ خدیجې ﷺ خو ورسره شریک ژوند وو، هغې له نبي ﷺ معلوم وو، چې داسې اخلاقو والا پهٔ عامو خلقو کښې څوک نهٔ وو، لکه څنګه اخلاق چې پهٔ نبي ﷺ کښې وو؛ ځکه خو ورله خدیجې ﷺ ډیر صفتونه کول، چې: "كَلَّا وَاللهِ مَا يُخْزِيكَ اللهُ أَبَدًا، إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ، وَتَكْسِبُ المَعْدُومَ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".[1] نو دا ټول صفتونه چې به هغې کتل نو څهٔ نا آشنا وو، غارِ حراء له به چې دَ الله نبي ﷺ دَ عبادت دپاره ختلو او راکوزیدو به نو دا حالات خو دَ هغې مخې ته وو.

**دَ خدیجة الکبریٰ ﷺ نبي ﷺ له تسلي**

چې څنګه خدیجې ﷺ دا واوریدل چې نبي ﷺ اوفرمائیل: ما ته څوک راغلل، او اوئې وئیل: «لَقَدْ خَشِيْتُ عَلَى نَفْسِيْ». "چې زهٔ خو پهٔ خپل ځان اویریدم".

نو ډارک ورته خدیجة الکبریٰ ﷺ وائي: "كَلَّا وَاللهِ مَا يُخْزِيكَ اللهُ أَبَدًا، إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ، وَتَكْسِبُ المَعْدُومَ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".[2]

---

(1) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

(2) أخرجه البخاري في بدء الوحي، برقم: (3).

"هیچرې داسې نۀ ده، تا به الله چرته هم نۀ سپورَوي، تا به الله چرته هم نۀ خرابوي؛ ځکه تۀ دَ ډیرو ښو عادتونو او ښو اخلاقو والا شخصیت ئې...".

نو پوهه شوه چې دا جبرئیل امین العَلَیْکُمْ دے، او دَ الله نبي ﷺ ته ئې وحي راوړې ده، نو اول ایمان پرې هغې راوړو.

او علماؤ لیکلي دي: چې اول مونځ هم دَ نبي ﷺ سره خدیجة الکبرٰی رضي الله عنها کړے وو. دا خو صحیح ده: چې مونځ دَ معراج پۀ شپه باندې فرض شوے وو. مفسرین او محدثین ذکر کوي: چې دویمه وحي نبي ﷺ ته دَ ماښځۀ باره کښې وه، خو وحي جلي نۀ وه بلکه وحي خفي وه، جبرئیل امین العَلَیْکُمْ راغلے وو، او نبي ﷺ ته ئې اول دَ اودس طریقه اوښودله: خپه ئې زمکې ته راخلاصه کړه او زمکې نه اوبۀ راروانې شوې، اول پرې هغۀ اودس اوکړو، بیا ئې نبي ﷺ ته اوفرمائیل: چې تۀ هم پۀ دې اوبو باندې اودس اوکړه، او ماته ګوره، پۀ دې طریقه باندې کوه. او کله چې نبي ﷺ اودس اوکړو او جبرئیل امین العَلَیْکُمْ خو مخکښې اودس کړے وو، جبرئیل امین اودریدو او نبي ﷺ ته وائي: چې ما پسې اودریږه، داسې به بیا مونځ کوې. نو دوه رکعته مونځ نبي ﷺ او جبرئیل العَلَیْکُمْ اوکړو. دا ابتدائي مونځ دوه رکعته وو. او حدیث کښې هم راځي: چې اول کښې مونځ دوه رکعته وو، نو دَ سفر هغه پۀ خپل حال پاتې شو او دَ حضر هغې کښې بعضې څلور شول. خو دا هغه اولنے دور دے چې څوک څُلۀ هم نۀ شي کولاؤولے، کیر چاپیره کفّار دي.

نبي ﷺ به پۀ کور کښې دننه مونځ کولو، نو خدیجه رضي الله عنها به وَرسره هم اودریده، نبي ﷺ او خدیجې رضي الله عنها به دواړو شریک مونځ اوکړو. ابتدائي دور وو.

**پۀ ابتداء کښې مونځ څو ټائمه وو؟**

خو دا خبره یاد اوساتئ! چې دا مونځ فرض وو او کۀ دا واجب وو او کۀ نفل یا سنت وو؟ پۀ دې کښې دَ علماء کرامو اختلاف شته. او دا څو ټائمه مونځ وو؟ نو پۀ دې کښې هم دَ علماؤ ډیر اقوال دي، خو علماء وائي: اصحّ دا ده: چې دوه ټائمه مونځ وو، دَ قرآن دَ آیتونو نه هم داسې معلومیږي: (۱) دَ سحر مونځ وو، (۲) دَ نمر پریوتو نه پس (دَ ماښام) مونځ وو، او یا دَ مازیګرې

مونځ وو. يعني دَ ورځې پهٔ اول کښې او دَ ورځې پهٔ آخر کښې، نور مونځونه نهٔ وو. او مونځونه به هم دوه دوه رکعته وو. او دليل ئې دا دے: چې الله رب العزة فرمائي:

﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ﴾.[1]

"تسبيح وايه پهٔ صفتونو دَ ربّ ستا باندې يعني سره دَ صفتونو دَ ربّ ستا (وائي: دَ دې نه مراد مونځ شو) صبا او بيګا (دَ دې نه مراد دوه وخته مونځ شو)".

دارنګې بل ځائے کښې الله رب العزة فرمائي:

﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾.[2]

"اے نبي ﷺ! دَ خپل ربّ صفتونه کوه، دَ خپل ربّ تسبيحات وايه يعني سره دَ صفتونو دَ ربّ ستا (يعني تسبيح هم وايه او مدح او صفت هم کوه) مخکښې دَ راختلو دَ نمر نه او مخکښې دَ ډوبيدلو دَ نمر نه (دوه ټائمه سحر او مازيګر)".

نو دا دوه ټائمه ابتداءً وو.

### دَ معراج پهٔ شپه دَ مونځونو فرض کيدل

بيا دَ معراج پهٔ شپه باندې پنځوس (۵۰) مونځونه فرض شوي دي، ليکن نور بيا دَ نبي ﷺ پهٔ بار بار واپس کيدو باندې چې موسٰى عليه السلام به ورته وئيل: چې لا پرشه دا ډير دي، چې کم شي، او دَ نبي ﷺ پهٔ بار بار منت کولو باندې پنځهٔ مونځونه پاتې شوي دي. ګني ابتداءً کښې دَ معراج پهٔ شپه دا پنځوس (۵۰) فرض شوي وو. خو الله ډير مهربانه ذات دے دَ دې پنځؤ ثواب ئې دَ پنځوسو (۵۰) برابر کړو.

### دَ يَو نيکئ بدله پهٔ لس

الله رب العزة فرمائي:

﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾.[1]

---

(1) [سورة المؤمن: 55].

(2) [سورة طٰه: 130].

الله فرمائي: "چا چې يو نيکي اوکړه دَ دهٔ دپاره به دَ هغې پشان لس (۱۰) بدلې وي...".
نو يَو مونځ دے او پهٔ لس (۱۰) باندې حسابيږي، نو چې پنځهٔ وخته مونځ وې او هغې له پهٔ لسو کښې ضرب ورکړې نو پنځوس شول. بيا روستو پنځهٔ شوي دي، ابتداء کښې صرف دَ سحر او دَ مازيګر مونځ وو. نو دا مونځ چې به نبي ﷺ کولو نو خديجې رضي الله عنها به ورسره هم کولو.

## دَ نبي ﷺ سيدنا علي رضي الله عنه ته دعوت ورکول

دَ دې نه بعد نبي ﷺ سيدنا علي رضي الله عنه ته دعوت ورکړو، او دَ علي رضي الله عنه عمر پهٔ دغه وخت کښې لس (۱۰) کاله وو. دَ لسو کالو ماشوم دے خو اوښيار دے. زمونږ ماشومان چې دَ لسو کالو شي نو پهٔ خپل ځان باندې هم نهٔ پوهيږي، چې زهٔ څهٔ کوم او څهٔ نهٔ کوم؟ نو علي رضي الله عنه دَ لسو کالو ماشوم وو خو ډير قابل او ډير اوښيار وو. او عجيبه دا ده: "سيرة ابن هشام" ليکلي دي: "چې دا علي رضي الله عنه دَ نبي ﷺ پهٔ پرورش کښې وو"؛ ځکه دَ نبي ﷺ دَ ترهٔ ځوي وو کنه. دَ الله عجيبه غوندې نظام دے: چې نبي ﷺ وړوکے وو، نو نيکهٔ ساتلو، بيا ترهٔ سره وو، او کله چې دَ الله نبي ﷺ پهٔ خپلو خپو اودريدو نو بيا نبي ﷺ اووئيل: زما دې ترهٔ ته ګرانه ده؛ بچي ئې ګنړ دي او غريبي او قحط دے نو دا يَو ځوي به دَ دهٔ زما سره وي. نو دَ هغهٔ هغه ځوي ئې دَ ځان سره راوستو.
علماؤ ليکلي دي: "مکه باندې يَو ځل قحط سالي راغله، هيڅ شے به نهٔ ميلاويدو، کارونه نهٔ وو"؛ چې غريبي شي نو صرف دا نهٔ وي چې خوراک نهٔ ميلاويږي بلکه بيا کار هم نهٔ ميلاويږي. نو سيدنا عباس رضي الله عنه چې دا دَ نبي ﷺ ترهٔ دے، او دا دَ نبي ﷺ کشر ترهٔ وو، کشر ترهٔ دَ سړي سره داسې همزولے غوندې لګي، نو نبي ﷺ عباس رضي الله عنه ته وائي: چې کاکاجي! قحط سالي ده، او زمونږ دا ترهٔ (ابو طالب) اوس کمزورے دے، نو داسې کوو چې ورسره ورځو او دهٔ ته منت کوو: چې دا بچي مونږ له راکړي، مونږ به ئې ساتو، روزانه هلته څهٔ شے اوړل او راوړل ګران وي، نو دلته به ورله مونږ پرورش کوو. نو نبي ﷺ او عباس رضي الله عنه دواړه لاړل، ابو طالب ته وائي: چې تا مونږ له ډير

(1) [سورة الأنعام: 160].

خدمتونه کړي دي نو اوس مونږ له هم موقع راکړه، تا له به ګرانه وي او دا بچي مونږ ته حواله کړه.

دَ ابو طالب درې (۳) ځامن وو: (۱) يَو: سيدنا علي ﷺ (۲) دويم: سيدنا جعفر ﷺ او (۳) دريم: عقيل وو. ابو طالب ورته وائي: دا يَو عقيل ماته پريږدوئ چې زما خدمت کوي او دا نور کهٔ تاسو بوځئ نو بوځئ ئې. نو دوي تقسيم اوکړو: سيدنا جعفر ﷺ دا عباس ﷺ دَ ځان سره بوتلو، وائي: دے به زهٔ ساتم. علي ﷺ وړوکے ماشوم وو، نبي ﷺ اووئيل: چې دے به زهٔ دَ ځان سره بوځم. نو علي ﷺ نبي ﷺ راوستو نو دَ نبي ﷺ سره به کور کښې اوسيدو، خرچ او خوراک وغيره به پرې دَ الله نبي ﷺ کولو.

**دَ علي ﷺ اسلام قبلول**

نو نبي ﷺ چې کله رو رو دعوت دَ اسلام شروع کړو، کور والا ئې مسلمانه شوه، ښځې او خاوند دواړو به مونځ کولو، نو علي ﷺ چې دا منظر کتلو: چې دا دوي څهٔ کوي؟ کله اودريږي او کله کښيني، حيران دے، نو نبي ﷺ علي ﷺ ته هم دَ اسلام دعوت ورکړو: چې اے علي! اسلام راوړه، دا اووايه او دَ دې ګواهي ورکړه چې "أَشْهَدُ أَن لَّآ إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ". حضرت علي ﷺ ورته وائي: چې دا خو ما چرته نهٔ دي اوريدلي، دا خو څهٔ نا آشنا کلمه ده، دا خو څهٔ نا آشنا خبره ده، نو ورته وائي: ستا دا خبره خو ډيره خوږه ده، خو داسې ئې زهٔ نهٔ شم منلے، زهٔ به اول لاړم شم او دَ خپل پلار سره به صلاح (مشوره) اوکړم (ابو طالب ورته يادَوي)، هغهٔ ته به اووايم چې هغه راته څهٔ وائي. ځکه دا خو ډيره غټه خبره ده چې دَ پلار نيکهٔ نظريه پريږدې او نوے دين شروع کوې. نو وائي: داسې ئې نهٔ شم قبلولے، زهٔ به دَ خپل پلار نه تپوس اوکړم او چې پلار راته اووئيل: نو زهٔ به ئې اومنم. نبي ﷺ سوچ اوکړو چې دا خو لا ابتداء ده، زهٔ چاته غږ نهٔ کوم، او کهٔ دهٔ پلار خبر کړو نو ټوله دنيا به رانه خبر شي، پهٔ ځائے دَ فائدې به نقصان اوشي. نو نبي ﷺ ورته وائي: علي! خوښه ستا ده کهٔ منې اومنه او کهٔ نهٔ منې نو مهٔ منه خو چې خبره دې چا ته دَ خُلې نه رااونهٔ ځي، چا ته به وائې نهٔ. علي ﷺ پوهه شو: چې دا خو دَ راز خبره وه. علي ﷺ لا مسلمان شوے نهٔ دے، او وړوکے ماشوم دے نو ورته وائي: چې چا ته غږ نهٔ

کوم خو سوچ پرې کوم. چې سوچ ئې اوکړو او سحر راغے نو نبي ﷺ ته وائي: ماته کلمه وايه. نو علي ﷛ سحر ايمان راوړو، نۀ ئې دَ پلار نه تپوس اوکړو او نۀ ئې دَ بل چا نه تپوس اوکړو، دَ پلار نه پټ به ئې مونځ کولو، دَ نبي ﷺ سره ئې مونځ شروع کړو، يَو ورځ پۀ مانځۀ ولاړ دے او پلار ئې (ابوطالب) راغے، چې اوئې کتل نو وائي: دا علي څۀ کوي؟ کله کيښني او کله پاسي. نبي ﷺ ته ئې اووئيل: چې نن خو مې علي پۀ يَو نا آشنا کار اوليدو، دا خو چرته دۀ نۀ وو کړے. نبي ﷺ او علي ﷛ ورته وائي: دا مونږ اسلام قبول کړے دے.

**ابوطالب ته دعوت ورکول**

ابو طالب ته وائي: تۀ هم إسلام راوړه، ابو طالب ته ئې دعوت ورکړو، چونکه دَ ابو طالب خو ټول عمر پۀ جهالت کښې تير شوے وو، نو هغۀ اووئيل: نا! ستاسو دا خبرې ډيرې حق دي، او ډيرې صحيح دي خو ما نه دَ پلار، نيکۀ دين پاتې کيږي، دَ مشرانو طريقې رانه پاتې کيږي.... دَ مشرانو دا طريقې خلقو ته دَ الله دَ طريقو نه هم بعضې وخت خوږې وي، دَ الله دَ دين نه او دَ نبي ﷺ نه هم خوږې وي، اوس هم بعضې خلق چې تۀ به ورته قرآن وائې، تۀ به ورته حديث وائې او دے به وائي: مونږ له زړې خبرې ښې دي. ابو طالب اووئيل: چې زۀ دا نۀ شم کولے. ابو طالب انکار اوکړو، او علي ﷛ ته وائي: چې بچيه! ښۀ کار دې کړے دے، چې دَ دې خپل دَ ترۀ ځوي سره ولاړ ئې، صحيح کار دې کړے دے.

دا پښتو وه (غيرت وو): وائي: زۀ خو شرميږم؛ ځکه دا خلق به وائي: چې پۀ سپينه ږيره ئې دَ پلار نيکۀ دين پريخودو، خو تا ښۀ کار کړے دے.

**دَ جعفر بن ابي طالب ﷛ ايمان راوړل**

جعفر ﷛ چې هغه هم دَ ابو طالب ځوي وو، خو هغه دَ عباس ﷛ سره وو، هغۀ او ابو طالب يَو ځل پۀ لار باندې روان دي، حضرت علي ﷛ پۀ مانځۀ ولاړ دے، نبي ﷺ دے او علي ﷛ دے، او دَ نبي ﷺ کور والا دي، نو ابوطالب جعفر ته وائي: ورشه بچيه! تۀ هم دَ دوي سره اودريږه؛ ځکه دا دې دَ ترۀ ځوي دے يواځې به ئې نۀ پريږدې، دَ دۀ سره ملګرې شئ. داسې غيرتي وو، نو جعفر ﷛

هم مسلمان شو. رو رو مسئله سیوا کیده.

**زید بن حارثه ﷺ ته دعوت**

زید بن حارثه چې دا دَ نبي ﷺ غلام وو، دهٔ ته چې نبي ﷺ دعوت ورکړو نو هغه اووئیل: چې ما ته هم کلمه اووایه. دَ کور خلق الله مسلمانان کړل.

**دَ نبي ﷺ دَ دعوت طریقه**

دَ نبي ﷺ دَ دعوت طریقه درې (۳) قسمه وه، دَ مکې درې (۳) قسمه دور وو:

(۱) یَو دور هغه وو: چې دا اولني درې (۳) کاله دا خُفْیَةً دعوت وو، پټ دعوت وو، تا سره میلاؤ شوے دعوت درکړے، دهٔ سره میلاؤ شوے دعوت ورکړے، بل سره میلاؤ شوے دعوت ورکړے.

(۲) دویم دور: هغه ښکاره دعوت وو، یَو ځائے کښې اعلان کوه، بل ځائے کښې اعلان کوه، جنګ، جګړې، شور، شغرَبْ پکښې جوړ شو، ښکاره دعوت شروع شو.

(۳) دریم دور: آخري دور دَ نبي ﷺ دا وو، دورِ ثالث چې ورته وائي، پهٔ هغې کښې بیا دَ مکې نه بهر دعوت شروع شو. نو اول پهٔ مکه کښې پټ دعوت بیا ښکاره دعوت او بیا بهر ښکاره دعوت شروع شو، بادشاهانو ته به ئې خطونه لیږل، نورو قبائلو ته به نبي ﷺ دعوت له تلو، دا بیا دریمه مرحله ده.

**دَ هر څیز خپله طریقه کاروي**

دَ هر څیز خپله طریقه ده، دَ الله نبي ﷺ پهٔ اوله ورځ باندې تولې مسئلې هم نهٔ دي کړې، پهٔ اول ورځ باندې جومات کښې منبر ته هم نهٔ دے ختلے، پهٔ اوله ورځ ئې دارک بیان هم نهٔ دے شروع کړے؛ ځکه چې یَو سړے دَ سَره تا پیژني نهٔ، ستا دعوت نهٔ پیژني نو ځان پرې وژني. نو پهٔ دې وجه دعوت حکمت غواړي، طریقه غواړي. نو نبي ﷺ رو رو دعوت شروع کړو، خو پهٔ پټه باندې.

**سیدنا ابوبکر صدیق ﷺ له دعوت ورکول**

دَ تولو نه سیوا دَ نبي ﷺ دوست چې وو هغه ابو بکر صدیق ﷺ وو، نبي ﷺ راغے او ابو بکرَ صدیق ﷺ ته وائي: یا ابا بکر! ما ته الله دا وحي رالیږلې ده، او زهٔ الله پیغمبر مقرر کړے یم،

نو دا کلمه وئيل غواړي، دا دين منل غواړي، ته ما سره دَ دې منلو ته تيار ئې او که نه ئې تيار؟ ابو بکر صديق ﷺ ورته وائي: دَ الله نبي! ما ته کلمه وايه، زما بے شکه يقين دے چې ته نبي ئې او تا چرته دروغ نۀ دي وئيلي. ابو بکر صديق ﷺ پۀ احرارو کښې پۀ مشرانو کښې چې پۀ نبي ﷺ باندې ئې اول ايمان راوړے دے هغه ابو بکر صديق ﷺ دے.

**فضيلت دَ ابوبکر ﷺ پۀ علي ﷺ باندې**

شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي ﷫ ليکلي دي... بعضې خلق وائي: دَ علي ﷺ مرتبه ځکه اوچته ده؛ چې هغه اول مسلمان شوے دے. مونږ صحابۀ ﷺ کښې تفرقه نۀ کوو، صحابه کرام ﷺ ټول زمونږ دپاره دَ آسمان ستوري دي، صحابه کرام ﷺ ټول دَ هدايت ستوري دي، صحابه کرامو ﷺ پسې خبرې کول دَ ايمان نقصان دے، صحابۀ ﷺ سره مينه دَ ايمان کمال دے. نو مونږ دَ صحابۀ ﷺ مابين کښې تفرقه او فرقونه نۀ کوو، خو چونکه چې شيعه فرقونه کوي نو مونږ هغوي ته وايُو: چې مبالغې ډيرې مۀ کوئ، علي ﷺ صحيح ده چې ايمان ئې راوړے وو، خو وائي: زۀ به دَ پلار نه تپوس اوکړم، بيا ئې اووئيل: چې زۀ به سوچ اوکړم او بيا روستو مسلمان شو، او ابو بکر صديق ﷺ هغه سړے وو چې دَ الله دَ نبي ﷺ دَ خُلې نه خبره وتل او دَ هغۀ ډارک ايمان راوړل.

"صحيح البخاري" کښې حديث راځي: ابو بکر صديق ﷺ سره يَو ځل عمر فاروق ﷺ څۀ خبرې واړولې، نو عمر ﷺ راغے او نبي ﷺ ته وائي: يا رسول الله! دا ابوبکر زما نه خفه شوے دے، خبرې راسره نۀ کوي، کۀ ما له دې ورسره روغه اوکړه. وائي: ولې؟ وائي: داسې څۀ خبره راغله. دَ الله نبي ﷺ غصه شو او اوئې وئيل: "خبردار! چې چا ابو بکر خفه کړۀ زۀ ئې خفه کړم؛ ابو بکر هغه سړے دے چې کله ما دعوت شروع کړو نو تاسو ټولو زما تکذيب کړے وو، او روستو مو را باندې ايمان راوړے دے او ابو بکر هغه سړے وو چې اول هغۀ زما دَ خبرې تصديق کړے وو. نو ابو بکر به تاسو څنګه خفه کوئ!!".

نو دا ابو بکر هغه سړے وو چې اول تصديق دَ نبي ﷺ ئې کړے وو.

او بل دا چې ماشوم خو دَ مشر تابع وي، او علي ﷺ خو دَ نبي ﷺ پهٔ کور کښې پاتې شوے وو، چې مشر څهٔ کوي نو ماشوم هم هغه کوي. او کهٔ خدیجې ﷺ اول ایمان راوړے دے نو هغه خو دَ نبي ﷺ بي بي وه، ښځهٔ دَ خاوند نه بله نهٔ شي کولے. او کشر دَ مشر نه بله نهٔ شي کولے. زید بن حارثه ﷺ غلام دے، هغه دَ خپل مالک نه بله نهٔ شي کولے. ابو بکر ﷺ خو یَو آزاد سړے وو، دَ چا پرې څهٔ احسان نهٔ وو، دَ چا پرې څهٔ قرض نهٔ وو، دَ چا پهٔ غلامئ کښې نهٔ وو او چا مجبوره کړے هم نهٔ وو، او هغه ایمان راوړي. نو واقعي چې دا دَ کمال خبره ده چې سیدنا ابو بکر صدیق ﷺ دارک ایمان راوړو.

او بل دا کهٔ حضرت علي ﷺ ایمان راوړے دے، حضرت زید ﷺ او خدیجې ﷺ هم ایمان راوړے وو، نو دوي ایمان راوړے وو خو صرف خپله مسلمانان شوي وو، خدیجه ﷺ خو کور کښې ناسته وه، بهر خو نشوه وتلے، علي ﷺ ماشوم وو، بل چا ته ئې دعوت نهٔ شو ورکولے، او زید ﷺ خو خپله غلام وو، هغهٔ به څنګه دعوت ورکړے وے. او سیدنا ابو بکر صدیق ﷺ خپله یواځې مؤمن شوے نهٔ دے بلکه دَ خپل ایمان سره ئې نورو خلقو له هم دعوت ورکړے دے، هغوي ئې راوستې دي او هغوي ئې مسلمانان کړي دي، ولې چې هغه خو به ګرځیدو، خلقو سره به ئې ملاقاتونه کول.

نو علي، زید بن حارثه، خدیجة الکبرٰی او ابو بکر صدیق دا دَ اولنئ ورځو مسلمانان وو، او دغه وخت دا یَو څو ملګري وو. بیا رو رو پټ دعوت شروع شو.[1]

### دَ شیخ الحدیث مولانا محمد ادریس کاندهلوي ﷫ قول

شیخ الحدیث مولانا محمد ادریس کاندهلوي ﷫ لیکلي دي: چې حضرت عثمان بن عفان، حضرت زبیر بن عوام، عبد الرحمٰن بن عوف، طلحه بن عبید الله، سعد بن ابي وقاص ﷺ دا لوئي لوئي خلق دَ حضرت ابو بکر صدیق ﷺ پهٔ لاس مسلمانان شوي دي. ابو بکر صدیق ﷺ به دوي له دعوتونه ورکول، او دَ الله دَ نبي ﷺ ملاقات ته به ئې راوستل، او دوي به مسلمانان کیدل. بیا دَ هغې نه پس دا صحابه کرام ﷺ مسلمانان شول: ابو عبیده، عامر بن الجراح، ارقم بن ابي الارقم، مظعون

(1) انظر: "سیرة المصطفٰی": (1/152-153).

بن حبیب، عثمان بن مظعون، قدامه بن مظعون، عبد الله بن مظعون (دا دَ مظعون بن حبیب درې (۳) ځامن وو)، عبیده بن الحارث، سعید بن زید بن عَمرو بن نفیل، دَ هغه کور والا فاطمه بنت خطاب (دا دَ عمر بن الخطاب ﷺ خور وه)، اسماء بنت ابي بکر، خباب بن ارت، عمیر بن ابي وقاص، او دَ هغۀ رور عبد الله بن مسعود، او مسعود بن القاري، سلیط بن عمرو، عیاش بن ابي ربیعه او دَ هغۀ کور والا اسماء بنت سلامه، حنیس بن حذافه، عامر بن ربیعه، عبد الله بن حجش او دَ هغۀ رور احمد بن جحش، جعفر بن ابي طالب او دَ هغۀ کور والا اسماء بنت عُمیس، حاطب بن الحارث او دَ هغۀ کور والا فاطمه بنت محلل، او دَ هغۀ رور خطاب بن الحارث او دَ هغۀ کور والا فکیهه بنت یسار، معمر بن الحارث، سائب بن عثمان بن مظعون، مطلب بن ازهر او دَ هغۀ کور والا رمله بنت ابي عوف، نعیم بن عبد الله النحام، عامر بن فهیره (دا دَ ابو بکر صدیق ﷺ آزاد شوے غلام وو)، خالد بن سعید بن العاص او دَ هغۀ کور والا امیه بنت خلف، حاطب بن عمرو، ابو حذیفه بن عتبه، واقد بن عبد الله، بکیر بن عبد یالیل، خالد، عامر، عاقل او ایاس، عمار بن یاسر، صهیب بن سنان او عبد الله بن جدعان.

دا ټول خلق پۀ اوائلو دَ اسلام کښې دي، دا دَ هغې اول دور مسلمانان وو، څۀ دپاسه سل(۱۰۰) کسان الله تعالٰی پۀ اولني دور کښې مسلمانان کړي وو.

او رو رو بیا جهرًا دعوت شروع کیدو، نو نبي ﷺ بیا جهرًا دعوت (ښکاره دعوت) شروع کړے دے. خو کۀ مونږ دَ یو یو دَ اسلام دعوت بیانَوُو نو بیا به سیرت ډیر اوږد شي؛ لهٰذا اختصار به کوو. بله جُمعه کښې به دَ نبي ﷺ دَ جهرًا دعوت ذکر راځي ان شاء الله.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

# وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ

(سورة الشعراء: 214)

## موضوع

## سيرة النبي ﷺ حصه يؤولسمه

"بيان دَ جهري دعوت دَ نبي عليه السلام "

بتاريخ: 2022-02-25

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه يؤولسمه

## "بيان دَ ښكاره تبليغ دَ نبي عليه السلام"

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ دَ سيرت څهٔ حصه مخکښې بيان شوې وه. چې وحې ورته مِلاؤ شوه، دَ دعوت پهٔ کار مامور شو نو دَ نبي ﷺ دَ دعوت طريقه کار څهٔ وو؟ نو ابتداءًا اولني درې (۳) کاله سرًّا (پهٔ پټه) دعوت چلولو، يَو ملګري ته پټه خبره کړې، بل ملګري ته پټه خبره کړې، خلقو له ئې دعوت پهٔ دغه طريقه وَرکولو، چا به مسئله منله او چا به انکار کولو. پهٔ دې کښې درې (۳) کاله اولګيدل.

### دَ نبي ﷺ ښکاره دعوت چلول

درې (۳) کاله بعد بيا نبي ﷺ ښکاره دعوت شروع کړو. محدثين وائي: چې کله دا آيت راغلے: ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾.[2]

الله خپل نبي ﷺ ته وائي: "چې اے زما نبي! اويَروه هغه قبيله او ټبر ستا چې کوم تا ته ډير

(1) [سورة الشعراء: 214].

(2) [سورة الشعراء: 214].

نزدې دي"، او ستا ډېر خپل دي.

دا آيتونه چې راغلل نو نبي ﷺ په خپلو پسې يو يو پسې ګرځېدلے دے، او دَ الله دَ دين دعوت ئې ورکړے دے. څو دومره وه چې مخکښې سرًّا (پټ) دعوت وو، بيا دَ الله نبي ﷺ ښکاره دعوت شروع کړو. نبي ﷺ دَ صفا غونډۍ ته اوختو، او دَ صفا په غونډۍ کښې چې هغه اوچت ځائے دے په هغې باندې اودريدو او يو چغه ئې اووهله:

«يَا صَبَاحَاهْ».(1)

دا خطرناکه چغه ده، عرب دا هغې وخت کښې استعمالَوي چې کله يو دشمن راځي او په يو قوم حمله کوي، او يا يو لوئې مضيبت په دې قوم باندې راځي. نو دَ دې چغې مطلب دا وي: چې زر رااورسئ!، يو ډېره ضروري خبره ده. نو چې څوک چرته وي نو هر څۀ په ډاګه پريږدي او هغې آواز کونکي پسې ځان رسوي، منډې وهي، چې خطرناک آواز دے، ځان رسوئ. او دا آواز به هغوي هسې نۀ کولو چې تر څو پورې به ضروري خبره نۀ وه.

کله خلق يو دَ غير ضروري څيز دپاره اعلان کوي، وائي: ايماندارو! يو ضروري اعلان واورئ!..... او خبره به ضروري نۀ وي. او کله اهمه خبره وي... نو دے وائي: پريږده مړه! هر وخت دا آوازونه کيږي نو هغه قيمتي خبره ترې فوت شي.

### دَ نبي ﷺ يو يو قبيلې ته آواز کول

نبي ﷺ يو يو قبيلې ته آواز کولو، قريشو ته او بيا په قريشو کښې جدا جدا خاندانونو او قبيلو ته: «يَا بَنِي فِهْرٍ، يَا بَنِي عَدِيٍّ...» دا آوازونه ئې کول. څو چې چا هم آواز اوريدو نو په منډه صفا غونډۍ ته را روان وو، او چې کوم سړے به په خپله باندې نۀ شو راتلے، بيمار به وو يا به سخت مصروفه وو نو هغۀ به داسې يو کس اوليږلو چې هغه به دَ دۀ دَ طرف نه يو نمائنده وو، پلار به ئې اوليږلو، رور به ئې اوليږلو: چې شابه! ځان اورَسوه. په ډېر لږ وخت کښې قريش راغونډ

(1) أخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن، بَابُ قَوْلِهِ: ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ [سبأ: 46]، برقم: (4801).

شول، ابو لهب پکښې هم راغے، دَ الله نبي ﷺ ته وائي: چې شابه! مونږ ته وایه چې څهٔ خبره ده؟ نبي ﷺ ورته يَو نا آشنا خبره کوي، وائي:

«أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلاً بِالوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ؟».[1]

"اے قریشو! يَو تپوس درنه کوم! دَ يَوې خبرې جواب ما له راکړئ! دَ يَوې خبرې خبر راکړئ! کهٔ چرته زهٔ تاسو ته دا اووایم: چې دَ دې صفا ډيرئ نه اخوا دَ کافرانو او دَ دشمنانو يَوه ډله ده هغه پهٔ تاسو باندې حمله کول غواړي، شايئ! دَ حملې نه مخکښې مخکښې ځان تيار کړئ، نو تاسو به زما دا خبره منئ او کهٔ نهٔ منئ؟". حالانکه هغه غر داسې دے چې پهٔ هغې غر باندې اودريږې او اخوا يَو مرغئ ناسته وي نو هغه به هم تا له ښکاري؛ ځکه ډير ا پت نهٔ دے. نو هغوي ورته څهٔ وائي؟

"قَالُوا: نَعَمْ". "هغوي ورته اووئيل: آوا مونږه ستا دا خبره بالکل منو".

ولې ئې منو؟؛ ځکه چې:

"مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ كَذِبًا".[2]

"مونږه ستا نه چرته دَ دروغ خبره اوريدلې نهٔ ده کله چې مونږه پهٔ تاسو باندې تجربه کړې ده".

"مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلاَّ صِدْقًا".

"مونږه پهٔ تا باندې دَ ريشتيا نه علاوه دَ بل څهٔ تجربه نهٔ ده کړې". نو هر وخت تا ريشتيا وئيلي دي. چې تهٔ وائي: چې دَ دې ډيرئ نه اخوا، دَ دې غر نه اخوا دشمن پهٔ تاسو حمله کوي نو مونږه به دا اووايُو: کيدے شي چې وي، خو مونږ ته به نهٔ ښکاري او دې نبي ﷺ ته ښکاري؛ ځکه زمونږه سترګې دروغژني کيدے شي، خو ستا خبره دروغژنه کيدے نهٔ شي. ځکه چې هغوي نبي ﷺ مخکښې نه پهٔ صادق او امين باندې پيژندلے وو. دَ الله نبي ﷺ ورته وائي: چې تاسو دا منئ: چې ما چرته پهٔ ژوند کښې، پهٔ زندګئ کښې دروغ نهٔ دي وئيلي، نو يَو خبره درته کوم: څنګه چې زما نورې خبرې منئ

(1) أخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن، بَابُ {وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ} [الشعراء: 215] أَلِنْ جَانِبَكَ، برقم: (4770).

(2) أخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن، بَابُ قَوْلِهِ: {فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا} [النصر: 3]، برقم: (4971).

نو دا خبره هم زما اومنئ، تاسو ته پته نشته، تاسو ته نهٔ ښکاري، ما ته ښکاري، ما ته الله وحي کړې ده، ما له الله دَ هغې علم را کړے دے، هغه خبره دا ده، چې:

«فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ».(1)

"يقينًا زهٔ ستاسو دپاره يرونکے يم، تاسو يروم مخکښې دَ هغې عذاب سخت نه".

يَو لوئي عذاب را روان دے، هلته بيا پهٔ مال باندې نهٔ خلاصيږئ، پهٔ دولت نهٔ خلاصيږئ، پهٔ قوم نهٔ خلاصيږئ، پهٔ قوت او طاقت باندې نهٔ شئ بچ کيدے. کهٔ هلته کښې بيا خلاصے مومئ نو پهٔ ايمان او پهٔ عقيده دَ توحيد به ئې مومئ، پهٔ صحيح عقيدې به بچ کيږئ. نو ايمان راوړئ! چې دَ هغې عذاب نه بچ شئ.

دَ ايمان دعوت ئې ورته ورکړو، او ورته وائي:

«إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَمَثَلِ رَجُلٍ رَأَى الْعَدُوَّ، فَانْطَلَقَ يَرْبَأُ أَهْلَهُ، فَخَشِيَ أَنْ يَسْبِقُوهُ، فَجَعَلَ يَهْتِفُ، يَا صَبَاحَاهُ».(2)

"زما او ستاسو مثال داسې دے لکه چې يَو سړے دے او هغه پهٔ خپلو سترګو دشمن اووينې چې دَ هغهٔ قوم ته پټ ناست دے، خو هغوي ته پته نشته او دهٔ ته پته ده نو دے لاړشي او هغې خپل قوم ته ځان ښکاره کوي او هغوي ته دا آواز کوي: چې ځان دډې ته کړئ! دشمن درباندې حمله کوي خو دا سړے وائي: کهٔ ځم نو دا دشمن زما نه مخکښې راځي، نو دے پهٔ ډيرئ اودريږي او خلقو ته وائي: "يَا صَبَاحَاهُ". خلق زر زر راشي چې څهٔ خبره ده؟ او دے ورته دا دَ يرې خبر ډير زر واوروي، چې ځان سمبال کړئ". نو نبي ﷺ فرمائي: تاسو ته پته نشته دے چې مرګ را روان دے، او څوک چې بے ايمانه لاړو نو هغهٔ هميشه جهنمي دے، هغه تباه دے. نو زهٔ تاسو يروم چې مرګ را روان دے، مخکښې نه کلمه اووايئ او ايمان راوړئ.

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن، بَابٌ {وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ} [الشعراء: 215] أَلِنْ جَانِبَكَ، برقم: (4770).

(2) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، بَابٌ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: {وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ} [الشعراء: 214]، برقم: (207).

## دَ الله دَ نبي ﷺ دعوت

دَ الله نبي ﷺ دعوت شروع کړو او يَو يَو قوم ته وائي:

«يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ، اشْتَرُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ اللهِ، أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، لاَ أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللهِ شَيْئًا».[1]

"اے دَ قريشو ډلي! خپل ځانونه په پيسو واخلئ دَ الله نه، ايمان راوړئ! ځانونه دَ الله دَ عذاب نه خلاص کړئ، زهٔ ګورے ستاسو دپاره مالک نهٔ يم دَ الله دَ عذاب نه دَ هيڅ شي". او زهٔ ستاسو نه عذاب لرې کولے نهٔ شم. دا مهٔ وايئ چې دا زمونږه دَ نسب پيغمبر دے، زمونږ دَ خاندان پيغمبر دے او دے به مونږه ټول ځان سره جنت ته بوځي. چې خپل ايمان درکښې نهٔ وي نو زهٔ مو خلاصولے نهٔ شم.

## يَو يَو خاندان له دَ نبي ﷺ دعوت ورکول

بيا پهٔ قريشو کښې يَو يَو خاندان مخاطب کوي، فرمائي:

«يَا مَعْشَرَ بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لاَ أَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللهِ ضَرًّا وَلاَ نَفْعًا».

"اے دَ عبد مناف دَ اولاد ډلي! خپل ځانونه دَ جهنم دَ أور نه خلاص کړئ، زهٔ ګورے! مالک نهٔ يم ستاسو دپاره نهٔ دَ ضرر لرې کولو او نهٔ دَ فائدې رسولو".

«يَا مَعْشَرَ بَنِي قُصَيٍّ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لاَ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلاَ نَفْعًا».

"اے دَ قُصئ دَ خاندان ډلي! خپل ځانونه دَ جهنم دَ أور نه خلاص کړئ، زهٔ ګورے! مالک نهٔ يم ستاسو دپاره نهٔ دَ ضرر لرې کولو او نهٔ دَ فائدې رسولو".

«يَا مَعْشَرَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لاَ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلاَ نَفْعًا».[2] "اے دَ عبد المطّلب دَ اولاد ډلي! خپل ځانونه دَ جهنم دَ أور نه خلاص کړئ، زهٔ ګورے! مالک نهٔ يم ستاسو دپاره نهٔ دَ ضرر لرې کولو او نهٔ دَ فائدې رسولو".

دَ "سنن نسائي" پهٔ روايت کښې داسې راغلي دي:

«يَا بَنِي كَعْبِ بْنِ لُؤَيٍّ، يَا بَنِي مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ، يَا بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ، وَيَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ، وَيَا بَنِي

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، بَابٌ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: {وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ} [الشعراء: 214]، برقم: (206).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب ومن سورة الشعراء، برقم: (3185).

هَاشِمٍ، وَيَا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ». [1]

"اے دَ کعب بن لؤي اولاده! اے دَ مرة بن کعب اولاده، اے دَ عبد شمس اولاده!، اے دَ عبد مناف اولاده! اے دَ هاشم اولاده! اے دَ عبد المطلب اولاده! ځانونه بچ کړئ دَ أور دَ جهنم نه".

نو نبي ﷺ يَو يَو خاندان يادَوي: چې ځان بچ کړئ، ځان بچ کړئ. پهٔ څهٔ باندې؟ پهٔ عقيده دَ توحيد باندې، پهٔ ايمان باندې.

«سَلُونِي مِنْ مَالِي مَا شِئْتُمْ».

"زما مال چې زما نه څومره غواړئ نو اُوغواړئ".

دې کښې اشاره ده ديته: چې دنيا کښې به زهٔ ستاسو امداد اوکړم، کمزوري يئ نو تعاون به درسره اوکړم، غريبانان يئ امداد به درسره اوکړم، يَو کار ګران دے منډه به درسره اووهم، خو قيامت کښې بيا هيڅ څوک دَ هيڅ چا امداد نهٔ شي کولے؛ ځکه درته دلته وايم: چې ځان دَ أور نه خلاص کړئ.

«يَا عَبَّاسُ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لاَ أُغْنِي عَنْكَ مِنَ اللهِ شَيْئًا».

"اے عباس بن عبد المطلب! زهٔ ګورے! تا دَ الله دَ عذاب نه نهٔ شم خلاصولے".

بيا وريسې وائي:

«وَيَا صَفِيَّةُ عَمَّةَ رَسُولِ اللهِ لاَ أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللهِ شَيْئًا». "اے صفيه ترور (پپو) دَ رسول الله! ځان دَ أور نه بچ کړه، تا ګورے زهٔ بيا هلته دَ عذاب نه بچ کولے نهٔ شم".

«وَيَا فَاطِمَةُ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَلِينِي مَا شِئْتِ مِنْ مَالِي لاَ أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللهِ شَيْئًا». [2]

خپلې لور فاطمې ؓ ته وائي: "اے فاطمې! چې تهٔ دَ محمد رسول الله لور يې، اوس چې څومره مال غواړې، څهٔ شے غواړې زهٔ درله دلته درکولے شم، هلته دې بيا سمے خپل دے، زهٔ تا دَ الله دَ عذاب نه نهٔ شم بچ کولے".

(1) أخرجه النسائي في كتاب الوصايا، بَابٌ: إِذَا أَوْصَى لِعَشِيرَتِهِ الأَقْرَبِينَ، برقم: (3644).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الوصايا، بَابٌ: هَلْ يَدْخُلُ النِّسَاءُ وَالوَلَدُ فِي الأَقَارِبِ؟، برقم: (2753).

بل روایت کښې داسې دي:

«يَا فَاطِمَةُ بِنْتَ مُحَمَّدٍ أَنْقِذِي نَفْسَكِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لاَ أَمْلِكُ لَكِ ضَرًّا وَلاَ نَفْعًا».

"بچې! خپل ځان په خپله باندې دَ أور نه بچ کړه؛ ځکه زۀ ستا دپاره نۀ دَ ضرر لرې کولو اختیار لرم او نۀ دَ نفعې دَ رسولو اختیار لرم".

لور ته وائي: تا له زۀ مالک نۀ یم، نۀ دَ ضرر لرې کولو او نۀ دَ فائدې رسولو!!!، هان! یَو کار به اوکړم، دنیا کښې چونکه زما خپلوَلي ده، زما رشته داري ده، څوک مې ترونه دي، څوک مې پیوکانې دي، څوک ماماګان دي، او څوک ترورياني دي، څوک دَ یَو طرف نه خپل، څوک دَ بل طرف نه خپل، زما ستاسو سره رشته ده، رشته به درسره پالم، خو دَ عذاب نه بچ کول دا بیا پۀ رشتو نۀ کیږي، پۀ تعلقاتو نۀ کیږي، خپل ایمان پکار دے. نو فاطمې ته هم وائي:

«إِنَّ لَكِ رَحِمًا سَأَبُلُّهَا بِبَلاَلِهَا».[1]

"یقینًا ستا زما سره خپلوَلي ده نو زۀ به دا پالم".

دَ الله نبي ﷺ چې دومره دې یَو یَو قوم ته دعوت اوچلولو، تول حق حیران دي.

## دَ ابولهب کار

علماؤ لیکلي دي: کله چې رسول الله ﷺ خلقو له دعوت ورکولو، یَو یَو قبیلې له ئې دعوت ورکولو نو دا ابو لهب بد بخته به ورپسې ګرځیدو پۀ میلو کښې او پۀ کانړو به ئې ویشتو او خلقو ته به ئې اوئیل: چې دے بے دینه شوے دے، دَ دۀ خبره مۀ منئ. خپل ترۀ ئې خلاف وو، او مشر هم وو، خلقو به ئې خبره هم منله.

علماء وائي: دا آیت چې راغے: ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾.[2]

"صفا بیان کوه دَ هغې چې تا ته ئې حکم شوے دے او مخ واړوه دَ مشرکانو نه".

"صدْع" دیته وائي: چې سرے شیشې له کانړے را خلاص کړي او شیشه ټوټې ټوټې شي. نو

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب ومن سورة الشعراء، برقم: (3185).

(2) [سورة الحجر: 94].

داسې بیان اوکړه چې دا باطل توتې توتې شي، صفا خبره اوکړه، دَ چا پروا مهٔ لره. نو دا آیت چې راغې نو بیا رسول الله ﷺ نور هم جهري دعوت شروع کړو، نو رسول الله ﷺ بِه بیا منډیانو ته تلو، کنړو ته به تلو، هر ځائے کښې به ئې دَ الله دَ دین دعوت ورکولو. او ښکاره ئې بیا مونځونه هم شروع کړل. تر دغه وخته پورې به نبي ﷺ مونځ پهٔ کور کښې پهٔ پټه کولو. او چې کله دا آیت راغې نو بیا به نبي ﷺ راغې او بیت الله ته به مخامخ اودریدو او مونځ به ئې کولو. دې کافرو به ورته کتل. دا ابتدائي دورونه دي، دې وخت کښې ورته دوي څهٔ نهٔ وائي، وهل ټکول دا خبرې روستو دي.

**پهٔ اول دورِ دَ جهري دعوت کښې دَ نبي ﷺ باره کښې دَ مشرکینِ مکه بد نامې لګول**

دَ نبي ﷺ دا دعوتونه چې کله عام شو نو ټول کلے او ټول عرب خبر شو. چې دے خو يَو ته هم وائي، او بل ته هم وائي. دوي سره دا غم شو چې مونږ خو ترې ځان ساتو کنه؛ ځکه زمونږ خو کلي وال دے، مونږه ئې پیژنو خو دا میلمانهٔ حج له راځي، عُمرې له راځي نو دوي را ته خرابوي نو مشوره ئې اوکړه: چې دے بد نامووٗ، خو څنګه به ئې بد نام کړو؟ څهٔ اووایُو؟ پهٔ دې کښې ولید بن مغیره ډیر اوښیار وو، پهٔ بے دینئ کښې اوښیار وو، پهٔ دین کښې دَ ټکي پهٔ شک نهٔ وو، کني ایمان به ئې راوړے وو. دے پکښې ډیر اوښیار وو. نو دهٔ اووئیل: ګوره! ځان مهٔ شرمَوئ، يَو خبره کوئ نو خلق به ئې مني، چې تهٔ يَو څهٔ وائي او بل بل څهٔ وائي نو خلق به وائي: مړه! دا هسې لګیا دي. راغونډ شول او مشوره ئې کوله چې اوس به خلق حج له راځي، نو مونږه به ورته څهٔ وایُو: چې دَ دې پیغمبر خبره ولې مهٔ منئ. واورئ! يَو پیره ئې مشوره دا راغله: چې ولید بن مغیره ته وائي: تهٔ مشر ئې، تهٔ را ته يَو خبره اوکړه چې هغه اوکړو؟ ولید بن مغیره ورته وائي: نا! نا!، تاسو به وایئ: دوي اووئیل... تهٔ به وائي: هغوي ورته اووئیل، تهٔ به وائي.... نو دوي پرې اصرار اوکړو. ورته وائي: خامخه تهٔ مونږه داسې يَو خبره اوښایه. نو خلقو اووئیل: مونږه به دے پهٔ دې مشهور کړو چې دا سړے کاهن دے. کاهن دیته وائي: چې پهٔ هغه دَ دې ستورو نه اثر معلومَوي، او خلقو ته وائي: چې صبا به دا کار کیږي. نو دوي پهٔ کاهن باندې مشهورَوؤ نو ولید بن مغیره ورته وائي: یره! دا خبره صحیح نهٔ ده؛ ولې؟؛ مونږه کاهنان ډیر لیدلي دي. دا دے چې کوم الفاظ وائي داسې الفاظ کاهنان

کله وئيلے شي؟ نو کۀ مونږه ډير وايُو چې دے کاهن دے نو خلق به وائي: چې دوي پۀ سترګو ړاندۀ دي، دوي دۀ ته کاهن وائي!. کاهن داسې وي؟ نو خلق به مو ملامته کوي. نو بيا ئې اووئيل: نور څۀ اوکړو؟ نو خلقو اووئيل: داسې به اوکړو: چې دے به پۀ دې باندې بد نام کړو: چې دَ دۀ دماغ خراب شوي دي، ليونے دے، مجنون دے، نو ټول عرب به دا خبره يادَوي چې بس مجنون دے، فلانے ډير ښۀ سړے وو، صادق وو، امين وو، ډير ښۀ وو خو څۀ چل اوشو دماغ ئې خراب شول، پۀ کډو وَډو سر شو. پۀ دې به ئې بد نام کړو نو چې خلق ئې ګوري نو خلق به ترې نفرت کوي. وائي: به مړه! ليونے پکښې چا راوستے دے. نو وليد بن مغيره ورته وائي:

"مَا هُوَ بِمَجْنُونٍ". "دا ليونے نۀ دے"؛ ځکه: "وَلَقَدْ رَأَيْنَا الْجُنُوْنَ وَعَرَّفْنَهُ".

"مونږه ليونتوب ليدلے دے، مونږه ليونتوب پيژنو". ولې خبرې به ئې څوک اوړي نۀ؟ نو بيا به خلق وائي: چې دا خلق څۀ وائي او دا دے چې څۀ وائي دا خو حق دے، او دا خلق ئې هسې بد نامَوي. نو دوي اووئيل: داسې به اوکړو: چې مونږه به وايُو: چې دے شاعر دے، نو ټول به دا يَوه خبره کوو: چې دے شاعر دے.

هره زمانه کښې داسې يَو لفظ دَ حق پرستو دَ کمزورۍ کولو دپاره استعمالَوي. يَو جومات کښې يَو ملګرے امام وو، مقتديان ورپسې راغلل وائي: مولانا صاحب! خفه کيږه مۀ، تۀ تلے شې، مونږه تا ته رخصت درکوؤ، وائي: ولې؟ وائي: دا ټول خلق وائي چې دے پنج پيرے دے. هغۀ ورته اووئيل: نو وجه څۀ ده، زۀ پنج پيرے يا شاه منصورے يا هر څۀ يم خو ما ته وجه اوښايئ؟ وائي: قسم دے کۀ مونږه پۀ وجه پوهيږو خو خلق وائي: چې دا پنج پيرے دے، او پنج پيريان ښۀ خلق نۀ وي، مونږه دا اوريدلي دي. وائي: ما ورته اووئيل: کۀ زما درس غلط وي، زما الفاظ غلط وي، زما دَ مونځ طريقه غلطه وي، ما ته خو وجه اوښايئ کنه؟ وائي: چې استاذ جي! مونځ هم ښۀ صحيح درځي، تلاوت هم ستا صحيح دے، ترجمه هم تۀ صحيح کوې، خو بس صرف دغه ده چې خلق وائي: ستاسو استاذ پنج پيرے دے نو خفه کيږه مۀ، خلق وائي: چې پنج پيرے وي نو ښۀ سړے نۀ وي نو لهٰذا تۀ زمونږ نه ځه. نو بعضې سړے داسې وي چې هغه صرف غوږونه لري خو سترګې نۀ لري.

نو دوي اووئيل: چې مونږه به دا وايُو: چې دے شاعر دے. نو بيا ورته دا وليد وائي: چې تاسو وايئ چې دے شاعر دے نو مونږه خو شاعران پيژنو او مونږه دَ شاعرانو کلامونه هم اوريدلي دي او مونږه دَ شاعرانو هغه شعرونه هم اوريدلي دي، داسې کلام والله کهٔ شاعرُ وئيلے شي. بيا به دا خلق وائي: چې دا عرب ليوني دي، روغ سړي ته شاعر وائي. وائي: يره! اوس څهٔ اوکړو؟ آخر څهٔ خو به وايُو، مشوره څنګه اوکړو؟ آخر دے به څنګه بد ناموؤ؟ نو دوي اووئيل: چې مونږه به خلقو کښې دا مشهوره کړو: چې دے ساحر دے. دهٔ څهٔ کلمې يادې کړې دي خو چې يَو سړے ئې يَو ځل واوري نو هغه ځان سره ملګرے کړي او کور کښې ورله جنګ جوړ شي، دشمني جوړه شي، پلار ئې خلاف شي، روړ ئې خلاف شي او دهٔ دا ټول کلے پهٔ جنګ کښې اخته کړے دے. ساحر دے. نو وليد ورته وائي: قسم پهٔ خدائے دے کهٔ دے ساحر وي، ساحر هم نهٔ دے، ما دَ ساحرانو سحرونه اوريدلي دي، ما دَ هغوي هغه تارونه چې غوټه کوي هغه مې هم ليدلي دي، دے خو دَ هغې نهٔ منع کوي. دے ساحر نهٔ دے، خو څهٔ خو به وايُو کنه! نو بس پهٔ دې ئې مشهور کړئ چې دے ساحر دے. او خلقو ته به وايئ: چې ساحر څکه دے چې تهٔ ئې بيان واوره نو تهٔ به دَ دهٔ ملګرے شې او خلق به ستا خلاف شي، نو پهٔ کور کښې به دې جنګ پيدا شي. ټول عرب يَو خلق وو، ورشه اوس هم پکښې ډلې ډلې دي، يَو دَ دهٔ ملګرے دے او بل دَ دهٔ خلاف دے، يَو دهٔ ته کافر وائي او دے هغهٔ ته کافر وائي، هغهٔ دهٔ ته بے دينه وائي او دے هغهٔ ته بے دينه وائي، لکه اوس هم بعضې خلق وائي: يره جي! دې خلقو زمونږه کلي کښې شر پيدا کړے دے، فساد ئې پيدا کړے دے. نو وائي: پهٔ دې به ئې بد نام کړو چې دے کاهن دے، ټول خلق ئې اوجنګول، پلار او ځوي ئې دَ يَو بل خلاف کړل. نو پهٔ دې باندې متّفق شو چې دے ساحر دے.

**دَ وليد بن مغيره مشوره**

پهٔ بعضې رواياتو کښې راځي: وليد ورته اووئيل: چې تاسو ټولو خو خپلې خپلې رائې کانې پيش کړې خو زما پرې زړهٔ اوبهٔ نهٔ څښکي.... دا دروغ به هم داسې وائي کنه چې بل سړے ئې خو اومني کنه!، بعضې سړے داسې دروغ وائي چې هغه پهٔ هغه ټائم معلوميږي چې دے دروغ وائي، نو

هغه بیا څوک نهٔ مني. وائي: دروغ به وایُو، خو لږ پهٔ چل به ئې وایُو، وائي: ما له لږ مهلت راکړئ چې زهٔ پهٔ دې کښې فکر اوکړم چې دے پهٔ کوم لفظ بد نام کړو. نو هغوي ورته اووئیل: چې مونږه تا له ټائم درکړو. نو ولید لاړو او ټوله شپه ئې خوب اونهٔ کړو، ښهٔ سوچونه ئې اوکړل، آخر ئې پهٔ دې باندې فیصله اوکړه چې دا پیغمبر پهٔ دې بدناموِل غواړي چې دے ساحر دے. دے جادوګر دے، او دَ دهٔ خبره چې څوک واوري نو پهٔ هغهٔ اثر اوشي، او دَ هغهٔ نه ټول قوم بیا خلاف شي.

علماء وائي: دَ ولید پهٔ باره کښې چې کوم آیتونه راغلي دي نو هغه دا دي: قرآن وائي:

﴿إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ * فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ * ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ * ثُمَّ نَظَرَ * ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ * ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ * فَقَالَ إِنْ هَذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ * إِنْ هَذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ *﴾.(1)

"یقینًا دې کافر سوچ اوکړو، فکر ئې اوکړو، او دَ هغې نه پس ئې اندازه اولګوله، دے دې هلاک شي، څنګه ناکاره اندازه ئې اولګوله، بیا دې دے هلاک شي څنګه اندازه ئې اولګوله، بیا ئې اوکتل بد، بیا ئې تندے تریو کړو، او نور ئې هم تندے را تریو کړو، نو بیا ئې شاه کړه دَ الله نبي ﷺ طرف ته، او تکبر او غرور ئې شروع کړو نو دَ ډیر سوچ او فکر نه پس ئې اووئیل: نهٔ دے دا مکر جادو دے چې اثر پکښې اچولے شوے دے، یا دَ بل نه رانقل کړے شوے دے، نهٔ دے دا مکر وینا ده دَ یَو بنده"، دا دَ دې یَو بنده وینا ده، او دا دَ دهٔ دَ سحر او جادو کلمات دي، دا دَ الله کلام نهٔ دے.

دَ نبي ﷺ خلاف ئې دا پروپیګنډې جوړې کړې: نبي ﷺ به ګرځېدو او خلقو ته به ئې دعوت ورکولو، او دوي به خلقو ته وئیل: چې ګورے! دَ دهٔ خبره مهٔ منئ. را روانه جُمعه کښې به دا ذکر کړم چې کوم سرے به راتلو باقاعده لارې ئې تقسیم کړې وې او هغهٔ ته به ئې وئیل: چې روره! عُمرې له راغلے ئې، حج له راغلے ئې؟ هغهٔ به وئیل: آو. دوي به ورته اووئیل: چې حج دې الله قبول کړه، عبادت دې الله قبول کړه خو دلته یَو سړے دے، دَ پلار نیکهٔ دین ئې پرېښودے دے، ګډې وَډې وائي، چرته دَ هغهٔ خبرې واونهٔ رې، زمونږ خو کلي وال دے، مونږ خو ئې پېژنو او تهٔ ئې نهٔ پېژنې هسې نه چې دهوکه دې کړي.

(1) [سورة المدثر: 18-25].

خو دوي بيا هم پهٔ دې مشوره متفق شوي نهٔ دي، چا به ورته كذّاب وئيلو، چا به ورته ساحر وئيلو، چا به ورته مجنون وئيلو.... او ما درّته اووئيل: چې بيا خو نبي ﷺ دعوت عام كولو، كرځيدو به پهٔ عكاظ ميله كښې، پهٔ نورو ميلو كښې دا غټې منډياني وې، خلق به پکښې تجارت له تلل، هغې وخت كښې دَ دين دومره قدر چرته وو چې ټول خلق پهٔ يَو ځائے كښې راغوند شي، او مسئله واوري. چې چا به دَ الله پيغمبر كوم ځائے كښې ليدو نو دَ هغه ځائے نه به خلق تلل. نو نبي ﷺ به پهٔ منډيانو كښې كرځيدو او چغه به ئې وهله:

«يَا أَيُّهَا النَّاسُ قُولُوا: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، تُفْلِحُوا».[1]

"اے خلقو! تاسو دا كلمه اووايئ: "لا اله الا الله" نو تاسو به كامياب شئ".

دا به ئې وئيل او روستو به وريسې خپل ترهٔ روان وو او دَ كانړو نه به ئې جولئ ډكه كړې وه او دَ الله نبي ﷺ به ئې پهٔ كانړو باندې ويشتو، او خلقو ته به ئې وئيل: چې اے خلقو! إِنَّهُ صَابِئٌ، كَاذِبٌ، دے بے دينه شوے دے، او دا ډير غټ دروغژن دے، دَ دهٔ مهٔ منئ، دهٔ دَ پلار نيكهٔ دين پريخودلے دے، زما وراره دے ما ته ئې پته ده. نو چې نا آشنا سړے وو نو هغهٔ به وئيل: چې دا خپل ترهٔ وريسې دے دومره ردې، بدي ورته وائي، نو دا به ريشتيا وي، كهٔ دَ دهٔ دا خبره صحيح وه نو اول به ئې خپل ترهٔ منلې وه.

دا تكاليف او دا مشكلات دَ الله پهٔ نبي ﷺ راغلي دي او هغهٔ دا برداشت كړي دي. نور سيرت به ان شاء الله وريسې راځي.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ.

---

(1) أخرجه أحمد في "مسنده"، مسند المكيين، حديث ربيعة بن عباد الديلي، برقم: (160220).

بسم الله الرحمن الرحيم

يٰٓأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ

(سورة المائدة: 67)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه دولسمه

## "په نبي ﷺ دَ مشركينو اعتراضونه كول"

بتاريخ: 2022-03-04

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه دولسمه

## "په نبي ﷺ دَ مشركانو اعتراضونه كول "

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړوا په تيره جمعه كښې دَ رسول الله ﷺ دَ دعوت بيان شروع وو او دويمه مرحله دَ دعوت وه.

**اول خپلوان راغونډول**

اول ئې خپل خپلوان او ټول قريش راغونډ كړل، دَ قريشو يَو يَو خاندان او هغوي ته ئې بيان اوكړو، هغوي اونهٔ منلو، تر دې پورې چې دَ نبي ، خپل تره دَ نبي ﷺ سخت خلاف شو.

**دَ رسول الله ﷺ دَ مخالفينو كردار**

نن بيان كښې به دا وايُو: چې رسول الله ﷺ دَ دعوت كار شروع كړو، نو دَ هغهٔ مخالفينو او دشمنانو دَ نبي ﷺ نه خلق منع كول او اړول ئې شروع كړل. په نبي ﷺ ئې قسم ما قسم بدنامې لګول شروع كړل. هغه نبي ﷺ چې دوي به ورته امين وئيلو كله ئې چې دَ دين بيان شروع كړو، دَ

(1) [سورة المائدة: 67].

حق بيان ئې شروع کړو نو بيا به ئې ور پورې ټوقې او مسخرې کولې او قسم ما قسم نومونه به ئې دَ الله نبي ﷺ ته وئيل.

**اولنئ طريقه**

اولنئ طريقه ئې دا وه: چې دَ الله نبي ﷺ دَ خلقو سترګو کښې سپک ښکاره کړي. نو کله يَو قسم اعتراض او کله بل قسم اعتراض؛ دَ دې دپاره چې ناپوهه خلق پهٔ دې دهوکه شي. قرآن دَ هغوي هغه اعتراضونه ذکر کوي. دوي به کله پهٔ رسول الله ﷺ اعتراضونه کول او کله به ئې پرې الزامونه لګول، نبي ﷺ ته به ئې مجنون وئيلو، وئيل به ئې وائي: تهٔ ليونے ئې، دا تهٔ چې کومې خبرې کوې نو دا هيڅ چا نهٔ دي کړي او صرف تهٔ ئې کوې. قرآنِ کريم کښې الله رب العزة فرمائي:

﴿وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ﴾.[1]

"وئيلي وو دې کافرانو: اے هغه سړيه چې تهٔ وائې: چې ما باندې ذکر او وحي راغلې ده! تا باندې وحي نهٔ ده راغلې، يقينًا تهٔ خامخه ليونے ئې"، دا ستا دماغ خراب شوي دي، ګډې وډې دې شروع کړي دي، دا ستا يَو شک دے، يَو وهم دے، سوچ اوکړې نو بيا وائې: چې دا ما ته الله وحي کړې ده.

**دَ ټولو نه زيات صادق او امين باره کښې دَ مشرکينو اعتراضات**

هغه نبي ﷺ چې دَ ټولو نه زيات پهٔ صادق او امين باندې مشهور وو، چې کله ئې بيان شروع کړو نو وائي: تهٔ ليونے ئې، کله به ئې ورته ساحر وئيلو:

﴿وَعَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ﴾.[2] "تعجب کولو دې کافرانو دَ دې خبرې نه چې راغلے وو دوي ته يَو يرَونکے دَ دوي دَ جنس نه (دَ دوي پهٔ قوم کښې، دَ دوي پهٔ کشرانو کښې الله يَو تن له پيغمبري ورکړه، نو دوي به وئيل: چې دا څنګه چل دے!، چې انسان دې مونږ له پيغمبر راځي، دا خبرې خو دهٔ مخکښې چرته نهٔ وې کړې او اوس پکښې الله دومره اثر واچولو!!)، وئيل به کافرانو: دا ساحر او دروغژن دے".

---

(1) [سورة الحجر: 6].

(2) [سورة صٓ: 4].

نو کله به ئې ورته مجنون وئیلو، کله به ئې دَ الله پهٔ نبي ﷺ باندې نور اعتراضونه کول، وئیل به ئې: دا نبي ﷺ چې کومې خبرې کوي نو دا ورته الله نهٔ دي رالیږلي بلکه دا ﴿أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ﴾.[1] "ګډوډ خوبونه دي"، دے چې دَ شپې اودهٔ شي نو خوب اوویني، خوب کښې چې څهٔ اووینې هغه بیا سحر کښې خلقو ته وائي، چې بیګا ما ته دا وحي راغلې ده.

دَ پیغمبر پاک ﷺ هغه بیان ته به ئې ګډوډ خوبونه وئیل. کله به دې کافرانو وئیل:

﴿بَلِ افْتَرَاهُ﴾.[2]

"بلکه دې نبي (ﷺ) دا خبرې دَ ځان نه جوړې کړي دي"، جبرئیل علیه السلام نهٔ دے راغلے، الله نهٔ دي رالیږلے، دا دې نبي (ﷺ) دَ ځان نه جوړې کړي دي.

کله به ئې پرې اعتراض کولو:

﴿إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ بَشَرٌ﴾.[3]

"یقینًا ښودنه کوي دهٔ ته یَو بنده"، دا یَو کس دے چې دے نبي ﷺ ته ئې پټ پټ بیانوي، او دے ئې سحر خلقو ته وائي. یَو بنده دے هغه دَ دهٔ استاذ دے، دے دَ هغهٔ نه دا زده کوي او بیا ئې خلقو ته وائي او بیا وائي: چې ما له وحي راغلې وه، او ما ته جبرئیل علیه السلام داسې وئیلي وو.

کله به ئې وئیل:

﴿أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾.[4]

دا نبي ﷺ چې څهٔ وائي نو دا دَ الله خبرې نهٔ دي، "دا دَ پخوانو خلقو قصې دي چې دَ بل چا نه ئې دَ هغې دَ لیکلو طلب کړے دے (پهٔ بل چا ئې لیکلي دي)، پس هغه لوستلے شي پهٔ دهٔ باندې صبا او بیګا".

---

(1) [سورة الأنبياء: 5].

(2) [سورة الأنبياء: 5].

(3) [سورة النحل: 103].

(4) [سورة الفرقان: 5].

دا قصې دي دَ فرعونيانو، دَ يهوديانو او دَ نصاراؤ، دے مونږ ته په قصو باندې لګيا دے.
قسم ما قسم اعتراضونه به ئې کول.

**دَ الله دَ طرف نه تسلّي**

دَ الله دَ نبي ﷺ به زړهٔ تنګ شو، چې دا هغه سړے وو چې پرونه پورې ئې پهٔ دې خُلهٔ زما صفت کولو او نن ما پسې لګيا دے او بد وائي. نو خامخه دَ سړي زړهٔ تنګ شي . الله رب العزة به تسلي رااوليږله: چې اے زما نبي! مهٔ خفه کيږه:

﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ﴾.(1)

"اے نبي! مونږ ته پته ده چې ستا سينه تنګيږي پهٔ هغې ردو، بدو او پهٔ هغې بدنامو چې دا کافران ئې تا پسې وائي".

نو اے نبي! دَ دې علاج دا نهٔ دے چې تهٔ دعوت پريږده، تهٔ بيان پريږده، دَ دې خفګان او دَ دې غم لرې کولو دپاره دَ الله سره تعلق جوړ کړه:

﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ﴾.(2)

"تهٔ دَ ربّ تسبيحات وايه، سره دَ صفتونو دَ ربّ ستا...". دَ ربّ تسبيح وايه، کوم شے چې دَ ربّ شان سره مناسب نهٔ دے نو دَ هغې نه ربّ پاک ګڼره!، او کوم شے چې دَ ربّ شان سره مناسب دے نو هغه ربّ له ثابتوه. "او شه دَ سجدې کونکو نه الله رب العزة ته". الله ته سجده اولګوه نو الله به تا دَ دې خلقو نه خلاص کړي، ستا دا دشمنان به الله ذليل کړي، دوي به الله تباه کړي او تا ته دوي هيڅ نقصان نهٔ شي رسولے.

او کله به الله رب العزة داسې تسلي ورکوله: چې اے نبي! تهٔ خپل کار کوه:

﴿إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ * الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾.(3)

---

(1) [سورة الحجر: 97].

(2) [سورة الحجر: 98].

(3) [سورة الفتح: 29].

"نبي مونږه پوره يُو ستا دپاره دَ ټوقو کونکو نه (مونږ به ستا جواب کوو، مونږه به ستا دفاع کوؤ، نبي! دا تا پورې چې استهزاء کوي نو مونږه به دوي ذليله او رسوا کړو)، دا تاپورې چې ټوقې کوي دا به هغه څوک وي چې هغه دَ الله سره بل څوک شريک ګرځوي (شرک به ئې کړے وي)، دَ دوي پهٔ انجام، دَ دوي پهٔ سزا به زر دے چې دوي پوهه شي".

داسې تسلي به الله رب العزة خپل نبي ﷺ ته ورکوله.

**ګوره ! پخوانو انبياء کرامو ﷩ پورې ټوقې کړې شوې وې ! ! !**

کله به ئې پهٔ دې طريقه تسلي ورکوله: ﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِنْ قَبْلِكَ﴾.(1)

نبي! دا څهٔ نا آشنا خبرې نهٔ دي، کله هم چې الله والا راغلي دي او خلقو له ئې دَ الله پيغام رسولے دے، دَ الله دين ئې رسولے دے، دې خلقو معاف کړي نهٔ دي، دې خلقو هغهٔ پسې هم خبرې کړي دي، دوي هغه بدنام کړي دي، دوي هغه سپک کړي دي؛ "مخکښنو پيغمبرانو پورې هم داسې ټوقې او مسخرې شوې وې". نو اے نبي! تا پورې به هم دا خلق ټوقې او مسخرې کوي، خو واوره! ستا مرتبه کمولے نهٔ شي، دوي به دَ الله تعالٰی دَ قهر او غضب سره مخامخ شي:

﴿فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾.(2)

"پس نازل شوے وو پهٔ هغه کسانو باندې چې هغوي ټوقې کړې وې دَ دوي نه سزا دَ هغې چې وو دوي دَ هغې پورې چې ټوقې او مسخرې ئې کولې".

الله رب العزة وائي: هغوي له مې سزا ورکړې وه نو دوي له به هم سزا ورکوم. نو قسم ما قسم شبهې او اعتراضات به ئې پهٔ نبي ﷺ باندې کول.

**پهٔ خوراک او څښکاک کولو باندې اعتراض**

کله به دوي دا اعتراض کولو چې:

﴿وَقَالُوا مَالِ هَذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ﴾.(1)

---

(1) [سورة الأنعام: 10].

(2) [سورة الأنعام: 10].

"وئیل به دوي: دا ځنګه پیغمبر دے، دے خو ډوډئ خوري او ډوډئ چې خوري نو هغه پیغمبر نه وي، او دا ځنګه پیغمبر دے چې دے بازار کښې ګرځي".

دا هم لا خبره وه! خو ګوره! دوي به پرې خپل زړهٔ خوشحالولو. وائي: دا پیغمبر نهٔ دے، دے خو خوراک کوي، دا پیغمبر نهٔ دے، دے بازار ته ځي، دے دې چرته جومات کښې کښیني.

**بل اعتراض: دا خو بشر دې**

کله به ئې دا اعتراض کولو: چې دا خو بشر دے او الله رب العزة انسانانو ته وحي نهٔ رالیږي:

﴿مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ﴾.[2]

"نهٔ دے رالیږلے الله پهٔ هیڅ یَو بنده باندې هیڅ یَو څیز لره". یعني الله یَو تن له هم وحي نهٔ ده کړې، خومره پیغمبران چې تیر شوي دي نو بشر نهٔ وو نو دا ځکه پیغمبر نهٔ دے چې دا بشر دے.

الله رب العزة پرې ردّ کوي، فرمائي:

﴿قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسَىٰ نُورًا وَهُدًى لِّلنَّاسِ﴾.[3]

"ورته اووایه زما نبي! چې چا نازل کړے دے کتاب هغه چې کوم کتاب موسٰی علیه السلام خپل قوم ته راوړے دے؟ چې هغه رڼړا وه او هغه هدایت وو دپاره دَ خلقو".

او دوي دا منله چې موسٰی علیه السلام بشر دے، دَ الله بنده دے. نو چې دا منئ چې بشر دے نو تاسو چې وایئ: چې الله پهٔ یَو بشر هم وحي نهٔ رالیږي نو ولې تاسو موسٰی علیه السلام ته هم بشر وایئ او هم ورته پیغمبر وایئ؟ تورات ته وله وحي نهٔ ده؟ خو چونکه چې سړي کښې ضد راځي بیا دَ حقې خبرې نه هم انکار کوي. مخکښني پیغمبران ټول بشر وو، نو چې هغه منئ نو دے ولې نهٔ منئ؟

**بل اعتراض دَ مشرکانو پهٔ نبي ﷺ باندې**

- کله به ئې دا اعتراض پهٔ نبي ﷺ باندې کولو:

---

(1) [سورة الفرقان: 7].

(2) [سورة الأنعام: 91].

(3) [سورة الأنعام: 91].

﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَذَا الْقُرْآنُ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾.[1]

"دوي به وئيل: چې ولې نهٔ شو نازلولے دا قرآنِ عظيم (چې پهٔ دې يتيم باندې نازليدو چې نهٔ ئې مور شته او نهٔ ئې پلار شته، پهٔ دې غريب او فقير باندې نازليدو نو ولې نهٔ شو نازلولے دا قرآن)، پهٔ يَو لوئي سړي باندې دَ دې دوؤ کلو نه".

مکه کښې لوئي لوئي سرداران شته، طائف کښې لوئي لوئي سرداران شته، چې دا قرآن پهٔ دې نبي (ﷺ) باندې راتلو نو پهٔ هغوي باندې ولې نهٔ راتلو؟ لکه دا پيغمبري چې دوي دَ مالدارو خلقو جاګير ګڼړلے ووا. پهٔ دې نبي باندې وحي راځي نو پهٔ فلانکي صاحب باندې ولې نهٔ راځي. دا اعتراض وو؟

**دَ دوي دَ دې اعتراض جواب**

الله تعالیٰ دَ دې اعتراض جواب پهٔ خپله باندې کوي:

﴿أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ﴾.[2]

الله وائي: اے خلقوا دا پيغمبري چې ده نو دا خو زما يَو رحمت دے چې زهٔ ئې چا لره ورکول اوغواړم نو هغهٔ له به ئې ورکوم، نو "آيا دا خلق تقسيموي رحمت دَ ربّ ستا". دا به الله دَ دوي پهٔ خوښه ورکوي او کهٔ پهٔ خپله خوښه به ئې ورکوي؟، دا الله پهٔ خپله خوښه ورکوي. او دا نبي ﷺ دَ الله خوښ وو نو ځکه الله پيغمبر راوليږلو.

نو دا دَ دوي اعتراض وو: چې دے ولې الله پيغمبر اوګرځولو.

کله الله تعالیٰ داسې جواب ورکوي:

﴿اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ﴾.[3]

"الله تعالیٰ ښهٔ پوهيږي کوم ځائے کښې چې الله ګرځوي خپله پيغمبري".

نو دا خو دَ الله خوښه ده چې کوم ځائے کښې الله څوک پيغمبر جوړوي. نو ديکښې دَ چا

(1) [سورة الزخرف: 31].

(2) [سورة الزخرف: 32].

(3) [سورة الأنعام: 124].

څۀ کار دے؟ دا پۀ عقل باندې نۀ ده. دا دَ الله پۀ خوښه باندې ده.

نو دا دَ دوي اعتراض وو.

**دَ فرشتو راتلل**

کله به دوي دا اعتراض کولو:

﴿لَوْلَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا﴾.(1)

"ولې دَ دې نبي سره فرشته نۀ راځي چې دَ دې نبي سره یرونکې شي".

چې دا پیغمبر وو نو دۀ لره یَو فرشته هم پکار وه چې هغې ورسره هم دا بیان کولو، تصدیق ئې ورله هم کولو.

﴿أَوْ يُلْقَى إِلَيْهِ كَنْزٌ﴾.(2)

"یا ولې نۀ شي را غورځولے دې نبي (ﷺ) ته خزانه".

چې دا نبي دے نو دۀ سره مال ولې نشته دے، دۀ سره دولت ولې نشته دے.

﴿أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا﴾.(3)

"یا ولې نشته دَ دې نبي (ﷺ) دپاره باغ چې خوراک کوي دَ هغې نه".

چې دا پیغمبر دے نو دَ کجورو باغ ئې ولې نشته دے.

﴿وَقَالَ الظَّالِمُونَ إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَسْحُورًا﴾.(4)

"وئیلي وو ظالمانو: تاسو تابعداري نۀ کوئ مګر دَ یَو سړي چې هغۀ باندې جادو کړے شوے دے".

وائي: دَ دۀ دماغ چا پۀ جادو باندې خراب کړي دې، او تاسو هغۀ پسې روان یئ. نو کوره! یَو خبره ئې نۀ وه، کله یَو اعتراض او کله بل او کله بل... کله به ئې وئیل: چې دا نبي چې کومې خبرې کوي نو دا زمونږه عقل نۀ مني نو څنګه ئې مونږه اومنو؟ وئیل به ئې: چې دے وائي: چې کله

(1) [سورة الفرقان: 7].

(2) [سورة الفرقان: 8].

(3) [سورة الفرقان: 8].

(4) [سورة الفرقان: 8].

انسانان مړۀ شي او هډوکي شي او خاورې شي نو دا به الله بیا دوباره را ژوندي کوي، وائي: دا مو پکښې نوې خبره واوریده!!!.

یَو سړي چرته ډېره زمانه دَ سحر آذان نۀ وو اوریدلے نو یَو ورځ چرته سحر وختي پاسیدلے وو نو آذان کښې ئې "الصلاة خیر من النوم" اوریدلي دي نو سحر بل ته وائي: اے هلکه! دا څنګه چل دے ما خو نن دَ سحر بانګ کښې نوې تپه واوریده، وائي: "الصلاة خیر من النوم" ئې پکښې وئیلو. څکه هغۀ خو نۀ وو اوریدلے نو دوي هم وئیل: چې دا مو پکښې نوې تپه واوریده: چې دا مړي به بیا الله ژوندي کوي، دا به بیا الله دَ قبرونو نه راوباسي، دا دے لا څۀ وائي!!!.

﴿أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ * أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ﴾.(1)

"آیا کله چې مونږه مړۀ شو او خاورې او هډوکي شو نو آیا بیا به کني مونږه راپورته کولے شو او آیا زمونږه رومبني پخواني پلاران او زمونږه نیکونه چې پخوا مړۀ دي هغه به هم بیا دوباره راپورته کولے شي"، نو دا خو دَ نۀ منلو خبره ده.

کله به دوي وئیل:

﴿ذَٰلِكَ رَجْعٌ بَعِيدٌ﴾.(2)

"دا واپس کیدل چې دي دا لرې دي دَ عقل نه"، زمونږه دماغ دا خبره نۀ اخلي، زمونږه پۀ سوچ کښې دا خبره نۀ راځي.

او کله به ئې وئیل:

﴿هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾.(3)

"آیا مونږه خبر درکړو تاسو ته پۀ داسې یَو سړي چې خبر درکوي تاسو ته پۀ دې چې کله تاسو ذرّه ذرّه، ټکړې ټکړې شئ پۀ مکمل ټکړې ټکړې کیدو سره نو یقینًا تاسو به بیا پۀ پیدائش نوي کښې پیدا کیږئ".

---

(1) [سورة الصافات: 16 - 17].

(2) [سورة ق: 3].

(3) [سورة سبأ: 7].

حجره کښېې به کښېناستل، مجلس کښې به کښېناستل، وئيل به ئې: مړه! نوي نوي خلق راغلي دي، نوې نوې مسئلې ئې شروع کړي دي. وائي: داسې سړے به تاسو چرته نهٔ وي ليدلې؟ زهٔ تاسو ته داسې سړے ښايم!، بل به اووئيل: چې دا دے به لا څهٔ ګډوډې وائي، وائي: ګوره! دماغ ئې داسې ګډوډ شوي دي، هغه وائي: چې کله دا انسانان ذرّه ذرهٔ شي، پهٔ پوره پوره ذرّه ذرّه کيدو باندې نو وائي: بيا به الله دوي پهٔ نوي پيدائش باندې موجود کړي، او بيا به ئې ژوندي کړي. نو بل به وئيل: يا الله! زما دې توبه وي! نوې نوې فتنې راوتي دي، دا دے پکښې لا څهٔ وائي!. بل به وئيل: چې دا خبرې خو نهٔ زمونږه پلارانو کړي وې او نهٔ زمونږه نيکونو کړې وې، دا پکښې دَ کوم ځائے نه راغلي دي. وائي: يره! خو بس نوې نوې خبرې به اورې نوا.

﴿أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِ جِنَّةٌ﴾.(1)

دے پکښې وائي: چې ما ته وحي شوې ده، وائي: "آيا دهٔ پهٔ الله باندې دروغ جوړ کړي دي؟ بلکه پهٔ دهٔ باندې ليونتوب راغلے دے".

نو تهٔ اووايه: چې تهٔ ټولې دنيا له دعوت ورکوے، او خلق درته داسې وائي نو دا به داعي له خومره زور ورکوي. دا خو الله رب العزة دَ نبي ﷺ زړهٔ لکه دَ اوسپنې کلک کړے وو، دَ دې ټولو اعتراضونو پرواه به ئې نهٔ لرله او خپل بيان به ئې کولو اګر چې الله به جوابونه کول.

**بل اعتراض: پهٔ قرآن اوريدو باندې**

چې نور وس به ئې اونهٔ شو نو خلقو ته به ئې وئيل:

﴿لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ﴾.(2)

"دا نبي ﷺ چې کوم قرآن بيانَوي نو دا مهٔ اورئ (دَ دهٔ خبرې مهٔ اورئ، دَ دهٔ بيان مهٔ اورئ، ولې؟؛ کهٔ دا قرآن اورئ نو پهٔ تاسو به هم اثر اوشي، تاسو به هم ليوني شئ)، شور کوئ تاسو دَ دې نبي دَ بيان پهٔ وخت کښې؛ دَ دې دپاره چې تاسو زورَور شئ". نو دليل کښې خو زورَور کيدے نهٔ شئ خو

---

(1) [سورة الفتح: 29].

(2) [سورة فصلت: 26].

شور کښې ځان زورور کړئ. شور جوړ کړئ غوبل جوړ کړئ، خلق به وائي: شر جوړيږي، فساد جوړيږي نو مشران به راپاسي او دې نبي ته به وائي: چې نورې به دا خبرې نهٔ کوې، نور به دا بيانونه نهٔ کوې، نورې به دا مسئلې نهٔ کوې. پهٔ دې طريقه به ترې دا خلق منع کړو.

کله به ئې دَ الله دَ نبي ﷺ خلاف جلسه جوړه کړه، پروګرام به ئې جوړ کړو.

**دَ نضر بن حارث کار**

نضر بن حارث لوئي کافر وو او دهٔ وئيل: چې زهٔ به دَ دې نبي ﷺ خلاف کوم، زهٔ به دَ دهٔ مقابله کوم. نو دے چرته پخوا تلے وو، دَ فارس دَ بادشاهانو او دَ رستم خان او اسفنديار خان (دا دَ هغې علاقې دا بادشاهان وو. هغوي ډير پهلوانان وو) دَ هغوي قيصې ورته يادې وې، چې فلاني خان داسې کړي وو، فلانئ پهلوان داسې کړي وو، خلقو ته به ئې وئيل: راځئ! ما سره کينښنئ، نو داسې کار دے چې تاسو ته به پته اولګي چې زما دا مجلس به بهتر وي او کهٔ دَ محمد ﷺ دا مجلس به بهتر وي. دلته ښهٔ مزيدار پهٔ صوفو کښې ولې نهٔ کښينئ چې هلته پهٔ خاورو کيښينئ، او زهٔ درته وايم: چې ګپ شپ به هم لګوؤ او دَ رستم او دَ اسفنديار خان قيصې به هم درته کوم او دَ شرابو ګلاسونه به ډک وي، شراب به ورسره هم څښکو، سندرې به هم پکښې وايُو. او هغه خو به درته وائي: چې شراب به نهٔ څښکئ، سندرې به نهٔ غږَوئ، او دَ موسٰی علیه السلام او دَ فرعون او دَ قارون او دَ بل دا زړې قيصې به درته کوي. دا خو مونږه ټول عمر اوريدلي دي، راځئ! چې نا آشنا نا آشنا قيصې درته اوکړم.

خلقو ته به ئې وئيل: چې زما مجلس ښهٔ دے، پهٔ پيسو به ئې ځان له سندر غاړې وينزې اغستې، او خلقو ته به ئې وئيل: راځئ! مجلس دے. نو روره! دا خلق خو پهٔ ډنګ حيران دي، دوي له خو تهٔ قرآن بيانَوه نو دا پرې بوج وي، خو کهٔ دغه ځائے کښې يَو ډنګ ورکړو نو بيا دا ټول منډې وهي، بيا ورته نهٔ ټينګيږي. وائي: ديته به دَ چا پلار ټينګ شي، هغه شيطاني شے دے خلقو له خوند ورکوي. نو دهٔ به خلقو ته دا وئيل: دے خو دَ شرابو نه منع کوي او زهٔ به دربانديې شراب څښکم، دے دَ سندرو نه منع کوي او زهٔ به سندر غاړې جينکئ راولم، او ګډوم به ئې، او ښې سندرې به

پرې وایم، نو کوم مجلس ښهٔ دے؟ نو چې څوک پهٔ دنیا مئین وو نو هغه به دَ دهٔ مجلس ته راتلل. او څوک چې پهٔ دین مئین وو نو هغه به دَ رسول الله ﷺ مجلس ته تلل. الله رب العزة فرمائي:

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾[1]

"بعضې دَ خلقو نه هغه دي چې هغه ځان له پهٔ پیسو اغستي دي هغه څیزونه چې هغه دَ دین نه خلق غافله کوي؛ دَ دې دپاره چې خطاء شي دَ لارې دَ الله نه". یا دَ دې معنٰی متعدّي اوکړه: "دَ دې دپاره چې نور خطاء کړي دَ الله دَ لارې نه".

دَ بل دَ ګمراه کولو دپاره ئې نوې نوې طریقې رائج کړي دي. نو یَو طریقه دَ کافر دا وه: چې رسول الله ﷺ بد نام کړي، مجنون به ئې ورته وئیلو، ساحر به ئې ورته وئیلو، بے وقوفه به ئې ورته وئیلو، پهٔ قرآن باندې اعتراضونه، پهٔ صحابه کرامو ﷺ باندې اعتراضونه، وائي: کهٔ دا دین صحیح وے نو دا به دې غریبانانو قبلولو؟ دهٔ سره چرته ما ته اوښیار سړے اوښایئ؟ ټول ورسره دا کمزوري خلق دي، چرته غلامان، چرته وینزې راغلي دي هغه ورسره ملګري شوي دي او پهٔ عربو کښې خانداني خلق یَو هم دَ دهٔ ملګرے نهٔ دے، دا دے هسې لګیا دے. او نبي ﷺ ته به ئې وئیل: چې مونږ به درسره راتلو خو دا غریبانان دې خپل مجلس نه لرې کړه. پهٔ دې طریقه به ئې خلق دَ نبي ﷺ نه متنفّره کول.

نو دا یَو طریقه وه دَ هغوي دَ نبي ﷺ نه دَ اړولو. چې پهٔ دې باندې کار اونهٔ شو او پهٔ دې اعتراضونو ئې خلق وانهٔ ړول، پهٔ دې باندې ئې خلق دهوکه نهٔ کړل نو بیا به ئې نورې طریقې اختیارولې.... خو بیا هم خلق منع کیدل نهٔ؛ ځکه خلقو به چې دَ نبي ﷺ بیان واوریدو نو هغوي به ئې ملګري شول.

## دَ طفیل بن عمرو الدوسي ﷺ ایمان راوړل

طفیل بن عمرو الدوسي ﷺ ته دَ مکې کافر ولاړ وو، چې سردار حج له راروان دے، دا پیغمبر ئې چرته دهوکه نهٔ کړي، هغهٔ ته وائي: چې ملګریه! تهٔ خو راغلے ئې میلمه ئې، او مونږ

(1) [سورة لقمان: 6].

ستا ملاقات ته راغلي يُو، خبره دا ده: چې زمونږه کلي کښې يَو کس پيدا شوے دے، "محمد" ئې نوم دے، دَ پلار نوم ئې "عبد الله" دے، او هغې محمد ګډې وډې خبرې شروع کړې دي، ډير اوښيار وو، ډير تکړه وو، ډير ښهٔ سړے وو، خو اوس پرې څهٔ چل شوے دے، دماغ ئې خراب شوي دي، سړے جادوګر دے، چې خلق ئې څنګه خبرې واوري نو داسې جادو دے ورسره چې صبا دَ هغهٔ ملګرے شي، نو مهرباني اوکړه! دَ دې سړي نه به ډير ځان ساتې.

نو طفيل هغه وخت لا کافر دے، هغه وائي: زهٔ ئې سخت اويرولم، زهٔ دَ هيڅ څيز نه دومره نهٔ يم يريدلے لکه څومره چې دَ دې سړي نه اويريدم. وائي: ما زړهٔ کښې وئيل: چې چرته دا سړے مخې له رانهٔ شي، خراب مې نهٔ کړي، دهوکه مې نهٔ کړي، وائي: دَ ډير احتياط دَ وجې نه وائي: ما وئيل: چې زهٔ خو به ورته نهٔ ګورم خو کهٔ غوږونو ته مې آواز راشي نو بيا به راته نقصان ملاؤ شي. دوي زما پهٔ زړهٔ کښې دومره نفرت اچولے، وائي: ما وئيل: چې راشه! دا غوږونه هم بند کړه. وائي: مالوچ مې راواوړل او پهٔ دې غوږونو کښې مې وردننه کړل، دواړه غوږونه مې بند کړل، خپلې خبرې مې اوريدې او دَ بل خبرې به مې نهٔ اوريدلې او پهٔ دې دوران کښې بيت الله کښې طوافونه کوم او ګرځمه. زړهٔ کښې هسې يَو سوچ راغے چې تهٔ څهٔ ماشوم خو نهٔ ئې، ورو‌کے خو نهٔ ئې، تا دَ کاهنانو خبرې هم اوريدلي دي، تا دَ ساحرانو خبرې هم اوريدلي دي، تا دَ شاعرانو خبرې هم اوريدلي دي. داسې کار دے چې تهٔ دَ دهٔ خبرې هم واوره کهٔ غلطې وې نو مهٔ ئې منه کنه. بس چې دومره يَو سړي سوچ اوکړو نو بيا کار کيږي، وائي: غوږونه مې کولاؤ کړل، او نبي ﷺ چې کله عبادت خلاص کړو، کور ته روان شو، زهٔ وريسې هم روان شوم. وائي: ما ورته اووئيل: چې ما خو غوږونه ډير کلک بند کړي وو ستا دَ آواز دَ وجې نه چې وائي نهٔ ورم، خو ما سوچ اوکړو: چې دا تهٔ څهٔ وائي، دا خلق ولې ستا نه دومره سخت متنفِّره دي؟ طفيل وائي: ما ورته اووئيل: چې ما ته صرف ستا هغه پيغام واوروه چې دا څنګه خبرې دي؟ وائي: "دَ الله نبي ﷺ ما له دَ اسلام دعوت راکړو، او ما ته ئې دَ قرآن تلاوت اوکړو". نور ئې را ته څهٔ نهٔ دي وئيلي، وائي: صرف قرآن ته غوږ کيږده، زهٔ درته تلاوت کوم (الله اکبر!). چې دَ رسول الله ﷺ خُلهٔ وه او دَ هغهٔ ژبه وه او قرآن خو

نازل هم دَ هغوي پهٔ لغت باندې وو، او دَ الله نبي ﷺ فصاحت او بلاغت هم ډېر عجيبه وو، او چې بيا دَ سړي زړهٔ هم صفا شي چې واوره، دے څهٔ وائي؟ وائي: کله چې رسول الله ﷺ دَ قرآن تلاوت شروع کړو نو ما چې واوريدو نو ما داسې کلام چرته نهٔ وو اوريدلے، دَ الله نبي ﷺ چې څنګه تلاوت بس کړو نو طفيل ورته وائي: "ما دَ کاهنانو کلامونه اوريدلي دي، دا کلام دَ مخلوق نهٔ دے، لاس را اوږد کړه چې زهٔ درباندې اول ايمان راوړم". پهٔ نبي ﷺ باندې ئې ايمان راوړو.

نو هغوي به خلق دَ نبي ﷺ نه منع کول خو چې کله به هغوي دَ نبي ﷺ خبره واوريده نو هغوي به ورسره ملګري شول. پهٔ دې تحريک کښې هم کامياب نهٔ شو.

**دَ ضمّاد ايمان راوړل**

ضماد دا صحابي دے خو اول مسلمان نهٔ وو، مکې ته راغلے وو، چا ورته اووئيل: چې دلته کښې يَو کس دے او ليونے شوے دے، ګډې وډې وائي، هغهٔ وائي: زما زړهٔ کښې ترسْ راغے چې يره! دم به پرې واچوم کهٔ الله ئې جوړ کړي. کافرو به الله منلو. وائي: ما ورته اووئيل: چې دَ عربو هغه ليونے چرته دے چې خلق ورته ليونے وائي؟ وائي: چا را ته اووئيل: چې فلاني ځائے کښې دے، وائي: زهٔ لاړم او نبي ﷺ ته اودريدم چې زهٔ خبر شوے يم چې ستا دماغ مخکښې سم وو خو اوس خراب شوي دي، ګډې وډې وائې، نو زهٔ به دې دم کړم او ما سره دَ ليونو ډيرې ښې اجازې دي، الله به دې روغ کړي. وائي: دَ الله نبي ﷺ ما ته وائي: چې خير دے، تهٔ به مې دم کړې خو اول زما نه واوره! چې دا کومې خبرې دي چې خلق ما ته ليونے وائي؟ وائي: ما ورته اووئيل: چې تهٔ اووايه!، وائي: دَ الله نبي ﷺ پهٔ خپل انداز باندې خطبه شروع کړه:

«إِنَّ الْحَمْدَ لِلَّهِ، نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أَمَّا بَعْدُ». [1]

کله چې ضماد ﷺ دَ نبي ﷺ دا خطبه واوريده نو هغهٔ نبي ﷺ ته اووئيل:

"أَعِدْ عَلَيَّ كَلِمَاتِكَ هَؤُلَاءِ". [2] "ما ته دې دا کلمات بيا اووايه".

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجمعة، باب تخفيف الصلاة والخطبة، برقم: (868).

(2) أخرجه مسلم في كتاب الجمعة، باب تخفيف الصلاة والخطبة، برقم: (868).

نبي ﷺ ورته خطبه بیا دَ سره کړه. او چې بیا ئې ختموله نو دے نبي ﷺ ته وائي: ما دَ کاهنانو او ساحرانو او دَ لیونو دَ ټولو خبرې اوریدلي دي، داسې کلام لیوني نۀ شي پیش کولے، تۀ لیونے نۀ ئې، تۀ بالکل پیغمبر ئې، او لاس را اوړد کړه چې زۀ دربانديې ایمان راوړم. نو دَ الله نبي ﷺ پسې به چې دوي څومره خبرې کولې نو دومره به الله دَ خلقو پۀ زړۀ کښې دَ نبي ﷺ مینه پیدا کوله، دومره به الله تعالیٰ محبت پیدا کولو. ان شاء الله بله جُمعه کښې به راشي چې بیا دوي طریقه کار بدل کړو. وائي: اوس پۀ دې کار نۀ کیږي، وائي: اوس به دَ وهلو ټکولو نه کار اغستل غواړي. نو بیا دَ تکلیفونو لړۍ شروع کیږي، ان شاء الله راتلونکي جُمعه کښې به دَ هغې وضاحت کوؤ.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ

(سورة المائدة: 67)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه ديارلسمه

## "دَ نبي ﷺ ملګروله دَ مشركينو تكليفونه وركول"

بتاريخ: 2022-03-11

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه ديارلسمه

## "دَ نبي ﷺ ملګروله دَ مشرکينوتکليفونه ورکول "

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لاَ أَوَّلَ لَهُ وَلاَ آخِرَ لَهُ لاَ ضِدَّ لَهُ وَلاَ نِدَّ لَهُ وَلاَ مُمِدَّ لَهُ وَلاَ بَشِيْرَ لَهُ وَلاَ نَذِيْرَ لَهُ وَلاَ وَزِيْرَ لَهُ وَلاَ مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړوا پهٔ تيرو جُمعو کښې مونږه دَ رسول الله ﷺ سيرت بيان کړے وو، چې رسول الله ﷺ کله دَ الله دَ دين دعوت شروع کړو، نو هغه نبي چې خلقو به ورته صادق او امين وئيلو، او خلقو ورسره ډير مينه او محبت کولو، بيا يک دم خلق بدل شول بيا ئې قسم ما قسم اعتراضونه پهٔ رسول الله ﷺ باندې کول. چا به ورته ساحر وئيلو، چا به ورته مجنون وئيلو، چا به ورته شري وئيلو، او چا به ورته بے وقوفه وئيلو، پهٔ نبي ﷺ مختلف اعتراضونه کيدل حتّٰی چې مخکښې جُمعه کښې مونږه وضاحت کړے وو چې باقاعده ذوي به کرځيدل او خلقو له به ئې وئيل: چې دے ليونے دے او دے ساحر دے.

### دَ نن بيان موضوع

چې پهٔ دغې کار اونهٔ شو نو نن جُمعه کښې به دا وايُو: چې ذوي پوهه شول چې مونږه څومره

(1) [سورة المائدة: 67].

خلقو ته وایُو چې دے خو ساحر دے نو چې خلق ئې خبرې واوري نو هغه ئې هم ملګري شي.

**دَ نبي ﷺ ملګرو له تکلیفونه ورکول**

زمونږه دې پروپیګنډو هیڅ فائده اونهٔ کړه، نو دویمه طریقه ئې دا اختیار کړه چې: نبي ﷺ او دَ هغهٔ ملګرو ته به تکلیفونه ورکوو، سزا ګانې به ورکوؤ. پهٔ دې طریقه باندې به خلق دَ دین نه واوري او خلق به دَ دین نه روستو شي او خلق به دَ دهٔ ملګري نهٔ شي. پهٔ هغې کښې هغوي دا مشوره اوکړه: چې کوم سړے دَ چا پهٔ اختیار کښې دے او دَ چا رشته دار دے نو هر رشته دار هغې خپل رشته له پهٔ خپل لاس تکلیف ورکړئ، چې تاسو له دشمني او فساد هم نهٔ جوړیږي او دې نبي له به رکاوټونه هم سهوا شي. نو هر یَو سړي به خپل غلام، خپل رشته دار له تکلیف او مصیبت رسولو او خپل کوشش به ئې کولو چې دے واړَوي.

**پهٔ زړهٔ کښې دَ ایمان حقانیت**

خو قانون دا دے: چې کله دَ یَو سړي پهٔ زړهٔ کښې دَ ایمان حقّانیت وردننه شي هغه ته دَ تولو نه ګران شے بیا دَ ایمان پریخودل دي. هغهٔ له بیا بدن قربانول ګران نهٔ دي، مال قربانول ورته ګران نهٔ دي، تکلیف برداشت کول ورته ګران نهٔ دي. بلکه دا ورته خوند او مزه ورکوي. نو دویمه طریقه دَ کفارو هغه مسلمانانو له تکلیفونه رسول وو. هز یَو خپل وَس کړے دے.

**دَ ابو جهل لعین کار**

ابو جهل لعین به چې کله واوریدل چې یَو سړے مسلمان شوے دے او اسلام ئې راوړو نو هغهٔ به هغې سړي ته اوکتل، چې دا څنګه دے؟ چې کله به هغه سړے عزتمند وو، طاقتور به وو، دَ دهٔ به پرې وس نهٔ کیدو نو هغهٔ پسې به ئې ردې بدې جوړې کړې، خلقو کښې به ئې شرمولو، خبرې به ئې وریسې کولې، چې فلانکے داسې دے، خلق به ئې دَ هغهٔ نه متنفّره کول. او ورته به ئې وئیل: چې ګوره! تا خو ایمان راوړے دے، تا ته خو پته نشته، زما خو خپل دے، ما ته ئې پته ده، فلانے راغلے وو، مسلمان شو نو دَ ښځې نه خلاص شو، ښځه ئې مړه شوه، بچي ئې مړهٔ شول، دَ فلانکي څاروي مړهٔ شول، دا دیر سپیرهٔ دین دے، چې څوک راغلي دي، دَ دې اولیاؤ آزار وهلي دي

نو هغهٔ بیا ښاده ورځ نهٔ ده موندلې. نو هغه به ئې پهٔ دې طریقه باندې یرولو. او کله به ئې ورته وئیل: چې ګوره! یَواځې به پاتې شې، دا عزت به دې ختم شي، دا مشرت به دې ختم شي او دا ټول خلق یَو څهٔ کوي، او تهٔ بل څهٔ کوې. هغې سړي به وئیل: یره! دے خو ښهٔ وائي؛ څکه غټ خلق خو دَ خلقو ډیر خیال ساتي، وائي: صبا به ووټ راکوي. بل کار به کوي. او چې کله به ئې یَو سړے کمزورے اولیدو، کمزورے به وو، عاجز به وو او بے وسه به وو نو دې ابو جهل ظالم به پهٔ خپله هم وهل، ټکول کول او بے عزته کولو به ئې، وائي: دا درته چا وئیلي دي: چې تهٔ دا خپل دین پریږدَوه او دَ دهٔ خبرې منه؟ او نورو ته به ئې هم وئیل: چې دے درنه سر اوچت نهٔ کړي. دَ ابو جهل خپله دا کار وو او نور چې څوک چا ته نزدې وو نو هغهٔ به خپل مسلمان رشته دار پهٔ آرام نهٔ پریښودو.

### دَ سیدنا عثمان بن عفّان ﷺ تکالیف

عثمان بن عفّان ﷺ جلیل القدر صحابي دے، خو ابتداء کښې هر یَو تکلیف تیر کړے دے، سیدنا عثمان ﷺ دَ دهٔ ترهٔ دَ دهٔ سخت دشمن شو، وائي: زما ورارهٔ دے او زهٔ به دَ دهٔ اصلاح کوم، هغه ته وائي: تا اسلام ولې راوړے دے؟ وائي: دَ اسلام نه واپس شه، سیدنا عثمان ﷺ چې نهٔ واپس کیدو نو هغه ترهٔ ئې دَ کجورو دَ پڼو نه یَو پوزکے جوړ کړے وو، دا سیدنا عثمان ﷺ به ئې دَ لاسونو نه اوتړلو او هغې کښې به ئې رابند کړو، لکه څنګه چې سړے پوړ راغوندَوي، پهٔ دې پوزي کښې به ئې سیدنا عثمان ﷺ رااونغښتو او بیا به ئې دَ دې لاندې طرف نه ورته لوګے راوړو، هغه به ئې ورته کیخودو او هغه ټول لوږے به پهٔ هغهٔ ورتلو، دَ سیدنا عثمان ﷺ دَ پوزې نه به اوبهٔ راروانې وې، دَ سترګو نه به ئې اوښکې راروانې وې. ډیر سخت مشکلاتو کښې به وو. وائي: دا لوګے به درته کوم چې ترڅو پورې تا پهٔ الله او پهٔ محمد رسول الله کفر نهٔ وي کړے. هغې خلقو دَ اسلام دپاره تکلیفونه برداشت کړي وو، هغې خلقو قربانئ ورکړې وې، نن څهٔ دي.

### دَ مصعب بن عمیر ﷺ تکالیف

مصعب بن عمیر ﷺ جلیل القدر صحابي دے، پهٔ صحابو ﷺ کښې ډیر لوئې مقام لري. خو چې مسلمان نهٔ وو نو یَو حیثیت ئې وو او چې کله مسلمان شو نو یَک دم ئې حیثیت بدل شو.

علماؤ ليکلي دي: چې سيدنا مصعب بن عمير ﷺ ډير نيازبين وو، او دَ خاندان نه مالداره هم وو، دَ دهٔ به سحر يَو جوړه وه نو ماښام به ئې بله جوړه وه، خائسته لباس، خائسته خوراک، خائسته ګرځيدل، دَ دهٔ سره دَ هر څهٔ سهولتونه ډير وو. کله چې سيدنا مصعب ﷺ ايمان راوړو نو دَ دهٔ مور وه، ډيره غټه ظالمه وه، هغې له څهٔ پته وه چې دا حق دين دے، هغې خو وئيل: زما ځوي بے دينه شو. لکه اوس هم دا خبره ده، خلق وائي: دا خراب شو. نو دَ دهٔ خپله مور خلاف شوه، او سيدنا مصعب ﷺ ته وائي: چې زما ځوي وې خو اوس زما ځوي نهٔ ئې، او تا باندې خو ما ډيره مينه کوله خو نن نه بعد به دا شے نهٔ وي، ډوډئ به ئې نهٔ ورکوله. وائي: څه! چې پهٔ چا دې ايمان راوړے دے، هغه ذې درله ډوډئ درکړي، اوبهٔ به ئې ورله نهٔ ورکولې. او ورته ئې وئيل: چې کور ته به نهٔ راځې، دا زما کور دے.

دَ کور نه ئې سيدنا مصعب ﷺ اوشړلو. مصعب ﷺ به نهر نهور ګرځيدو، دَ کور نه بهر به ئې شپې کولې. پهٔ ټولو خلقو کښې يَو خائسته هلک وو؛ ځکه چې هر څهٔ ډير وو، مالداره وو، مالداره خلق خائسته وي؛ ځکه هغوي له سهولتونه ډير وي. سيدنا مصعب ﷺ پهٔ يَو څو ورځو کښې دَ هغهٔ بدن داسې پړچونه اوغوړځول. دومره سخته او دومره تکليف سيدنا مصعب بن عمير ﷺ برداشت کړے وو. پهٔ يَو موقع باندې نبي ﷺ اوليدو چې يَو څادر دے وربانديې او پهٔ هغې کښې ګنړ پيوندونه لګيدلي وو، داسې څادر چرته هغهٔ پهٔ سر کړے نهٔ وو، خو دَ دين دَ قربانئ دپاره هغه بيا غريب وو، کمزورے وو، هغې کښې پيوندونه لګيدلي وو، دَ رسول الله ﷺ دَ سترګو نه اوښکې رواني شوې چې دَ مصعب ﷺ دا حالت ئې اوليدو. او چې وفات شو نو دا حالت وو: چې دومره څهٔ شے نهٔ وو چې هغهٔ له ئې پرې کفن برابر کړے وے، کهٔ سر به ئې ورته پټولو نو خپې به ئې ښکاره کيدې او کهٔ خپې به ئې پټولې نو سر به ئې ښکاره کيدو. دا تکليفونه هغوي برداشت کړي وو.

**دَ صهيب بن سنان الرومي ﷺ تکاليف**

صهيب بن سنان الرومي ﷺ دَ رسول الله ﷺ صحابي وو، دے کافرو نيولے وو، او تکليفونه

ئې ورکول، دومره وهل، دومره ټکول، دومره لوږې او تندې ئې پرې تېرې کړې وې چې سیدنا صهیب بن سنان الرومي ﷺ هغهٔ ته چې کومې خبرې یادې وې هغه ترې هم هېرې شوې وې. دَ ډېرو تکلیفونو دَ وجې نه کله کله دَ سرې دماغ کار پرېږدي. ډېرې داسې خبرې وې چې ورته یادې وې خو کله چې دَ هغوي دَ تکلیفونو نه آزادیدو او خلاصیدو نو هغهٔ اوونیل: چې ما نه اوس هغه خبرې هېرې دي، ما ته پته نشته دے.... پهٔ دې باندې هم نهٔ پوهیدو چې دا زهٔ څهٔ وایم. دومره وهل او ټکول او دومره بے عزتي دَ صهیب بن سنان الرومي ﷺ شوې وه.

**دَ سیدنا بلال ﷺ حالت**

سیدنا بلال حبشي ﷺ دا دَ اُمیه بن خلف غلام وو، امیه بن خلف دا دَ رسول الله ﷺ سخت دشمن وو، دے سیدنا بلال ﷺ ته وائي: تهٔ تلې نو زما پهٔ دشمن دې ایمان راوړو؟ چې زهٔ ستا مالک یم نو زهٔ ئې نهٔ منم او تهٔ وائې: دا پیغمبر دے، او الله رالیږلے دے او تهٔ پرې ایمان راوړې؟ نو بلال ﷺ خو غلام وو، دَ غلام به دَ مالک نه څوک تپوس کوي؟ نو بلال ﷺ ته ئې سخت تکلیفونه رسول. دَ دې وجې نه صاحب دَ "الرحیق المختوم" لیکلي دي:

"فَكَانَ أُمَيَّةُ يَضَعُ فِيْ عُنُقِهِ حَبْلاً، ثُمَّ يُسْلِمُهُ إِلَى الصِّبْيَانِ، يَطُوْفُوْنَ بِهِ فِيْ جِبَالِ مَكَّةَ، حَتَّى يَظْهَرَ أَثَرُ الْحَبْلِ فِيْ عُنُقِهِ".[1]

"امیه بن خلف ظالم هغهٔ به دَ سیدنا بلال ﷺ پهٔ غټ کښې رسئ واچوله او بیا به ئې سیدنا بلال ﷺ ماشومانو له پهٔ لاس کښې ورکړو، ماشومانو به لکه دَ خاروي نیولے وو او دَ مکې پهٔ غرونو او کوڅو کښې به ئې کرځولو، تر دې پورې چې دَ رسئ هغه اثر به ئې پهٔ غټ کښې ښکاره شو".

او امیه به وئیل: اوګورئ! دَ دهٔ نه عبرت واخلئ! څوک چې پهٔ محمد باندې ایمان راوړي نو دا به ئې حال وي.

او کله به چې بلال ﷺ نهٔ تلو نو "يَجُرُّوْنَهُ". "دوي به لکه دَ خاروو پهٔ شان راښکلو" تر دې

(1) انظر: "الرحیق المختوم": (78/1)، وأیضا: "المنهج الحرکي للسیرة النبویة": (58/1).

پورې چې دَ بلال ﷺ پهٔ دې خټ کښې به هغې رسئ او پرې نخښې جوړې کړې وې. هغه وخت کښې به څهٔ پرې وو؟ یا به ئې دَ خاروؤ دَ ویښتو نه جوړول، او یا به ئې دَ کجورو دَ پټو نه جوړول، چې هغه ټول زیک زیک وي. دَ سیدنا بلال ﷺ پهٔ خټ کښې با قاعده دَ هغې هغه نخښې جوړې شوې وې، دَ خټ نه ئې پرچونه (پټونه) لرې شوي وو.

باوجود دَ دې دومره سختو بلال ﷺ دَ دین نه واپس شوے نهٔ دے، بلکه دَ دې سختو باوجود به بلال ﷺ ته دومره خوند ورکولو چې دوي به چغې وهلې او دَ هغهٔ بے عزتي به ئې کوله او بلال ﷺ به پهٔ هغې حالت کښې چغې وهلې، چې: "أَحَدْ، أحدْ". اے خلقو! الله یک یو دے، الله یک یو دے. هغهٔ له به پهٔ دې "أحد، أحد" کښې یو لذت او یو خوند مِلاویدو. کله چې دَ یو سړي دَ چا سره مینه وي او هغهٔ پهٔ هغې تکلیف باندې دهٔ ته راحت او سکون مِلاویږي. او دا لا څهٔ کوې، امیه ظالم چې به راغے سیدنا بلال ﷺ ته به ئې لاس تړلي وو او امسا به ئې ورته اونیوله او پهٔ هغې باندې به ئې وهلو، کله به ئې داسې اوکړل چې (کوره! کله چې اوړے وي او سخته ګرمي وي نو سړي ته پته لګي او دَ عربو زمکې کاڼجنې زمکې دي، دا دَ نرو نرو کاڼرو دي، هغه کاڼري هم تور وي چې هغه ډیر سخت ګرمیږي) سیدنا بلال ﷺ به ئې پهٔ هغې سور نمر کښې پهٔ هغې ګرمو کاڼرو باندې کیښنولو، ډوډئ به ئې نهٔ ورکوله، اوبهٔ به ئې نهٔ ورکولې.....
دا آسان کار نهٔ وو، چې یو ئې وائي او بل ئې اوري، دا چې پهٔ چا باندې تیریږي نو دا پته هغهٔ ته لګي!، چې دا خلق واقعي پهٔ دین باندې څومره مئین وو.

کله کله به ئې داسې اوکړل چې سیدنا بلال ﷺ نه به ئې قمیص لرې کړو، دَ پاسه څادر به ئې ترې لرې کړو او بو به ئې تلو پهٔ هغې کاڼجنو کاڼرو دَ پاسه به ئې څملولو، چې پهٔ هغې سړے دَ پاسه دَ خپې تلي هم نهٔ شي کیخودلے دَ هغې هغه حرارت او ګرمائش دومره وي نو!!!. سیدنا بلال ﷺ به ئې دَ هغې د پاسه څملولو بیا به ئې غټه ګټه راوړه او دَ بلال پهٔ سینه به ئې کیخوده او بلال ﷺ ته به ئې اووئیل: چې خوزې به نهٔ، دغسې به پروت ئې. او وئیل: به ئې چې اے بلاله!
"لَا وَاللهِ! لَا تَزَالُ هَكَذَا حَتَّى تَمُوتَ، أَوْ تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ، وَتَعْبُدَ اللَّاتَ وَالْعُزَّى".

"زما دې په الله قسم وي! چې اے بلاله! دَ دې سزا نه نهٔ شې خلاصیدے، هله به خلاصیږې چې یا مړ شې او یا په نبي ﷺ باندې کفر اوکړې، او دَ لات، او دَ عزّی عبادت شروع کړې".

نو بلال ﷺ ته به ئې وئیل: دَ خلاصیدو دې دوه لارې دي، چې مړ شې نو مونږه به دې اوغورځوؤ او مونږه به درنه خلاص شو او کهٔ ژوندے ئې نو هله به دې پریږدو چې محمد باندې کفر اوکړې، دے چې څهٔ وائي نو دا به نهٔ منې، او چې دَ لات، منات او عزّی عبادت شروع کړې.

سیدنا بلال ﷺ به وئیل: چې مړ شوم خو شهید به مړ یم خو چې تر څو پورې ژوندے یم نو کفر به اونهٔ کړم. بلال ﷺ به ډیر ستړے شو، ډیر به تنګ شو نو چې نور آواز ئې نهٔ ختلو نو صرف دا یَو آواز به ئې کولو:

"أَحَدٌ أَحَدٌ".(1)

"الله یک یَو دے، الله یک یَو دے".

نورې خبرې به ئې پریخودې؛ څکه کهٔ وئیل ئې چې اوبهٔ راوړئ خو چا نهٔ راوړې، کهٔ وئیل: چې ډوډئ راوړئ نو چا نهٔ راوړه، کهٔ وئیل ئې چې: کرمي ډیره ده نو چا ئې نهٔ منل، پهٔ دې حالت کښې هم بلال ﷺ دَ الله نوم یادَوي. "أَحَدٌ أَحَدٌ" او دې کافرو ته ئې اوکتل وائي: بے وسه یم، ستاسو پهٔ لاسونو کښې یم، زهٔ څهٔ کولے نهٔ شم خو صرف تاسو سوزوم. تاسو ما پهٔ دې سوزَوئ چې ما پهٔ کانړو واچوئ، زما دَ سینې د پاسه درنې ګټې کیږدئ، ما پهٔ دې سوزَوئ چې ما باندې ډوډئ بندَوئ او ما له وهل او تکول راکوئ او زهٔ به تاسو پهٔ دې باندې سوزوم چې "أَحَدٌ أَحَدٌ"، الله یک یَو دے، الله یک یَو دے.

سیدنا بلال ﷺ به هغوي له پهٔ دې خبره زور ورکولو او ورته به ئې وئیل:

«لَوْ أَعْلَمُ كَلِمَةً هِيَ أَغْيَظُ لَكُمْ مِنْهَا لَقُلْتُهَا».(2)

"اے کافرو! کهٔ ما ته بله یَوه داسې کلمه معلومه وه چې پهٔ هغې تاسو دَ دې نه ډیر زیات

---

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (318/1).

(2) انظر: "السيرة النبوية على ضوء القرآن والسنة" لمحمد بن محمد بن سويلم أبي شُهبة: (343/1).

غصه کیږئ نو ما به هغه وئیلي وه"، خو ما ته پته ده چې تاسو ډیر سوَزئ نو په دې کلمه سوَزئ نو دا څکه بار بار وایم.

داسې تکلیفونه ئې برداشت کړي دي، نو ولې به دَ بلال ﷺ دَ خپو کشار رسول الله ﷺ په جنت کښې نهٔ اوریدو!.

**دَ ابو بکر ﷺ صدیق دَ بلال ﷺ آزادول**

سیدنا ابو بکر صدیق ﷺ صحابه کرامو ﷺ کښې ډیر جلیل القدر صحابي دے. پهٔ لار باندې روان وو، چې اوئې کتل سیدنا بلال ﷺ دې خپل مالک امیه بن خلف را حصار کړے دے او سزاګانې ورکوي، ابو بکر ﷺ چې اوکتل، برداشت ئې اونهٔ کړے شو، ابو بکر ﷺ اووئیل: کهٔ هر څهٔ دي خو دا بلال ﷺ به دَ دې غلامئ نه آزادوم. ابو بکر صدیق ﷺ پهٔ اووهٔ (۷) یا پنځهٔ (۵) اَوقیو (اَوقِیه: دا دَ سپینو زرو یَو وزن دے) باندې ئې هغه واغستو.

ابو بکر ﷺ امیه ته وائي: تهٔ پهٔ دهٔ باندې څهٔ کوې، کار نهٔ کوي، کسب نهٔ کوي، نور دې هم دَ دهٔ دَ وجې دَ کار نه ایستلي دي، چې دهٔ له وهل او تکول ورکوې؟ بس پریږدَوه، خرڅ ئې کړه. امیه لالچي وو، وائي: پیسې راکړه او بوځه ئې. ابو بکر ﷺ ترې واغستو او بیا ئې دَ غلامئ نه آزاد کړو، وائي: ځه! دَ الله دَ رضاء دپاره آزاد ئې، او دَ خپل ربّ عبادت کوه. سیدنا بلال ﷺ دَ تکلیفونو نه هله آزاد شوے دے چې ابو بکر ﷺ پهٔ پیسو واغستو او آزاد ئې کړو.

**دَ عمار بن یاسر ﷺ تکالیف**

عمار بن یاسر ﷺ دا دَ رسول الله ﷺ صحابي دے. دا غلام وو دَ بنو مخزوم قبیلې، او نا آشنا دِ وَه: چې دا درې کسان پهٔ یَو وخت کښې مسلمانان شول: (۱) دَ دهٔ پلار، (۲) دے پهٔ خپله باندې او (۳) دَ دهٔ مور. مشرکانو به دوي ته ډیر تکلیفونه رسول. هغه وخت کښې دَ دوي مشر ابو جهل لعین وو. سیدنا عمار، سیدنا یاسر او مور ئې دې دریهٔ واړو له به ئې تکلیفونه رسول. دَ مکې هغې کاڼرجنې زمکې ته به ئې اوباسل، دَ مکې هغه تور کاڼري چې به ښهٔ ګرم شول، او هغه

کاړجنه زمکه به بنۀ ګرمه شوه نو پۀ هغې به ئې څملول او سزاګانې به ئې ورکولې، دَ الله نبي ﷺ يَو ځل پۀ لاره تيريدو او دا درې واړه (پلار، ځوي او مور) دَ کافرانو پۀ لاس کښې دي او ډير سخت پۀ تکليف کښې دي، دَ الله دَ نبي ﷺ وس نۀ کيدو چې دَ دې کافرانو نه ئې خلاص کړے وے. دَ الله نبي ﷺ ورله تسلي ورکوي او ورته وائي:

"صَبْرًا آلَ يَاسِرٍ! فَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْجَنَّةُ".(1)

"اے دَ ياسر خاندانه! تکليف برداشت کوئ، صبر کوئ او کله چې تاسو صبر اوکړئ نو ستاسو دَ وعدې ځائے جنت دے"، الله رب العزة به تاسو له جنت درکوي.

تکليف ئې برداشت کړو، ياسر ﷺ کمزورے وو، ضعيف وو، پۀ وهلو ټکولو هغه وفات شو. دَ کافرو پۀ لاس کښې شهيد شو.

## دَسميه ﷺ تکاليف

سيده سميه ﷺ چې دَ ياسر ﷺ بي بي وه. ابو جهل لعين نيزه را واغسته او سميه ﷺ ئې پۀ شرمګاه کښې پۀ نيزه باندې اووهله، وائي: تا ځکه ايمان راوړے دے چې نبي سره دې چرته خائسته خلق ليدلي دي. نعوذ بالله! هغه دَ هغې نه شهيده شوه او لاړه. پۀ زنانؤ کښې دَ ټولو نه رومبنۍ شهيده سميه ﷺ وه. پلار شهيد شو، مور شهيده شوه، يَو سيدنا عمّار ﷺ پاتې شو.

## دَسيدنا عمّار ﷺ تکاليف

يَو ځل ورته کافرانو ډير سخت تکليفونه اورسول، ډير زيات ئې تنګ کړو او ورته ئې اووئيل: چرته دې پريږدو، پريخودل دې نشته دے، لکه څنګه مو چې درله پلار مړ کړو، لکه څنګه چې مو درله مور مړه کړه نو ستا هم دغه شان حشر دے. هله به دې پريږدو چې تۀ دَ الله پيغمبر (ﷺ) ته کنځلې اوکړې او زمونږه دَ خدايانو دَ لات او منات لږ صفت اوکړې. سيدنا عمّار ﷺ سوچ اوکړو: چې څۀ اوکړم؟... خو بعضې خبرې دَ مجبورئ نه اوشي. سيدنا عمّار ﷺ دَ الله پيغمبر ﷺ پسې کنځلې اوکړې او دَ هغوي دَ خدايانو ئې مدحه او صفتونه اوکړل. هغوي پريخودو چې څۀ! اوس به

1) انظر: "سيرة ابن هشام": (279/1).

مونږه خلقو ته وايو: چې څنګه؟ پيغمبر له مو پرې درله کنځلې اوکړې او که نه! او دَ خپلو خدايانو صفتونه مو پرې اوکړل.

عمّار ﷛ راغے، دَ الله پيغمبر ﷺ ته په ژړا شو ورته وائي: يا رسول الله! ما تاسو پسې کنځل کړي دي، او ما دَ دې مشرکانو دَ خدايانو صفتونه کړي دي خو زما دَ زړهٔ نه يَو الله خبر وو، ما صرف په خُلهٔ باندې وئيلي دي او زړهٔ زما مطمئن وو په ايمان باندې. نبي ﷺ ورته اووئيل: زړهٔ دې مطمئن وو؟ وائي: آو!، وائي: پروا به نهٔ کوې که بيا درته هم وائي او وهي او تکوي دې او وژني دې نو دَ مرګ نه دَ ځان خلاصولو دپاره داسې وئيلے شې. الله رب العزة دَ قرآن آيت راليږي:

﴿مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾.[1]

"چا چې کفر اوکړو پس دَ ايمان نه (نو دا جهنمي دے، دهٔ له به الله سزا ورکوي)، هان! يَو سړے مؤمن دے، هغهٔ باندې چا زور اوکړو (چې مړ کوم دې ته به دَ کفر کلمه وائي، نو که دے نهٔ وائي نو وژني ئې نو که دے دَ خپل ځان دَ حفاظت دپاره صرف په خُلهٔ باندې دَ کفر کلمه اووائي) او زړهٔ ئې مطمئن دے په ايمان باندې نو دَ دهٔ دپاره دا دَ کفر کلمه وئيل جائز دي".

نو په دې واقعه کښې الله دا آيت راوليږلو.

### دَابوفکيهه ﷛ تکاليف

ابو فُکيهه دَ دهٔ نوم دے، دے غلام وو دَ عبد الدار قبيلې. دے چې کله مسلمان شو نو دے به خپلو مالکانو را اوباسلو، سخته ګرمي به وه، او دهٔ له به ئې په خپو کښې زنځيرونه اچولي وو، او جامې به ئې ترې لرې کړې او په سرو غرمو کښې به ئې هغه سور نمر ته کېښنولو او بيا به ئې ورله په شاه باندې کټه هم کيخوده چې خوزې به نهٔ. هغه غريب به دومره پريشانه شو چې آخر کښې به ئې دماغو کار پريخودو بيا به نهٔ پوهيدو چې دا دوي ما ته څهٔ وائي او زهٔ څهٔ کوم؟ دې ټولو ته داسې سزاګانې مِلاؤ شوې وې. دا صحابي بيا لا ړو او حبشې ته ئې هجرت اوکړو. يَو ځل ورته دوي په خپه کښې رسۍ اچولې وه، څنګه چې سړے يَو شے راکاږي داسې ئې په زمکه باندې

(1) [سورة النحل: 106].

راخکلو. دا خو دَ انسان نازکه څرمن ده، هغه په کانړو کښې راکاږه نو ته اندازه اولګوه چې دَ هغهٔ دَ بدن نه به څومره پوستکې لرې شوي وي!، څومره درد به هغهٔ ته رسیدلے وي. په سختو ګرمو شګو کښې به ئې اوغورځولو او پړے به ئې راوړو او مرئ ته به ئې ورله واچولو او پانسي به ئې کړو. دَ دوي به خپله دا خیال وو: چې دے مړ شو، ختم شو، دَ هغهٔ دَ بدن نه ساه اووته. چې دوي پرېخودو او دوي ترې را روان شول نو دے رو رو الله پاک ښهٔ کولو، بیا را پاسیدو او را روان شو.

نو دوي په خپل ذهن کښې هغه وژلے وو، ابو بکر ﷺ په لاره باندې تیریدو نو دَ هغهٔ زړهٔ پرې درد اوکړو نو هغهٔ دے هم په پیسو باندې واغستو او آزاد ئې کړو.

**دَ سیدنا خباب بن ارت ﷺ حالت**

سیدنا خباب بن ارت ﷺ دا هم دَ نبي ﷺ صحابي وو. دا خباب ﷺ چې وو نو دے لوهار وو. پیسې به ئې ګټلې، او مالکې (یعني دَ یوې زنانه غلام وو) له به ئې ورکولې. سیدنا خباب چې کله مسلمان شو نو دې خپلې مالکې به دهٔ له سزاګانې ورکولې، او مالکه ئې دومره ظالمه ښځه وه چې (دے خو چونکه لوهار وو) اوسپنه به ئې ورله په اُور کښې ګرمه کړه او هغهٔ له به ئې په سر او په مَلا باندې داغونه ورکول، وائې: ته کافر کیږې او که نه؟ تا درد نهٔ دے لیدلے. دا درد هم ډیر وو، خو بل طرف له دَ ایمان مزه دومره ډیره وه چې دا دردونه ئې برداشت کول خو کفر ئې نهٔ قبلولو. او کله به ئې داسې اوکړل چې خباب ﷺ به ئې څملولو او په زمکه به ئې سکروټې خورې کړې وې او دَ دهٔ نه به ئې قمیص ایستلے وو او دَ هغې د پاسه به ئې خباب ﷺ واچولو. هغه سکروټې دَ خباب ﷺ دَ بدن نه به چې کومې اوبهٔ روانې شوې، هغه وینې زوې روانې شوې نو په هغې باندې به مړې شوې. خو با وجود دَ دې خباب ﷺ دَ دین نه روستو شوے نهٔ وو. مَلا دَ خباب ﷺ توله چاپونه چاپونه وه، توله تکه توره وه دَ ډیرو سوزیدو دَ وجې نه خو سیدنا خباب بن ارت ﷺ هغه روستو شوے دَ دین نه نهٔ دے.

**دَ زنیره ﷺ تکالیف**

زنیره ﷺ دا هم یو زنانه وه، او دا وینزه وه، دې اسلام قبول کړے وو، دې له به ئې تکلیفونه ورکول. دَ الله امتحان دے، کله کله دَ خپل طرف په بنده باندې امتحانات راولي. زنیره ﷺ چې

مسلمانه شوه نو دَ دې دواړه سترګې ړندې شوې، دَ سترګو نظر ئې ختم شو. نو کافرانو اووئیل: اوس پرې لات او منات اولګیدل، زمونږه خدایانو ورته څنګه نظر ختم کړو؟ زنیره رضي الله عنها دا دومره دَ مضبوطې عقیدې والا وه، هغې اووئیل: زما سترګې لات، منات نهٔ دي ړندې کړي، زما نظر زما نه زما الله اغستے دے، او دا دَ الله دَ طرف نه پهٔ ما باندې امتحان دے، دا تکلیف ذے او کهٔ الله اوغواړي نو الله به بیا زما دا سترګې روغې کړي. دَ الله رب العزة نه ئې دعاء غوښته چې سحر پاسیده نو بیا ئې الله سترګې روغې کړې وې. دې کافرانو چې نور برداشت اونهٔ کړے شو وائي: دا محمد ساحر دے، هغهٔ پرې ورله څهٔ جادو اچولے دے، سترګې ئې بیا روغې شوې، کني زمونږه خدایانو خو ورله سترګې ړندې کړې وې.

## دَام عُمیس رضي الله عنها تکالیف

ام عُمیس رضي الله عنها دا هم وینزه وه دَ بني زهره قبیلې، مشرکانو به دې له تکلیفونه ورکول، خاص کر دَ دې هغه مالک اسود بن ابي یغوث هغهٔ به سزاګانې ورکولې او دا دَ رسول الله ﷺ سخت دشمن وو. ذا وینزه ئې پهٔ تکلیف کړې وه.

## دَ یوې بلې وینزې تکالیف

دارنګې یَو وینزه وه دَ عمرو بن مؤمّل دَ بني عدي قبیلې، سیدنا عمر رضي الله عنه لا پهٔ هغه وخت کښې مسلمان شوے نهٔ وو، عمر رضي الله عنه به دې ته تکلیف رسولو، وهله به ئې، تکوله به ئې. چې کله به عمر رضي الله عنه ستړے شو، دا به ئې زرهٔ کښې نهٔ راتلل چې دا به خوږیږي، نور به عمر پهٔ وهلو ستړے شو نو لا به رلو، کښیښناستو. دې به آواز ورکړو: وهه!، څنګه چې تهٔ نن ما وهي او تهٔ ستړے شې او زما نه واپس شې دغسې به زما دَ ربّ فرشتې تر څو پورې ستړې شوي نهٔ دي ستا نه به نهٔ واپس کیږي، فرشتې به تا له سزا درکوي.

## دَابوبکر صدیق رضي الله عنه دَ دې خلقو اغستل او آزادول

داسې دیر خلق وو، دا ټول غلامان او وینزې وې، غریبانان خلق وو، ابو بکر صدیق رضي الله عنه به لاړو او دا به ئې پهٔ پیسو باندې واغستل بیا به ئې آزاد کړل. نو دَ ابو بکر رضي الله عنه پلار ابو قحافه، دے

هغې وخت کښې مسلمان نهٔ وو، او نهٔ پهٔ دې خبرو پوهېدو، ابو بکر ﷺ ته وائي: ابو بکره! هسې دې پیسې خرابې کړې، چرته غریبانان خلق ګورنې، وینزې ګورې، غلامان ګورې، چرته تکړه خلق به دې آزاد کړي وو نو څوک چې دَ چا سره احسان اوکړي نو هغه نهٔ هېرَوي. نو کهٔ صبا درباندې چرته څهٔ مشکل راتلے نو دا ټول به تا سره ولاړ وے، دشمن له به درسره یَو وے، ځان له به دې متې مضبوطې کړې وې. نو تا هغه خلق پهٔ پیسو باندې واغستل چې هغه ټول کمزوري دي، دا دې څهٔ چل اوکړو؟

ابو بکر ﷺ ورته وائي: پلاره! دا ما دَ متو دَ مضبوطیدو دپاره نهٔ دي اغستي، چې دا به کښي زما سره دَ دشمن مقابلې ته اودریږي، بلکه "إنيِّ إنمَّا أُرِيدُ مَا أُرِيدُ، لِلّهِ عَزَّ وَجَلَّ".[1] "یقینًا زهٔ اراده لرمه هغه چې زهٔ ئې اراده کوم نو خاص دَ الله تعالیٰ دَ رضاء دپاره زهٔ دا کار کوم".

نو ابو بکر ﷺ پلار ته وائي: زهٔ دَ الله خوشحالول غواړم، دَ الله رضاء دا زما دپاره هر څهٔ دي. علماء کرامو لیکلي دي: الله رب العزة آیت راولیږلو، هغه کافران چې هغوي به سزا ورکوله نو دَ هغوي پهٔ باره کښې الله سزا رااولیږله. او دَ ابو بکر ﷺ باره کښې وائي:

﴿وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى * الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى * وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ مِنْ نِعْمَةٍ تُجْزَى * إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْأَعْلَى * وَلَسَوْفَ يَرْضَى *﴾.[2]

"زر دے چې بچ به شي دَ دې اُور نه هغه سړے چې هغه ډیر زیات پرهیزګاره دے، هغه سړے چې خپل مال دَ دې دپاره لګوي چې ځان پاک کړي، نشته دے دَ یَو تن پهٔ دهٔ باندې څهٔ احسان چې دَ هغې بدله ورکولے شي (دَ چا پرې څهٔ احسان هم نشته دے)، مګر دَ دې دپاره خرج کوي چې خپل ربّ رضاء کړي چې اوچت ذات دے هغهٔ، او زر دے چې دے به خوشحاله کړے شي (مطلب: دهٔ له به الله دَ دې عمل بدلې او فائدې ورکړې)".

نو دا دویمه طریقه وه دَ کافرانو (خو ما اختصار سره ذکر کړه) چې خلق دَ دین نه واړَوي، او

---

(1) انظر: "اللؤلو المكنون في سيرة النبي المأمون" لموسى بن راشد العازمي: (275/1).

(2) [سورة الليل: 17-21].

منکر ئې کړي. يره! څنګه مسلمان شم، دے مې وهي، دے مې تکوي، دے مې بے عزتي کوي، دے مې دَ کلي نه اوباسي، دوي را باندې هر څۀ بندَوي. نو وائي: کۀ پۀ دې طريقه باندې دا خلق واپس شول نو ډيره به ښۀ وي. خو پۀ دې طريقې باندې هم کامياب نۀ شول. چې څومره به دوي خلقو له تکليفونه ورکول دومره به خلق ډلې ډلې راتلل او پۀ دين کښې به داخليدل. دَ دين اسلام خپله يَو، مزه ده، پۀ دې کښې واللهِ چې تکليف به تا له دَ سهولت او دَ راحت او دَ مزو نه ډير زيات خوند د، کوي. ان شاء الله وريسې به نور سيرت راځي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِينْ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه څوارلسمه

## "دَ صحابه کرامو ﷺ حبشې ته هجرت"

بتاريخ: 2022-05-20

مقام: جلسې

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه څوارلسمه

# "دَ صحابه كرامو ﵃ حبشې ته هجرت"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُوْلِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُو اللهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللهَ كَثِيْرًا﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! په تيرو جُمعو كښې دَ رسول الله ﷺ دَ سيرت څهٔ حصه ستاسو مخكښې بيانِ شوې وه. دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت زندګۍ دَ هغې بيان شروع وو. دَ رسول الله ﷺ دَ دعوت طريقه مونږه بيان كړې وه، چې اولنې درې (٣) كاله دَ الله نبي ﷺ پټ دعوت چلولو، فردًا فردًا او ځان له ځان له يو يو كس له به ئې بيان كولو، بيا رو رو نبي ﷺ جهرًا او ښكاره دعوت شروع كړو. بل خوا كافرانو او مشركينو به هم نبي ﷺ او دَ هغهٔ صحابۆ ﵃ ته قسم ما قسم تكليفونه رسول، دَ هغې تكليفونو څهٔ لږې لږې نقشې مونږ بيان كړې وې.

**دَ نبي ﷺ صحابه كرامو ﵃ ته دَ هجرت مشوره وركول**

چې كله كافرانو مسلمانانو له ضررونه رسول سېوا كړل، مسلمانان دَ هغوي نه پريشانه او تنګ راغلل نو رسول الله ﷺ صحابه كرامو ﵃ ته دَ هجرت كولو مشوره وركړه چې اوس كلے پريږدئ، وطن پريږدئ، او دَ دې مكې نه مهاجر شئ.

(1) [سورة الأحزاب: 21].

عبد الرزّاق دَ مَعْمَر نه او هغه دَ امام زهري رحمه الله نه نقل کوي: چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل:
«تَفَرَّقُوْا فِي الْأَرْضِ، فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى سَيَجْمَعُكُمْ».

صحابه کرامو! دا وخت سخت دے، دا ملک پريږدئ، "او دَ الله په دې زمکه کښې خوارۀ شئ (او دَ ربّ عبادت کوئ) ان شاء الله الله رب العزة به يَو ځل تاسو ټول را غونډ کړي"، آخر کښې به تاسو له الله نمبر درکړي، فتح به درکړي.

"قَالُوا: فَأَيْنَ نَذْهَبُ يَا رَسُولَ اللهِ؟".

"صحابه کرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل: اے دَ الله نبي! کوم طرف ته به ځو؟"، کوم طرف ته تلل به مناسب وي؟، ځکه ټوله دنيا کښې کافر وو.

قَالَ: «هَاهُنَا» وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى أَرْضِ الْحَبَشَةِ".[1]

"نبي ﷺ اوفرمائيل: دېخوا ځئ، او اشاره ئې په لاس باندې اوکړه دَ حبشې زمکې طرف ته"، چې حبشې ته هجرت اوکړئ او هلته کښې ورشئ.

دَ حبشې بادشاه نرم دِله سړے وو، او ښۀ سړي باندې مشهور وو نو نبي ﷺ ځکه اشاره اوکړه چې حبشې ته ځئ.

صحابه کرام رضي الله عنهم مهاجرين شول. او حبشې طرف ته ئې هجرت شروع کړو پنځم کال وو دَ نبوّت دَ نبي ﷺ.

حبشې ته صحابه کرام رضي الله عنهم دوه (۲) ځله مهاجر شوي دي:

(۱) پۀ اول ځل باندې تقريبًا يوؤلس (۱۱) صحابه رضي الله عنهم او دَ هغوي سره پنځۀ (۵) زنانه وې، چې ټول شپاړلس (۱۶) کسان جوړيدل، دا مهاجر شول او دا اولني مهاجرين وو چې دَ الله تعالىٰ دَ رضاء دپاره ئې خپل کلے او وطن پرېخودے وو.

**مهاجرين سړي**

(۱) پۀ سړو کښې يَو عثمان بن عفان رضي الله عنه وو، (۲) دويم: عبد الرحمٰن بن عوف رضي الله عنه وو، (۳)

---

(1) انظر: "عيون الأثر": (115/1).

دريم: زبير بن العوام ﷛ وو، (٤) څلورم: ابو حذيفه بن عتبه ﷛ وو، (٥) پنځم: مصعب بن عمير ﷛ وو، (٦) ابو سلمه بن عبد الاسد ﷛ وو، (٧) اووم: عثمان بن مظعون ﷛ وو، (٨) اتم: عامر بن ربيعه ﷛ وو، (٩) نهم: سهيل بن بيضا ﷛ وو، (١٠) ابو سبره بن ابي رُهم عامري ﷛ وو، (١١) يَوولسم: حاطب بن عَمرو ﷛ وو.[1]

**مهاجريني زنانه**

(١) يَو پهٔ زنانؤ کښې دَ رسول الله ﷺ لور "سيده رقيه ﷞" وه، چې دا دَ عثمان بن عفان ﷛ بي بي وه، (٢) دويمه: سهله بنتِ سهيل ﷞، دا دَ ابو حذيفه ﷛ بي بي وه، (٣) دريمه: ام سلمه بنت ابي اميه ﷞، چې دا دَ ابو سلمه ﷛ بي بي وه، او چې ابو سلمه ﷛ وفات شو نو دَ هغهٔ نه بعد دا بيا دَ نبي ﷺ پهٔ نکاح کښې راغلې وه، (٤) څلورمه: ليلٰى بنتِ ابي حثمه ﷞، دا دَ عامر بن ربيعه ﷛ بي بي وه، (٥) کلثوم بنتِ سهيل بن عمرو ﷞، دا دَ ابو سبره ﷛ بي بي وه.[2]

او دا اولني مهاجرين وو، چا پکښې نومونه بدل هم ليکلي دي، خو اصحّ قول پکښې دا دے. دا يَوولس (١١) سړي او پنځهٔ (٥) زنانه وې. دوي پټ روان شول او دَ الله دَ رضاء دپاره تلل، مهاجر شول.

**دَ کافرانو صحابوؓ پسې روانيدل**

دَ الله ربُ العزة احسان وو، دوي چې روان شول نو کافرانو ته پته اولګيده، چې دوي اوځي او تختي. کافران دَ دوي دَ نيولو پسې روان شول. الله رب العزة دا احسان اوکړو چې کله دوي دَ سمندر غاړې ته اورسيدل نو دوه کشتۍ تيارې ولاړې وې، څهٔ سورلۍ پکښې ناستې هم وې. چې دوي اورسيدل نو وائي: چرته ځئ؟ وائي: مونږه حبشې ته ځو، کشتو والا اووئيل: کار اوشو، دوي ئې سوارهٔ کړل او کشتۍ روانې شوې. کافران چې اورسيدل نو نورې کشتۍ بيا نهٔ وې نو هغوي اووئيل: اوس سمندر دے او مونږ پهٔ څهٔ پورې کيدے نهٔ شو او کشتۍ تلې دي. نو هغوي دَ

(1) انظر: "سيرة المصطفٰى": (226-227).

(2) انظر: "سيرة المصطفٰى": (226-227).

هغه ځائے نه را واپس شول. صحابه کرام ﷺ الله رب العزة دَ کافرانو دَ تکلیفونو نه خلاص کړل او حبشې ته لاړل.[1]

## حبشه کښې دَ وخت دَ تیریدو موده

کله چې دوي حبشې ته لاړل، دوي تقریبًا دَ رجب نه تر شوّال پورې دا درې (۳) میاشتې یا درې نیمې میاشتې دوي پۀ حبشه کښې مسافرې اوکړه، هلته کښې اوسیدل. چونکه هغه زمانه کښې نۀ ټیلیفون وو، نۀ داسې نورې طریقې وې، او چونکه دَ دوي کار هم دَ تکلیف وو چې پۀ پته باندې اوسیدل، نو دې کښې چا هسې یَو خبره اوکړه چې مکه فتح شوې ده او دَ مکې خلق مسلمانان شوي دي، او اوس مسلمانانو ته څۀ تکلیف نشته دے. دوي ته پته نۀ وه، دوي وئیل: چې مکه کښې امن راغلے دے، نو مونږ خو دَ دې نه تختیدلي وو چې کافرانو را ته تکلیف رسولو. نو دوي خپله کښې مشوره اوکړه: چې راځئ! چې واپس خپل کلي ته لاړ شو او اوس څوک چا ته څۀ وائي نۀ او ټول خلق مسلمانان شوي دي.

چې واپس راغلل، دا خبره چا دروغ خوره کړې وه، او حقیقت داسې نۀ وو، بیا هغه زوړ کار وو، تکلیف او مشکلات وو، څۀ هلته کښې پټ شول، چا سره ئې پناه واغسته او څۀ یَو خوا بل خوا لاړل. خو امن لا پۀ مکه کښې نۀ وو.[2]

دا اولنې مهاجر وو، یَوولس صحابه کرام ﷺ او پنځۀ صحابیاتې چې دوي تلې وو او پۀ حبشه کښې دَ رجب نه تر شوال پورې پاتې وو.

## دَ مشرکانو تکلیفونه سیوا کول

بیا دَ هغې نه مشرکانو سېوا تکلیفونه شروع کړل، وهل ټکول وو، دَ کورونو نه اوباسل وو، بے عزتیانې وې، صحابه کرامو ﷺ بیا نبي ﷺ ته اوفرمائیل: چې ژوند کران دے، څنګه چل اوکړو؟ نبي ﷺ مشوره ورکړه: چې ځئ! هجرت اوکړئ. پۀ دویم ځل باندې بیا صحابه کرام ﷺ مهاجر شو. تقریبًا څۀ دوه اتیا (۸۲) سړي او څوارلس (۱٤) زنانه وې. هغوي بیا حبشې ته لاړل.

(1) انظر: "عیون الأثر": (116/1).

(2) انظر: "سیرة المصطفی": (227/1).

شیخ الحدیث مولانا ادریس کاندهلوي ﷫ هغهٔ دَ دې ټولو نومونه مختصرًا لیکلي دي، "سیرتِ ابن هشام" هم لیکلي دي، او دَ دوي هغه تفصیل ئې هم کړے دے، خو کهٔ هغه بیانوؤ نو وخت به ډیر لګي. دا دومره صحابه کرام ﷢ دوي پهٔ دوباره باندې مهاجر شول، او حبشې ته بیا لاړل.

## دَ کافرانو دَ صحابه کرامو ﷢ پسې حبشې ته تلل

چې دوي لاړل نو کافرانو سوچ اوکړو: چې یره! پهٔ دوي باندې مونږه زور راولو نو دوي پټ شي نو دوي به پهٔ حبشه کښې ځان مضبوط کړي او بیا بهٔ راځي او مونږ سره به جنګیږي او مونږه باندې به حملې کوي، راځئ! چې لاړ شو او دَ آرام دا زندګي ورله بے آرامه کړو. دَ حبشې بادشاه ته به درخواست ورکړو، دوي به ترې راولو او دلته به ئې بیا خپل غلامان کړو او وهو او ټکوؤ به ئې، دَ دین نه به ئې پهٔ زوره باندې اړوؤ. پهٔ دوي کښې دوه کسان ډیر مشهور وو پهٔ چالاکئ او خبرو کښې: (۱) یَو: عَمرو بن العاص او (۲) دویم عبد الله بن ابي ربیعه. دوي دواړو ته ئې اووئیل: چې تاسو دواړه زمونږه نمائنده ګان شئ، نور کسان ورسره هم وو، خو مشران ئې دوي وو. او لاړ شئ دَ حبشې بادشاه ته اووایئ چې دا کسان زمونږ نه راتختیدلي دي، او دا بے دینه خلق دے، او ستا پهٔ ملک کښې ئې پناه اغستې ده. دوي پسې مونږه راغلي یُو، او دوي مونږ له واپس راکړئ. ځان سره ئې ډیرې تحفې اغستې دي چې بادشاه له به دا ورکړو، نو بادشاه به زمونږه خبره ډیره ښهٔ اومني. دَ بادشاه سره بعضې خواص خلق چې وو هغه ئې هم دَ ځان سره ملګري کړل، هغوي له ئې هم تحفې یوړې، هغوي ورته اووئیل: چې بے غمه شئ، بادشاه ته به مونږه اووایُو، او دا ټول به تاسو ته حواله کوي.

## بادشاه سره ملاقات

دوي لاړل او بادشاه ته وائي: چې زمونږ دَ مکې څهٔ کم عقل خلق دي، هغوي څهٔ نوے دین اختیار کړے دے، دَ پلار نیکهٔ طریقې ئې پرېخودې دي، مونږه تا له دَ دې دپاره راغلي یُو، چې مونږه ئې پیژنو، زمونږ دَ کلي خلق دے، زمونږه دَ وطن خلق دے مونږه ته معلوم دي، او تاسو ئې نهٔ پیژنئ، دوي به ستاسو پهٔ دې ملک کښې لوئي شر او فساد پیدا کړي او ستاسو دا خلق به بے دینه کړي؛ لِهٰذا دوي مونږ ته حواله کړئ نو مونږ به ئې دَ ځان سره واپس بوځو. هغه بادشاه ته هغې

درباریانو اووئیل: یره جي! دا خبره صحیح ده، ذَ بل ځائے نه راغلي خلق دے، دَ دوي څۀ پته لګي، مونږه ئې دومره نۀ پيژنو لکه دا دَ مکې خلق ئې چې څنګه پیژني، دا ورته تول واپس کړه.[1]

## دَ نجاشي بادشاه تحقیق کول

نجاشي ډير اوښيار بادشاه وو. دَ حبشې هر بادشاه چې وو، هغۀ له به ئې "نجّاشي" وئيلو. هغۀ ورته اووئيل: داسې کله کيدے شي، زۀ کله هم بے تحقيقه فيصله نۀ شم کولے، چې زما پۀ وطن کښې چا پناه غوښتې وي څنګه ئې زۀ بے تحقيقه تاسو ته حواله کړم، او تاسو سره ئې واپس اوليږم؟ داسې زۀ ليږلو ته تيار نۀ يم. دوي زۀ را غواړم. او دوي دا زور لګوي چې را اوئې نۀ غواړي نو ښۀ به وي. ولې؟؛ دوي ته پته وه چې کله مونږه او هغوي مخامخ شو نو دې مسلمانانو ته الله داسې يَو حکمت او داسې يَو کمال ورکړے دے چې کله دوي هم خبره کوي او مونږه هم خبره کوؤ نو زمونږه خبره بيا څوک دَ سره څۀ نۀ ګڼري او دَ دوي خبره دَ خلقو پۀ زړونو کښې لاړې کوي، نو کۀ بادشاه ئې حاضر کړي نو دا ټول بادشاه او دا قوم به دَ هغوي ملګري کيږي. دوي ورته وائي: بادشاه! حاضرولو ته ئې ضرورت نشته او را ئې وله او مونږ له ئې راکړه او چپ پۀ چپه به ئې مونږه بوځو. بادشاه ورته اووئيل: داسې کله هم نۀ شي کيدے چې زۀ دوي تاسو سره داسې اوليږم، او دوي تاسو سره لاړ شي، بلکه زۀ به تحقيق کوم.[2]

## دَ بادشاه صحابه کرام رضي الله عنهم راغوښتل

بهر حال چې دوي پوهه شول چې بادشاه دوي مونږ سره دغه شان نۀ پريږدي، وائي: څۀ! را اوئې غواړه. بادشاه وريسې قاصد اوليږلو چې ورشه او دوي راوله. نجاشي بادشاه پۀ خپله عيسائي وو. وائي: دوي راوله چې دوي نه معلومات اوکړو.

دوي چې کله راغلل، بادشاه ځان سره خپل پادريان هم کينولي دي، دَ عيسايانو چې کوم مُليان دي، اوښياران خلق ئې هم کينولي دي، او دوي نه تپوسونه کوي. دوي چې کله دَ بادشاه

---

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (233/1).

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (233/1).

خواته راغلل، نو بادشاه ته ئې سجده اونهٔ کړه. او هغې زمانه کښې چې به څوک دَ بادشاه خواته راتلل نو بادشاه ته به ئې سجده لګوله. او دوي سجده اونهٔ کړه نو دا کافر ورته وائي: اوګوره! دا دومره بے ادبه دي چې تهٔ څومره لويه هستي ئې، او تا ته ئې سجده اونهٔ کړه. بادشاه ترې تپوس اوکړو، ورته وائي: سجده مو ولې اونهٔ کړه؟ ټول خلق راځي سجده کوي او تاسو سجده نهٔ کوئ؟ نو دوي ورته اووئيل: چې بادشاه! څنګه چې دا خلق تا ته سجده کوي نو يَو وخت داسې وو چې مونږه به هم انسانانو ته سجدې کولې، ګټو ته به مو سجدې کولې، قبرونو ته به مو سجدې کولې، وُنو ته به مو سجدې کولې، هر شي ته به مونږه سجدې کولې، الله رب العزة احسان اوکړو، الله مونږه ته يَو نبي راوليږلو، پيغمبر ئې راوليږلو او هغهٔ مونږ ته اووئيل: چې دا سجده دَ الله پاک حق دے، دَ الله نه ما سِوا دا سجده دَ هيڅ چا دپاره جائز نهٔ ده؛ نو لِهٰذا مونږه تا ته سجده څکه نهٔ شو کولے چې دا دَ الله حق دے.[1]

**دَ سيدنا جعفر ﷺ تقرير**

بادشاه ورته غوږ کيخودو او جعفر ﷺ ورته وائي: چې:

"أَيُّهَا الْمَلِكُ! كُنَّا قَوْمًا أَهْلَ جَاهِلِيَّةٍ نَعْبُدُ الأَصْنَامَ، وَنَأْكُلُ الْمَيْتَةَ وَنَأْتِي الْفَوَاحِشَ، وَنَقْطَعُ الأَرْحَامَ، وَنُسِيءُ الْجِوَارَ، يَأْكُلُ الْقَوِيُّ مِنَّا الضَّعِيفَ، فَكُنَّا عَلَى ذَلِكَ حَتَّى بَعَثَ اللهُ إِلَيْنَا رَسُولاً مِنَّا نَعْرِفُ نَسَبَهُ، وَصِدْقَهُ، وَأَمَانَتَهُ، وَعَفَافَهُ، "فَدَعَانَا إِلَى اللهِ لِنُوَحِّدَهُ، وَنَعْبُدَهُ، وَنَخْلَعَ مَا كُنَّا نَعْبُدُ نَحْنُ وَآبَاؤُنَا مِنْ دُونِهِ مِنَ الحِجَارَةِ وَالأَوْثَانِ، وَأَمَرَنَا بِصِدْقِ الْحَدِيثِ، وَأَدَاءِ الأَمَانَةِ، وَصِلَةِ الرَّحِمِ، وَحُسْنِ الْجِوَارِ، وَالْكَفِّ عَنِ الْمَحَارِمِ، وَالدِّمَاءِ، وَنَهَانَا عَنِ الْفَوَاحِشِ، وَقَوْلِ الزُّورِ، وَأَكْلِ مَالَ الْيَتِيمِ، وَقَذْفِ الْمُحْصَنَةِ، وَأَمَرَنَا أَنْ نَعْبُدَ اللهَ وَحْدَهُ لاَ نُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا، وَأَمَرَنَا بِالصَّلاةِ، وَالزَّكَاةِ، وَالصِّيَامِ".....[2]

"اے بادشاه! مونږه داسې خلق وو چې انتهائي پهٔ جهالت کښې پراتهٔ وو، ناپوهه خلق وو، مونږه به دَ بُتانو عبادت کولو، مونږه به مردارې خوړلې، مونږه پهٔ قسم ما قسم بے حياګانو کښې

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (233/1).

(2) أخرجه أحمد في مسند أهل البيت ﷺ، حديث جعفر ابن أبي طالب ﷺ، حديث الهجرة، برقم: (1740)، (266/3).

مبتلا وو، مونږه به خپلوَلي کټ کوله، مونږه به خپلوانو سره بد سلوکي کوله، مونږه به دَ کمزوري سره ظلم او زياتے کولو، مونږه پۀ داسې حالت کښې لا پراتۀ وو چې مونږه باندې الله احسان اوکړو او الله مونږ ته يَو نبي او پيغمبر راوليږلو، چې دَ نسب پۀ اعتبار هغۀ پۀ ټولو کښې اعلیٰ، دَ قوم پۀ اعتبار پۀ ټولو کښې اعلیٰ، دَ صداقت پۀ اعتبار پۀ ټولو کښې ريشتونے انسان وو، دَ امانتدارئ پۀ اعتبار دَ ټولې دنيا نه انتهائي لوئي امين دے، دَ پاکدامنئ او عفّت پۀ اعتبار انتهاء ته رسيدلے دے.

هغه نبي ﷺ مونږ له دَ الله دَ دين دعوت راکړو، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې سجده دَ الله حق دے، بُت ته به سجده نۀ کوئ، انسان ته به سجده نۀ کوئ، وُنې ته به سجده نۀ کوئ، بس دَ الله نه سېوا نور هيڅ چا ته به سجده نۀ کوئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: خپلوَلي به پالئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې دَ خپلوانو سره به ښۀ احسانات کوئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې دَ يَو بل وينې به نۀ تويَوئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې دَ بے حيائ او دَ ناروا نه به ځان ساتئ، هغه نبي ﷺ مونږه ته اووئيل: چې دَ يتيم مال نه به ځان ساتئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې پاکدامن باندې به تهمت او الزام نۀ لګوئ، هغه نبي ﷺ مونږ ته اووئيل: چې مونځ به کوئ، زکوٰة به ورکوئ، روژې به نيسئ....".

داسې شروع وو تقرير ئې کولو، دا تقرير چې کله جعفر ﷺ کوي نو هغه بادشاه ورته حيران دے. چې کله دا کافران پوهه شول چې يره جي! اوس خو پۀ بادشاه باندې يَو اثر کيږي، هسې نه چې بادشاه دَ دوي ملګرے شي.

**دَ بادشاه ژړل**

تر دې پورې علماؤ ليکلي دي: چې جعفر ﷺ کله دا خبرې کولې نو دَ هغې بادشاه دَ سترګو نه اوښکې رواني وې، تردې پورې چې دَ هغۀ ګيره پۀ اوښکو لمده شوه او هغه کوم ئې چې راغوښتي وو نو هغوي هم ژړل. او دا کافران وائي: چې دَ دوي پۀ زړونو دومره اثر اوشو دوي ئې هم ملګري کيږي.

جعفر ﷺ ورته دَ قرآن تلاوت هم اوکړو، وائي: پۀ هغه نبي ﷺ چې کومه وحي راځي هغه دا ده:

﴿ كهيعص * ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا * إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا * قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ

﴿شَيْبًا وَلَمْ أَكُن بِدُعَائِكَ رَبِّ شَقِيًّا * وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِن وَرَائِي وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا *﴾.[1]

قرآن کښې خو ځان له يَو اثر وو، کافرانو اووئيل: کار خراب شو.

بادشاه اووئيل: دوي زۀ تاسو له کله هم نۀ واپس کوم، ځئ! چې چرته اوسيږئ نو هلته اوسيږئ. دوي چې را ديځوا شول نو دا يَو دې نورو ته وائي: عجيبه کار اوشو زمونږه هغه تحفو او تحائفو هډو کار اونۀ کړو!. دا عَمرو بن العاص يا عبد الله بن ابي ربيعه دې نورو ته وائي: چې صبا به داسې کار کوم چې دا ټول به درله يا پۀ دې بادشاه باندې وژنم او يا به ئې دَ دې کلي نه پرې اوباسم. دوي ورته اووئيل: خير دے زمونږ قوم دے، دومره سختي ورسره پکار نۀ ده چې مړۀ ئې نۀ کړي، نور خير دے کۀ څۀ طريقه کولے شې.[2]

**بادشاه ته دَ کافرو بل رپورټ**

چې صبا شو نو عَمرو بن العاص راغے او بادشاه ته وائي: اے بادشاه! زمونږ نه يَو خبره هيره شوې وه، دا خلق چې دي نو دوي صرف دَ نوي دين تابع شوي نۀ دي بلکه دوي ستاسو دې پيغمبر چې تاسو ورته الٰه وايئ، دَ عيسٰى ﷺ باره کښې ډير بد وائي، هغۀ ته ډير سپک کوري (نعوذ بِالله!). بادشاه اووئيل: دا معلومات به هم اوکړو، دوي به را اوغواړو. او رعيت خو پيسې اغستې وې نو هغوي هم بادشاه ته وائي: دا اوکوره! جي! دا خو زمونږ بے عزتي ده. بادشاه اووئيل: را اوبه ئې غواړو. بيا ئې ورپسې سوال جواب اوليږلو. صحابه کرامو ﷺ مشوره اوکړه چې کۀ بادشاه زمونږ نه دَ عيسٰى ﷺ باره کښې تپوس اوکړي نو مونږ به څۀ وايُو؟ کۀ مونږه وايُو: چې دے الله نۀ دے نو دوي خو ورته الٰه وائي، نو دوي را سره خلاف کوي، اختلاف جوړوي؟ او کۀ مونږه وايُو: چې الله دے نو خبره غلطه ده. مشوره ئې اوکړه: چې مخکښې روستو خبرې مۀ کوئ، څۀ چې دَ الله پيغمبر ﷺ وئيلي دي هغه ورته وايئ، دَ الله پۀ پيغمبر ﷺ چې کومه وحي راغلې ده، بس دا کافي ده.

نو دوي چې دوباره راغلل نو جعفر ﷺ بيا متکلم دے دَ مسلمانانو دَ طرف نه. بادشاه ورته

(1) [سورة مريم: 1-5].

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (235/1).

وائي: تاسو دَ عیسٰی علیه السلام پهٔ باره کښې څهٔ وایئ؟ دَ هغهٔ باره کښې ستاسو څهٔ نظریه ده؟ جعفر رضي الله عنه ورته وائي: چې بادشاه! کهٔ ستا خوښه وي نو چې زهٔ راتلم نوے نوے یَو سورت راغلے وو، پهٔ هغې کښې دَ عیسٰی علیه السلام او دَ هغهٔ دَ مور ذکر دے، نو کهٔ ستاسو خوښه وي نو زهٔ به هغه ستاسو مخکښې اووایم؟ بادشاه ورته اووئیل: چې شابه! شروع شه. جعفر رضي الله عنه سورة مریم شروع کړو:

﴿ كهيعص * ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا * إِذْ نَادَى رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا * قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا وَلَمْ أَكُنْ بِدُعَائِكَ رَبِّ شَقِيًّا * وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَرَائِي وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا فَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا ﴾.[1]

اول ئې دَ زکریا علیه السلام عجز بیان کړو، دې پسې دویمه رکوع کښې راځي:

﴿ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا * فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُونِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا * قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا * قَالَ إِنَّمَا أَنَا رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا زَكِيًّا * ﴾.[2]

دا واقعه ئې شروع کړه، تر آخره ئې دا واقعه تلاوت کړه. بادشاه خو پوهیدو، کله چې دے دَ قرآن تلاوت کوي نو دَ هغهٔ دَ سترګو نه اوښکې بهیږي. او ښکته شو او یَو تیلے ئې را واغستو او هغه کافرو ته وائي:

چې اے کافرو! قسم پهٔ الله! دا قرآن چې څهٔ وائي او انجیل چې څهٔ وئیلي دي، پهٔ دې دواړو کښې دَ دې تیلي برابر فرق نشته دے، دا بالکل حق او سچ خبره ده. او ورته وائي: دوي زهٔ کله هم تاسو ته حواله کولے نهٔ شم، دوي زما پهٔ ملک کښې آزاد دي، او چرته چې دوي زما پهٔ ملک کښې اوسیږي نو هلته دې اوسیږي، دوي ته به هیڅ مشکل نهٔ وي. هغه کافران نا مُراده شول.[3]

## دَ جعفر رضي الله عنه بادشاه ته متوجّه کیدل او دَ کافرو نه تپوس کول

بعضې روایاتو کښې راځي: جعفر رضي الله عنه دې نجّاشي ته متوجّه شو، او مخاطب شو ورته، او خبره ئې ورته شروع کړه: چې بادشاه! زهٔ ستا مخکښې دَ دې کافر نه، دَ دې عَمرو بن العاص نه یا دَ عبد الله بن

---

(1) [سورة مریم: 1-5].

(2) [سورة مریم: 16-19].

(3) انظر: "مجمع الزوائد": (27/6).

ابي ربيعه نه څو تپوسونه کوم، دے دې ما له ستا مخکښې جواب راکړي. وائي: څۀ تپوسونه ترې کوې؟

(۱) **اول تپوس:** دے ورته وائي: زۀ يَو تپوس دا کوم: چې مونږ دا کوم مهاجر راغلي يُو آيا پۀ دې کښې کوم يَو کس دَ چا غلام شته دے؟ چې مونږ دَ هغۀ غلامان يُو او راتختيدلے وي دَ خپل مولٰى نه، نو کۀ مونږه غلامان يُو نو واقعې چې تاسو له پکار دي چې مونږه بوځئ او خپلو مالکانو ته مو حواله کړئ نو مونږه اصيل يُو او کۀ مونږه غلامان يُو؟ نو عَمرو بن العاص ورته وائي:

"بَلْ أَحْرَارٌ كِرَامٌ".[1]

"بلکه تاسو ټول آزاد يئ او عزتمند خلق يئ". نو چې مونږه غلامان نۀ يُو نو ستاسو زمونږ سره څۀ کار دے؟

(۲) **دويم تپوس:** بادشاه! مونږه چې دې ملک ته راغلي يُو، حبشې ته راغلي يُو، دَ مکې نه راغلي يُو، دوي نه تپوس اوکړه چې مونږه خو پۀ مکه کښې دَ چا وينه بے گناه نۀ ده توې کړې چې نن پۀ مونږه باندې دَ هغۀ بدل پاتې دے او تاسو مونږه بوځئ او هغوي ته مو حواله کوئ؟ کۀ دَ چا وينه مو توې کړې وي چې لاړ شو او هغوي ته اووايُو: چې راشئ! چې څۀ را سره کوئ هغه را سره اوکړئ!. نو بادشاه عمرو بن العاص ته وائي:

"هَلْ أَهْرَقُوا دَمًا بِغَيْرِ حَقِّهِ؟ فَقَالَ: وَلَا قَطْرَةً وَاحِدَةً مِنْ دَمٍ".

"اے کافرو! آيا دې مسلمانانو دَ چا وينه پۀ نا جائزه طريقې توې کړې ده؟ نو عمرو بن العاص ورته وائي: چې بادشاه! وينه تويول خو لويه خبره ده چې يَو څاڅکے هم دوي دَ چا دَ وينې توې کړے نۀ دے"، دا داسې پاک خلق دي.

(۳) **دريم تپوس:** جعفر ﷺ بادشاه ته وائي: زۀ ستا نه دا تپوس کوم چې دوي نه تپوس اوکړه چې مونږ دَ خپل ملک نه راوتي يُو، ښځې او بچي مو پريخودلي دي، کلي او وطن مو پريخودلے دے نو دَ چا مال خو به مو راتختولے نۀ وي؟ کۀ دَ چا نه مو څۀ شے راتختولے وي نو هغه دې را ته اووائي؟ نو بادشاه ورته وائي: اے کافرو! اووايئ دې مسلمانانو دَ چا نه څۀ شے راوړے دے؟ دَ چا حق پرې

(1) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني، برقم: (193).

شته؟، کهٔ دَ چا پرېِ څهٔ حق وي نو هغه به زهٔ اِداء کړم. نو عمرو بن العاص ورته وائي:

"وَلَا قِيرَاطٌ".[1]

"بادشاه! يَو قيراط چې دے، يعني يَو پيسه چې ده هغه هم دوي دَ چا نهٔ ده ضائع کړې".

نو جعفر ﷺ ورته وائي: نو بيا ستاسو پهٔ مونږه باندې څهٔ حق دے چې تاسو مونږه نيسئ، او مونږه واپس بوځئ؟ او مونږ له تکليفونه او سزاګانې راکوئ؟ مونږه پرېږدئ چې مونږه دَ خپل ربّ عبادت اوکړو.

جعفر ﷺ ورته وائي:

"أَمَّا الَّذِي كُنَّا عَلَيْهِ فَدِينُ الشَّيْطَانِ وَأَمْرُ الشَّيْطَانِ".

"اے بادشاه! مونږه چې دَ دې نه مخکښې پهٔ کوم دين باندې وو نو هغه دَ شيطان دين وو، او هغه دَ شيطان لاره وه، او دَ هغهٔ حکم وو".

"نَكْفُرُ بِاللهِ وَنَعْبُدُ الْحِجَارَةَ".

مونږه دومره ناپوهه وو، الله چې مونږه ئې پيدا کړي يُو، مونږه ئې دَ نيشت نه موجود کړي يُو، مونږه له خوراک او څښکاک راکوي، زمونږه ټول انتظام هغه کوي، نو "هغه الله باندې به مونږه کفر کولو او مونږه به دَ کڼو عبادت کولو". نو هغه دَ شيطان دين مونږه پرېښودو.

"وَأَمَّا الَّذِي نَحْنُ عَلَيْهِ فَدِينُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ نُخْبِرُكَ أَنَّ اللهَ بَعَثَ إِلَيْنَا رَسُولاً كَمَا بُعِثَ إِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِنَا".

"دا اوس چې مونږه پهٔ کوم دين باندې يُو نو دا دَ الله تعالیٰ هغه دين دے چې هغه ډېر عزتمند او اوچت ذات دے، اے بادشاه! مونږه تا له خبر درکوؤ چې هغه الله مونږه ته پيغمبر رالېږلے دے، لکه څنګه ئې چې مخکښنو امتونو ته پيغمبران رالېږلي وو".

"فَأَتَانَا بِالصِّدْقِ وَالْبِرِّ وَنَهَانَا عَنْ عِبَادَةِ الْأَوْثَانِ فَصَدَّقْنَاهُ وَآمَنَّا بِهِ وَاتَّبَعْنَاهُ".

"هغهٔ مونږ ته رېشتيا خبرې راوړي دي، او مونږ ته حکم کوي چې دَ خلقو سره احسانات کوئ، او هغه پيغمبر مونږه دَ بُتانو دَ عبادت نه منع کړي يُو نو مونږه دَ هغه پيغمبر تصديق کړے،

(1) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني، برقم: (193).

پۀ هغۀ مو ایمان راوړے او دَ هغۀ تابعداري مو کړې ده".

نو اے بادشاه! چې کله مونږه شرک کولو نو دې خلقو زمونږ سره مینه کوله، محبت ئې کولو، چې نور ناروا مو کول نو دې ټولو مونږ سره مینه کوله خو:

"فَلَمَّا فَعَلْنَا ذَلِكَ عَادَانَا قَوْمُنَا وَأَرَادُوا قَتْلَ النَّبِيِّ الصَّادِقِ، وَرَدَّنَا فِي عِبَادَةِ الْأَوْثَانِ".

"کله چې مونږ دا کار اوکړو (چې دَ يَو الله عبادت مو شروع کړو او دَ شرک نه مو توبه اوويستله) نو زمونږ قوم زمونږه سره دشمني شروع کړه، او هغوي زمونږه دَ هغه نبي ﷺ دَ قتل اراده اوکړه چې هغه ريښتنے نبي دے، او دوي اراده اوکړه چې مونږه واپس کړي دَ بُتانو عبادت ته".

"فَفَرَرْنَا إِلَيْكَ بِدِينِنَا وَدِمَائِنَا، وَلَوْ أَقَرَّنَا قَوْمُنَا لَاسْتَقْرَرْنَا، فَذَلِكَ خَبَرُنَا".[1]

"نو اے بادشاه! مونږه ستا ملک ته راغلي يُو نو (مزدورئ له نۀ يُو راغلي، مونږه ستا دې ملک ته دَ پناه دپاره راغلي يُو)، دَ خپل دين دَ حفاظت دپاره راغلي يُو (دا کافران مو دې دين ته نۀ پرېږدي)، دَ خپلې وينې دَ حفاظت دپاره راغلي يُو (چې دوي زمونږه وينې تويول غواړي). نو اے بادشاه! کۀ چرته دا قوم مونږه پرېږدي نو مونږه به دلته هم پۀ آرام زندګي تېره کړو. دا زمونږه خبر وو".

## دَ صحابه کرامو ﷺ واپس راتلل

بادشاه چې کله دا خبرې واورېدې نو بادشاه ورته اووئيل: چې کله هم زۀ تاسو دوي ته نۀ واپس کوم، تاسو دلته کښېنئ اوسېږئ. بيا نبي ﷺ هم مدينې منوّرې ته لاړو، هجرت ئې اوکړو او کله چې دا صحابه کرام ﷺ واپس تلل نو خيبر فتح شوے وو، جعفر ﷺ ته پته اولګېده، نور صحابه ﷺ هم وو، هغوي ته پته اولګېده چې خيبر فتح شو مدينه منوره کښې، نو دوي دَ حبشې نه واپس شول او مدينې ته لاړل. نبي ﷺ دَ جعفر ﷺ سره غاړه مِلاؤ کړه او نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: چې ما ته پته نشته دے چې نن زۀ پۀ غزوه خيبر باندې ډېر خوشحاله يم او کۀ دَ جعفر ﷺ پۀ واپس راتلو باندې ډېر خوشحاله يم، چې زما صحابه هغوي زما خوا ته را اورسيدل، او روغ رمټ راغلل. نبي ﷺ دَ دې مهاجرو پۀ راتلو باندې ډېر زيات خوشحاله وو. نبي ﷺ ورسره کېښناستو او ورته وائي: ما ته واقعه

(1) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني، برقم: (193).

بیان کړئ. تول تفصیل ئې ورته اوکړو.

**دَ نجاشي بادشاه نبي ﷺ ته سلام او په هغهٔ باندې ایمان راوړل**

آخر کښې ورته وائي: اے دَ الله رسوله! نجاشي بادشاه مونږ سره ډیر احسانات اوکړل، مونږ سره ئې ډیرې ښیګړې کړې دي. اے دَ الله نبي! مونږه چې کله را ژوانیدو نو نجاشي بادشاه مونږ ته اووئیل: چې زما سلام خپل پیغمبر ته وایئ، او هغهٔ ته اووایئ: چې دے په تا ایمان لري، او ورته اووایئ: چې هغهٔ وئیل: "أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ". زهٔ لرې یم، زهٔ حبشه کښې یم، خو زهٔ ستا یَو امتي یم، ما هم په تا باندې ایمان راوړے دے. او جعفر ﷺ ته وائي: کهٔ چرته دا حکومت او بادشاهي نهٔ وے، دا را نه نهٔ تلے نو زهٔ به تاسو سره تلے وے او زهٔ به خادم دَ رسول الله ﷺ جوړ شوے وے (چې صرف دَ هغهٔ هغه خبرې ئې واوریدې او قرآن ئې واوریدو په هغهٔ دومره اثر اوشو). خو یَو خبره به اوکړئ چې کله تاسو دَ خپل پیغمبر ﷺ خوا ته لاړ شئ نو زما سلام ورته وایئ، او ورته اووایئ: چې زما دپاره دعاء هم اوکړي. او یَو قاصد ئې ورسره کړو چې دوي ته په لاړ کښې څوک تکلیف اونهٔ رسوي. هغه قاصد دَ حبشې ورسره تلے وو.

**دَ نبي ﷺ نجاشي بادشاه ته دعاء کول**

نبي ﷺ اووئیل: هاں! ایمان ئې راوړو او دَ دعاء درخواست ئې کړے وو!. نبي ﷺ اوفرمائیل: ورشئ! ما له اوبهٔ راوړئ، نبي ﷺ پاسیدو او اودس ئې اوکړو، او بیا ئې لاسونه اوچت کړل او دعاء ئې اوکړه:

"اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلنَّجَاشِيِّ، اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلنَّجَاشِيِّ، اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلنَّجَاشِيِّ".[1]

"یا الله! نجاشي بادشاه ته بخښنه اوکړه، یا الله! نجاشي بادشاه ته بخښنه اوکړه، یا الله! نجاشي بادشاه ته بخښنه اوکړه".

دهٔ په نبي ﷺ باندې غائبانه ایمان راوړے وو، او حدیث کښې راځي: چې کله دا بادشاه وفات شو نو دا په حبشه کښې یَو مسلمان بادشاه وو او تول قوم ئې کافر وو.

---

(1) أخرجه الهيثمي في "مجمع الزوائد ومنبع الفوائد": (30/6)، برقم: (9846).

## پهٔ نجاشي باندې غائبانه جنازه کول

نبي ﷺ له خبر راغلے چې دَ حبشې بادشاه وفات شوے دے نو نبي ﷺ صحابه کرام ﷺ راغونډ کړل او نجاشي بادشاه له ئې غائبانه جنازه اوکړه. بعضې خلق دَ دې نه استدلال کوي چې نبي ﷺ دَ دهٔ غائبانه جنازه کړې ده نو هر ځائے کښې چې څوک مړ شي او تهٔ هلته کښې نهٔ شې رسيدے نو غائبانه جنازه ئې کولے شې. خو دا استدلال غلط دے.

## دَ احنافو مذهب

زمونږه دَ احنافو مذهب دا دے: چې مړے دې مخې ته نهٔ وي نو غائبانه جنازه نهٔ کيږي. هان! بے شکه نبي ﷺ دَ نجاشي جنازه غائبانه کړې وه، دَ هغې استدلال نه يَو څو جوابات:

(۱) يَو قول خو دا دے: چې الله دَ دې نجاشي بادشاه کټ دَ نبي ﷺ مخې ته حاضر کړے وو معجزَةً، دا معجزه وه دَ رسول الله ﷺ چې هغه کټ الله حاضر کړو. نو داسې معجزه دَ بل چا دپاره کيدے شي؟

(۲) دويم جواب: هغه پناه وو، او هغه غرونه، هغه دشتې، هر څۀ الله لرې کړي وو دَ الله نبي ﷺ ته ښکاره کيدو. نو دا هم معجزه شوه دَ نبي ﷺ.

(۳) دريم جواب: دا خصوصيت دَ نجاشي بادشاه وو. نو چې دا دَ هغهٔ خصوصيت شو نو هغهٔ پورې خاص شو، دَ هغهٔ نه بعد دَ نبي ﷺ صحابه ﷺ پهٔ ډيرو ځايونو کښې شهيدان شوي دي، نبي ﷺ ته خبر راغلے دے، نو نبي ﷺ ورله دعاء کانې غوښتې دي خو نبي ﷺ ورله غائبانه جنازه نهٔ ده کړې. نو کهٔ دا معمول وے نو نبي ﷺ به دَ نورو خلقو هم غائبانه جنازه کړے وے، نو چې دَ بل چا ئې نهٔ ده کړې صرف دَ دې يَو کس ئې کړې ده نو دا خصوصيت شو دَ نجاشي بادشاه.

نو دا دَ صحابو ﷺ هغه دويم هجرت وو حبشې ته، تر دې ځائے پورې واقعه بيان شوه. ان شاء الله باقي تفصيل به وروسته کوؤ.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه پنځلسمه

## "دَ سيد نا حمزه رضي الله عنه اودَ سيد نا عمر رضي الله عنه اسلام راوړل "

بتاريخ: 27-05-2022

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه پنځلسمه

## "دَ سيدنا حمزه رضي الله عنه او دَ سيدنا عمر رضي الله عنه فاروق ايمان راوړل"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرتِ طيبه مباركه هغه شروع وو، او تر دې پورې خبره را رسيدلې وه چې رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم ته قسم ما قسم تكاليف په دينِ اسلام كښې مِلاؤ شوي وو، او ډيرې سختې ورته رسيدلې وې، تر دې چې صحابه كرام رضي الله عنهم په هجرت كولو باندې مجبوره شول خو يَو خوا چې به څوك مسلمان كيدو هغهٔ ته به ډير سخت تكاليف هم رسيدل، خو بل طرف ته دَ اسلام حقّانيت چې دَ يَو انسان زړهٔ كښې به دننه شو نو هغهٔ بيا دَ تكاليفو دَ وجې نه دَ اسلام نه روستو شوے هم نهٔ دے. نوي نوي خلق به راتلل او مسلمانان كيدل به، پهٔ ابتداء كښې ملګري كم وو، او كافر ډير وو، ملګري كمزوري وو، بے وسه وو او دَ كافرو زور وو.

### پهٔ دارارقم كښې دَ نبي ﷺ او دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم را جمع كيدل

رسول الله ﷺ پهٔ جومات كښې خپل ملګري جمع كولے نهٔ شول، داسې بل ميدان كښې به

(1) [سورة الأحزاب: 21].

ئې راجمع کولے نهٔ شو، چې کافر ورته نقصان اونهٔ رسوي نو دارِ ارقم، دَ ارقم ﷺ کور وو، پهٔ هغې کښې به نبي ﷺ سره يَو څو ملګري وو صحابه کرام ﷺ، هغه به ئې راغونډول او پهٔ پټه به ئې هغوي له دعوت دَ اسلام ورکولو. دا ارقم ﷺ چې دے نو دے دَ سابقينِ اولينو نه دے، اول اول مسلمانانو کښې دے هم دے. علماؤ ليکلي دي: دے اووم نمبر مسلمان دے يا اتم او يا نهم يا لسم (۱۰) نمبر دے. دې پورې اقوال دَ دهٔ باره کښې شته دے. چې دے هغې خلقو کښې دے چې دَ دغه تعداد پهٔ وخت کښې مسلمان شوے دے. دَ دهٔ کور چې وو دا دَ صفا غُنډۍ سره نزدې وو، نبي ﷺ به خپل ملګري صحابه کرام ﷺ هلته کښې راغونډول او هلته کښې به پټ ناست وو، او هغوي ته به ئې دَ دينِ اسلام احکامات بيانول.

سيدنا عمر ﷺ چې مسلمانيدو نو دَ ارقم ﷺ پهٔ کور کښې مسلمان شوے وو.

**دَ حافظ عراقي رحمه الله قول**

حافظ عراقي رحمه الله ليکلي دي، او هغهٔ دا سيرت دَ نبي ﷺ پهٔ اشعارو کښې را جمع کړے دے، نو هغه ديته اشاره کوي او هغه ليکي:

واتَّخَذَ النبيُّ دارَ الأرْقَمِ لِلصَّحْبِ مُسْتَخْفِينَ عنْ قَوْمِهِمِ

"نبي ﷺ دَ ارقم ﷺ کور مرکز مقرر کړے وو دَ خپلو ملګرو صحابه کرامو ﷺ دپاره (چې دلته به راجمع کيږو او دلته به دَ يَو بل سره مِلاويږو)، دَ قوم نه به پټ راغونډيدل".

چا ته ئې دا نهٔ شو وئيلے چې پهٔ دې کور کښې صحابه کرام ﷺ راجمع دي، پټ به هغې کښې راجمع شول او دَ دينِ اسلام پهٔ احکامو به ئې عمل کولو، او چې دَ مونځ وخت به راغلے جمع به چا کولے نهٔ شوه، نو حافظ عراقي رحمه الله وائي:

وَقِيْلَ: كَانُوْا يَخْرُجُوْنَ تَتْرَى إِلَى الشِّعَابِ لِلصَّلَاةِ سِرًّا[1]

"وئيلے شوي دي: چې دوي دَ مانځهٔ دپاره به دوي پهٔ پټه باندې داسې جُدا جُدا وتل"، داسې شاړو ته به لاړل او هلته کښې به ئې پټ پټ مونځونه کول.

(1) انظر: "ألفية السيرة النبوية" للحافظ العراقي: (49).

و رو رو نوي نوي خلق راغلل او هغوي مسلمانيدل.

**د سيدنا حمزه ﷺ اسلام راوړل**

الله رب العزة سيدنا حمزه ﷺ مسلمان کړو، بيا سيدنا عمر ﷺ اسلام قبول کړو. الله رب العزة مسلمانانو ته نور هم تقويت ورکړو. علماء کرامو ليکلي دي: چې حمزه ﷺ دَ غيرت دَ وجې نه مسلمان شو. حمزه ﷺ دا يَو نوجوان وو، او دے دَ ښکار ډير شوقي وو، ښکارونه به ئې کول. او دا حمزه ﷺ دَ نبي ﷺ تره دے، اول وخت کښې مؤمن نهٔ وو.

يَوه ورځ ابو جهل لعين رسول الله ﷺ ته ډيرې بدې ردې اووئيلې، خو رسول الله ﷺ خو دَ اخلاقو يَو نمونه وه، نبي ﷺ څهٔ اونهٔ وئيل خو ابو جهل ښهٔ خپل زړهٔ يخ کړو. دا منظر چې سړے وينې او سړے وائي: چې دغه ځائے کښې زهٔ وے نو ما به څهٔ کړے وے، څنګه دَ سړي زړهٔ کښې يَو جوش راځي، خو دَ الله نبي ﷺ به دَ دينَ دپاره هر څهٔ قربانول. دې ابو جهل لعين دَ الله نبي ﷺ ته بدې ردې پهٔ دې مرداره خُلهٔ ډيرې اووئيلې او ډيرې کنځلې ئې اوکړې، ليکن دَ الله نبي ﷺ دَ يَوې خبرې جواب هم ورنهٔ کړو. او بعضې علماؤ ليکلي دي: چې پهٔ نبي ﷺ باندې ئې ګُزارونه هم اوکړل، دَ الله دَ نبي ﷺ بدن مبارک ئې زخمي کړو، خو هغهٔ غږ نهٔ کولو، وائي: کهٔ څهٔ وايم نو خلق به وائي: چې دَ مشر سړه انختے دے. پهٔ دې کښې دَ عبد الله بن جدعان يَوه وينزه وه، هغې دَ خپل کور نه کتل، دَ ابو جهل لعين دا کنځل ئې اوريدلې او دَ رسول الله ﷺ حال ئې هم ليدو. نو سيدنا حمزه ﷺ دَ ښکار نه واپس را روان وو، او دغه دَ عبد الله بن جدعان وينزه ورته وائي: اے ابو عماره! تهٔ وختي نهٔ وې کنه، کاش چې تهٔ موجود وې کوم وخت ابو جهل ستا دې ورارهٔ ته کنځلې کولې! چې لږه دفاع خو دې ورته کړے وے؟ سيدنا حمزه ﷺ ورته وائي: خا! زما ورارهٔ ته ئې کنځلې کولې؟ وائي: آو، ډيرې نا روا کنځلې ئې ورته کولې. سيدنا حمزه ﷺ ورته اووئيل: زهٔ به ئې اوس خوښ شم.

ګوره! مسلمان نهٔ دے کافر دے، روان شو، دَ حمزه ﷺ طريقه به دا وه: چې دے به کله هم دَ ښکار نه راغے نو اول به مسجد حرام ته لاړو، مسجدِ حرام کښې به ئې حاضري اوکړه، عبادت به

ئې اوکړو، دَ ملتِ ابراهیمي پهٔ طریقې به ئې عبادت کولو، نو چې عبادت به ئې اوکړو بیا به کور ته راغے. نبي ﷺ خو لا هغوي نهٔ منلو، ایمان ئې پرې نهٔ وو راوړے نو دے چې مسجد حرام ته لاړو، چې اوئې کتل نو ابو جهل لعین پهٔ مسجد حرام کښې دے، نو دَ دهٔ پرې نظر اولګیدو نو غصه خو وو، نیغ ابو جهل پسې لاړے او دَ خپلې لیندې هغه اُلته طرف باندې ئې ورله سر اووهلو، وینې ئې پرې را ماتې کړې او خومره کنځلې چې ورته یادې وې نو پهٔ بیت الله کښې ئې ابو جهل ته اوکړې، بنهٔ زړهٔ ئې سپک کړو. ابو جهل سره قریش ناست وو، نو قریشو اراده اوکړه چې پهٔ حمزه باندې حمله اوکړي، کهٔ دَ هغهٔ قوم دَ هغهٔ سره اودریدو خو بل طرف ته دَ حمزه ﷺ قوم بنو هاشم دَ دهٔ سره را وڅیدو. ابو جهل ډیر اوښیار وو، چې اوس خو دَ دوؤ قبیلو جنګ کیږي، او پهٔ دې کښې به دَ نبي (ﷺ) سره ډیر کسان ملګري شي نو ابو جهل زر خلقو ته وائي: چې خبردار! غږ به نهٔ کوئ، اول ما دَ دهٔ وراره ته ډیرې کنځلې کړې دي، ما ئې ډیره بے عزتي کړې ده نو پریږدئ چې دے څهٔ وائي نو خیر دے او دې وائي، دهٔ سره زهٔ جنګ نهٔ کوم، دا خو زمونږ سرے دے او زما او دَ دهٔ یَو نظریه ده، دهٔ سره مونږه جنګ نهٔ کوؤ. خبره ئې بل خوا تاؤ کړه او دهٔ پرې خپل زړهٔ یخ کړو.

خلقو ورته اووئیل: اے حمزه! ولې تهٔ هم صابي شوے ئې؟ هغې وخت کښې چې به یَو سړے مؤمن شو نو هغهٔ ته به خلقو صابي وئیلو. دَ صابي معنٰی دا ده: بے دینه. وائي: تهٔ هم بے دینه شوے ئې؟ هغوي خو خپل دین ته حق وئیلو. نو حمزه ﷺ ورته وائي: صابي نهٔ یم، بس زهٔ هم دَ نن نه مسلمان شوم. نهٔ دعوت وو، نهٔ خبره وه، بس غیرت کښې راغے وائي: چې تاسو زما وراره ته بدې ردې وایئ، زهٔ هم دَ نن نه مسلمان شوم. هغې وخت کښې ئې چغه کړه وائي: زهٔ مسلمان یم. سیدنا حمزه ﷺ دغه خبره اوکړه خو چې کور ته راغے زړهٔ کښې سوچ کولو... شیطان خو ډیر ظالم دے، دے سړي ته قسم ما قسم وسوسې اچوي، حمزه ﷺ ته شیطان قسم ما قسم وسوسې شروع کړې: چې اے حمزه! ګوره! دَ پلار نیکهٔ دین پریږدې، خپل قوم او رشته دار پریږدې او دَ دې محمد (ﷺ) خبره منې؟ صحیح ده وراره دې دے، پهٔ سر دې ورله غیرت اوکړو دَ دهٔ څهٔ له منې؟ خپل کار کوه. حمزه ﷺ پهٔ دې سوچونو کښې پروت دے چې اوس څهٔ اوکړم: واپس دَ خپل پلار نیکهٔ دین قبول

کړم او کهٔ دَ دې محمد دین قبول کړم؟ پهٔ تردُّد او اشتباه کښې وو.

**دَ سیدنا حمزه ﷺ دَ الله نه دعا غوښتل**

"مستدرک" دَ امام حاکم لیکلي دي، دارنګې "سیرة المصطفٰی" کښې مولانا محمد ادریس کاندهلوي ؒ لیکلي دي: سیدنا حمزه ﷺ چې وو، نو هغهٔ دَ الله نه دعاء اوغوښته:

"اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ رُشْدًا فَاجْعَلْ تَصْدِيْقَهُ فِيْ قَلْبِيْ وَإِلاَّ فَاجْعَلْ لِيْ مِمَّا وَقَعْتُ فِيْهِ مَخْرَجًا".[1]

الله! زهٔ خو نهٔ پوهیږم، الله تهٔ ښهٔ پوهیږې، "یا الله! کهٔ دا دین دَ محمد رسول الله ﷺ حق وي نو دَ دې تصدیق زما پهٔ زړهٔ کښې پیدا کړه، زما زړهٔ پهٔ دې مطمئن کړه او مضبوط ئې کړه او یا الله! کهٔ چرته دا غوره نهٔ وي نو دَ دې نه دَ وتلو دپاره ما له یَو لاره پیدا کړه".

**دَ سیدنا حمزه ﷺ ټوله شپه خوب نهٔ کول**

او یَو روایت کښې راځي: چې ټوله شپه سیدنا حمزه ﷺ خوب اونهٔ کړو، ولې؟؛ پریشانه دے، چې دَ پلار نیکهٔ دا دین قبول کړم او کهٔ دَ محمد ﷺ دین قبول کړم. کله داسې یَو مسئله سړي ته پیښه شي نو سړے سوچونو کښې شي نو خوب ترې پاتې شي. ټوله شپه حمزه ﷺ پهٔ پریشانئ کښې دے، یَو سیکنډ له ئې هم سترګه پټه نهٔ کړه. چې سحر شو نو بیت الله شریف ته راغے او هلته ئې دَ الله نه دعاء اوغوښته، چې: یا الله! کهٔ چرته دا دین غوره وي نو زما زړهٔ کښې دا مضبوط کړه، او ما پرې مطمئن کړه، او کهٔ نهٔ وي نو ما دَ دې نه بل خوا واړوه. کله چې ئې دا دعاء اوکړه نو الله رب العزة دَ حمزه ﷺ زړهٔ پهٔ دین باندې مطمئن کړو، او دعاء ئې قبوله شوه، زړهٔ کښې ئې دَ دینِ اسلام حقّانیت راغے. دَ هغې نه پس را روان شو او دَ رسول الله ﷺ خوا ته راغے، او چې راغے نو نبي ﷺ ته وائي:

"أَشْهَدُ أَنَّكَ لَصَادِقٌ شَهَادَةَ الْمُصَدِّقِ وَالْمَعَارِفِ".[2]

"اے دَ الله نبي! زهٔ شهادت کوم چې تهٔ ریشتینے پیغمبر ئې، داسې شهادت کوم چې زهٔ ستا

(1) انظر: "المستدرك على الصحيحين" للحاكم، برقم: (4878).

(2) انظر: "المستدرك على الصحيحين" للحاكم، برقم: (4878)، "روض الأنف": (186/1).

تصديق کوم او تا پيژنم"، تهٔ ما ته دَ پخوا نه معلوم وې، چې تهٔ صادق او امين وې.

او بيا رسول الله ﷺ ته فرمائي: چې اے ورارهٔ! دا ستا دين چې دے اوسه پورې زما تردُّد او شک وو او اوس زهٔ علی الاعلان چغه وهم چې زهٔ ستا پهٔ دين او ستا پهٔ طريقه باندې يم. او وائي: زما دې دَ الله پهٔ ذات قسم وي چې کهٔ دا ټوله دنيا ما له څوک راکوي او پهٔ دې دنيا کښې چې څهٔ دي هغه را ته مِلاويږي پهٔ دې چې زهٔ ستا دين پريږدم نو قسم پهٔ خدائے! کهٔ دا ټول خيزونه زهٔ ستا دَ دين پهٔ مقابله کښې واخلم، دين پريخودو ته تيار نهٔ يم، دومره مې زړهٔ ستا پهٔ دين باندې کلک شو. سيدنا حمزه ﷺ هغه وخت کښې دا اشعار وئيلي وو:

**دَ حمزه ﷺ اشعار**

حَمِدْتُ اللهَ حِيْنَ هَدَى فُؤَادِيْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَالدِّيْنِ الْحَنِيْفِ

"زهٔ دَ الله رب العزة صفتونه او حمدونه وايم کوم وخت نه ئې چې ما ته هدايت او ښودنه کړې دَ دينِ اسلام، او دَ دينِ ابراهيمي چې صحيح دين دے او دَ غلطو نه پاک دے".

لَدِيْنٌ جَاءَ مِن رَّبٍّ عَزِيْزٍ خَبِيْرٍ بِالْعِبَادِ بِهِمْ لَطِيْفِ

"هغه دين چې دَ هغه ربّ دَ طرف نه دے چې زورَور او خبردار ذات دے پهٔ بندګانو باندې او ربّ پهٔ هغوي ډير مهربانه دے".

إِذَا تُلِيَتْ رَسَائِلُهُ عَلَيْنَا تَحَدَّرَ دَمْعُ ذِي اللُّبِّ الْحَصِيْفِ

"کله چې دَ هغوي رسالې پهٔ مونږه باندې لوستلے کيږي نو بهيږي دَ هغې دَ وجې نه اوښکې دَ عقلمند انسان چې کامل عقل والا وي".

رَسَائِلُ جَاءَ أَحْمَدُ مِنْ هُدَاهَا بِآيَاتٍ مُّبَيِّنَاتِ الْحُرُوْفِ

"داسې رسالې او داسې خطونه دَ ربّ دَ طرف نه راغلي دي چې احمد ﷺ (دا دَ نبي ﷺ نوم دے) راوړي دي، او دَ هدايت رسالې دي، او دې کښې داسې آيتونه دي چې دَ هغې هر يو حرف واضح واضح دے".

وَأَحْمَدُ مُصْطَفَى فِيْنَا مُطَاعٌ فَلَا تَغْشُوْهُ بِالْقَوْلِ الْعَنِيْفِ

"احمد ﷺ چې غوره کړے شوے دے، په مونږ کښې د هغهٔ خبره منلے شوې ده نو د هغهٔ خبره مهٔ پټوئ په ناجائزه خبرو باندې".

فَلَا وَاللهِ نُسْلِمُهُ لِقَوْمٍ وَلَمَّا نَقْضِيْ فِيْهِمْ بِالسُّيُوْفِ

"زما دې د الله په ذات باندې قسم وي چې کله هم مونږ دا نبي ﷺ یواځې کافرو ته نهٔ پرېږدو نو لا تر هغې به مونږه په هغې کښې په تورو فیصله نهٔ وي کړې".

معنٰی: په تورو مو چې وژلي نهٔ وي نو دا پیغمبر ورته داسې نهٔ حواله کوؤ. نو د نبي ﷺ ترهٔ سیدنا حمزه ﷺ سره مسلمانانو ته لږ غوندې تقویت مِلاؤ شو. دے ډیر بهادر انسان وو چا هم د دهٔ مقابله نهٔ شوه کولے.

## د سیدنا عمر فاروق ﷺ ایمان راوړل

اصح قول دا دے: چې د دې نه درې (۳) ورځې بعد عمر ﷺ الله مسلمان کړو. د سیدنا عمر فاروق ﷺ د اسلام راوړو په سبب کښې مختلف اقوال شته:

یو قول خو دا دے: چې سیدنا عمر فاروق ﷺ دپاره خصوصي دعاء رسول الله ﷺ کړې وه، او الله رب العزة د رسول الله ﷺ دا دعاء د هغهٔ په باره کښې قبوله کړه.

## د ابو جهل لعین اعلان

ابو جهل لعین اعلان اوکړو: چې چا رسول الله ﷺ قتل کړو نو سل اوښان به زهٔ هغهٔ له په انعام کښې ورکوم.

دا دومره بد بخته وو، خلاف وو د رسول الله ﷺ. سیدنا عمر ﷺ خو چونکه زړور ډیر وو نو هغهٔ اووئیل: چې دا انعام به زهٔ گټم، دا پیغمبر به وژنم او دا اوښان به اخلم. وائي: ما وئیل: چې هسې نهٔ چې صبا ابو جهل اووائي: چې ما خو نهٔ دي وئیلي، وائي: کور ته وریسې راغلم او ما ورته اووئیل: زهٔ خبر شوے یم چې تا یو اعلان کړے دے: چې دا پیغمبر چا اووژلو نو زهٔ بل سل (۱۰۰) اوښان په انعام کښې ورکوم، تا داسې وئیلي دي؟ ریښتیا وائې؟ او وائي: دا مې هم ورته اووئیل: چې

بیا دې ته تیار ئې؟ ابو جهل اووئیل: بالکل تیار یم، ما وئیلي دي: چې چا دا نبي قتل او مړ کړو نو سل اوښان به انعام کښې ورکوم.

### دَ سیدنا عمر ﷺ دَ نبي ﷺ قتل پسې روانیدل

سیدنا عمر ﷺ وائي: زهٔ را روان شوم دَ رسول الله ﷺ قتل پسې او چې کله دَ رسول الله ﷺ قتل پسې را اووتم نو پهٔ لاره کښې مې کتل چې څهٔ کسان دي او هغوي يَو سخے رانیولے دے او دَ خپلو خدایانو پهٔ نوم ئې ذبح کوي، زهٔ را نزدې شوم نو هلته نه ما يَو آواز واوریدو، صحرا ده، شاړه ده، آواز اوشو:

"يَا آلَ ذَرِيْحِ أَمْرٌ نَجِيْحٌ رَجُلٌ يَصِيْحُ بِلِسَانٍ فَصِيْحٍ".

نو دا چغې مې واوریدې او ما داسې کنړل لکه چې زهٔ ئې مخاطب کړے یم او دا خبره کوي: "اے دَ ذریح والؤ! (امام بخاري چې کله دا روایت نقل کوي نو هغهٔ وائي: "يَا جَلِيحْ": اے جلیحه! معنٰی: اے سړیه!) يَو کار دے چې ډیر کامیاب کار دے (چې څوک هغه اومني نو هغه انسان کامیاب وي، نو هغه کار څهٔ دے؟) وائي: يَو سړے دے: چې هغهٔ خلقو ته چغې وهي، دعوت ورکوي خلقو له او داسې سړے دے چې پهٔ فصیحه او واضحه ژبه باندې دعوت ورکوي...".

خبره څهٔ ده؟ څهٔ ته دعوت ورکوي؟ نو وائي:

"يَدْعُوْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ الله وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ الله".[1]

دې طرف ته دعوت ورکوي: چې خلقو ته وائي: "دَ دې ګواهي اوکړئ چې دَ الله نه ما سِوا بل اِلٰه نشته مګر يَو الله دے، او یقینًا محمد ﷺ دَ الله پیغمبر دے".

سیدنا عمر ﷺ فرمائي: چې کله ما دا آواز واوریدو نو ما اووئیل: چې دا ما ته څوک چغې وهي، دَ هغې نه روستو زما دَ زړهٔ لړ لړ دَ اسلام او دَ نبي ﷺ سره محبت پیدا شو. دا يَو باعث وو دَ عمر ﷺ دَ اسلام راوړلو.

### دَ امام احمد ﷺ قول

دویم قول امام احمد ﷺ نقل کړے دے: سیدنا عمر ﷺ فرمائي: چې زهٔ راغلم نو دَ الله نبي ﷺ

(1) انظر: "الخصائص الكبرٰى" للسيوطي، برقم: (221/1).

زما نه مخکښې راغلے وو او بيت الله کښې ولاړ وو، دَ قرآن تلاوت ئې کولو، وائي: زما په دې زړهٔ کښې دا خبره راغله چې يره! دا نبي ﷺ چې څۀ وائي دے به کاهن وي، او کله به مې زړهٔ کښې راغلل چې دے به شاعر وي، نو دَ الله نبي ﷺ دا آيتونه وائي:

﴿إِنَّهُۥ لَقَوۡلُ رَسُولٖ كَرِيمٖ * وَمَا هُوَ بِقَوۡلِ شَاعِرٖۚ قَلِيلٗا مَّا تُؤۡمِنُونَ﴾.[1]

"يقينًا دا دَ يَو نبي عزتمند وينا ده، او دا دَ يَو شاعر وينا نۀ ده...".

دَ قرآن هغه آيتونه داسې دي، وائي: ما اووئيل: چې واه! زما په زړهٔ کښې چې کوم شک وو دَ هغې جواب خو اوشو. بيا زما په زړهٔ کښې راغلل چې دا به کاهن وي، ترويتي به وي، نو پيغمبر ﷺ وروسته دارک اووئيل:

﴿وَلَا بِقَوۡلِ كَاهِنٖۚ قَلِيلٗا مَّا تَذَكَّرُونَ﴾. "دا دَ يَو کاهن وينا هم نۀ ده".

نو وائي: "فَوَقَعَ الْإِسْلَامُ فِي قَلْبِي كُلَّ مَوْقِعٍ".[2]

"نو اسلام زما په زړهٔ کښې هر يَو رګ او هر يَو کُټ ته ننوتلو". چې دا خو عجيبه دين دے: چې زما زړهٔ کښې کوم شک راځي نو دَ هغې جواب راځي!. دَ هغې نه هم په ما لږ لږ اثر اوشو.

بل دا چې کله عمر بن الخطاب ﷺ چې دا اولنے آواز واوريدو چې: "يَا آلَ ذَرِيْحٍ أَمْرٌ نَجِيْحٌ رَجُلٌ يَصِيْحُ بِلِسَانٍ فَصِيْحٍ يَدْعُو إِلَى شَهَادَةِ أَن لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ". خو ما بيا هم دا خپله اراده پرې نۀ خوده، او زړهٔ کښې مې يَو شک پيدا شو، خو ما وئيل: چې سل (۱۰۰) اوښان ډير شے دي، دا کټل غواړي. دَ نبي ﷺ قتل پسې روان شوم، لاره کښې يَو سړے عمر ﷺ ته مخې له ورغلے، چې دَ هغهٔ نوم "نعيم بن عبد الله النحام" دے، عمر ﷺ ته وائي: اے عمر! چرته روان ئې؟ دَ غرمې وخت دے، چرته ځې؟ عمر ﷺ ترې خبره پټه نۀ کړه، وائي: زۀ دَ دې محمد قتل پسې روان يم، دے وژنم. ځکه دۀ خو وئيل چې زۀ بهادر يم، زما مقابله څوک کولے شي؟ ښکاره به ئې وئيل چې زۀ به دے وژنم، هغه ورته وائي: چې تۀ به دے څنګه مړ کړې، دَ هغهٔ قبيله ده بنو هاشم، او

(1) [سورة الحاقة: 40-41].

(2) أخرجه أحمد في "مسنده"، مسند الخلفاء الراشدين، مسند عمر بن الخطاب ﷺ، برقم: (107).

بنو زهره، دَ هغوي نه به بیا څنګه خلاصیږې؟ سیدنا عمر ﷺ ورته وائي: دَ دې خبرو خبرو نه معلومیږي چې تهٔ ئې هم ملګرے شوے ئې؟ نو دَ هغهٔ سره پهٔ جنګ شو. هغه ورته وائي: ما پریږدَوه، ورشه ستا خور او ستا اوخي پرې هم ایمان راوړے دے!. دَ خور ئې فاطمه نوم وو، هغوي مسلمانان شوي دي، سعید بن زید ﷺ دا ئې اوخے وو، هغهٔ پرې ایمان راوړے دے!.

سیدنا عمر ﷺ چې دا واوریدل نو غصه ئې نوره هم ښهوا شوه، وائي: چې زهٔ هغه وژنم او دا را ته پهٔ کور کښې دَ هغهٔ ملګري پیدا شوي دي!. دَ هغهٔ نه را واپس شو او وائي: چې اول دوي پسې ورشم.

**دَ سیدنا عمر ﷺ دَ خپلې خور کور ته تلل**

دروازه ئې بند ده، او سیدنا خباب ﷺ دوي کره راغلے وو، دَ پردې احکامات پهٔ هغې وخت کښې نهٔ وو، دې ښځې او خاوند ته ئې قرآن ښودو، تلاوت دَ قرآن ئې ورته کولو، او دوي ترې قرآن زده کوي، او پهٔ دې کښې عمر ﷺ دَ بهر نه راغے، بهر چې اودریدو نو کور نه دَ سبق آواز راځي، زړهٔ کښې یقین راغے چې خبره خو صحیح ده، دوي خو سبق وائي، چې دروازه ئې اوټکوله، آواز ئې اوکړو چې عمر یم!، نو سیدنا خباب ﷺ پوهه شو چې دا خو کافر دے او اوس به مونږ وهي، نو هغه خو میلمه وو، نو کوټه کښې یَو کُټ کښې غلے شو، او دَ دهٔ اوخے (سیدنا سعید بن زید ﷺ) راغے او هغهٔ دهٔ ته دروازه کولاؤ کړه. نو دهٔ ورته اووئیل: چې دا تاسو څهٔ وئیل؟ دا تاسو کوم دین شروع کړے دے؟ شور جوړ شو، هغه ئې اونیولو او جنګ جوړ شو، خور ئې راغله او دا خپل خاوند ئې ترې خلاصولو... نو دهٔ ته خو وئیلے شوي وو چې ستا خور او اوخے دواړه مسلمانان شوي دي، هغوې ته هم غصه وو، دې خور ئې خاوند نهٔ پریښودو، او عمر پهٔ خپله خور ئې ګُزار اوکړو نو مخ ئې ورته دومره پهٔ تیزئ سره اووهلو چې وینې ترې روانې شوې. وینې ترې بهیږي او هغه وینې صفا کوي، خو هغه هم غصه شوه، وائي: چې تهٔ مونږه پهٔ خپل کور کښې وهې نو څه! چې تهٔ څهٔ کوې نو هغه اوکړه مونږه مسلمانان شوي یُو؟ چا ترې خلاص کړي نهٔ دي، عمر ﷺ چې پهٔ وهلو ښهٔ ستړے شو نو خپله ئې وهل بس کړل او چې وهل ئې بس کړل، زړهٔ

کتبي ستومانه شو چې يره! ګوره! ما دَ دوي نه هډو معلومات اونهٔ کړل چې دا کوم دين دے؟ پۀ دې کتبې کومه خبره ده؟ او ډارک مې وهلو باندې شروع اوکړه، لږ معلومات خو اوکړه چې دا څۀ دي؟ ورته وائي: چې هغه پاڼړه ما ته راوړئ وختي چې تاسو لوستله! چې دا ئې اووئيل نو لږه طمع پيدا شوه چې اوس به کار سم شي، نو خور ورته وائي: چې روره! هغه تا له څکه راوړے نۀ شو چې:

"إِنَّكَ رِجْسٌ وَلَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ، قُمْ فَاغْتَسِلْ أَوْ تَوَضَّأْ". (۱)

"تۀ خو پليت ئې، او الله وائي: دې ته به لاس نۀ اوړي مګر پاک خلق به ورته لاس ور اوړي، نو ورشه غسل اوکړه، يا اودس اوکړه بيا واخله!".

عمر ﷺ اووئيل: هاں!.... دوه قسمه روايات دي: يَو (۱) دا دے: چې اودس ئې اوکړو او بل (۲) روايت دا دے: چې غسل ئې اوکړو، ځان ئې صفا کړو او راغے وائي: ما له هغه کاغذ راوړئ!، عمر ﷺ ته ليکل لوستل ورتلل، او چې شروع ئې اوکړه نو سورة طٰهٰ وه:

﴿طه*مَا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقَى*إِلَّا تَذْكِرَةً لِمَنْ يَخْشَى*تَنْزِيلًا مِمَّنْ خَلَقَ الْأَرْضَ وَالسَّمَاوَاتِ الْعُلَى...﴾. (2)

ديارلس (۱۳) آيتونه دَ سورة طٰهٰ ئې اولوستل، دې ځائے پورې چې را اورسيدو:

﴿إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي﴾. (3)

"زۀ الله يم، بل اِلٰه نشته دے مګر زۀ يم، يواځې زما عبادت کوه او مونځ پۀ پابندئ باندې کوه؛ دپاره دَ يادولو زما".

- سيدنا عمر ﷺ چې دا اوکتل نو بے اختياره ئې پۀ دې خُلۀ باندې يَو آواز را اوچت کړو چې: "مَا أَحسَنَ هٰذا وأكرَمَه!!!".

پۀ دې کتبې خو يَو نا آشنا مزه ده؛ يَو نا آشنا خوند دے پکښې، "دا دومره خائسته کلام دے!"، دا خو ما چرته پۀ زندګئ کښې نۀ وو اوريدلے. دننه نه خباب ﷺ پوهه شو چې دَ عمر ﷺ

(1) أخرجه الحاكم في "المستدرك على الصحيحين"، معرفة الصحابة، فاطمة بنت خطاب، برقم: (6897)، والبيهقي في "سنن الكبرى"، برقم: (413).

(2) [سورة طه: 1-4].

(3) [سورة طه: 14].

پهٔ زړهٔ کښې لا ره اوشوه، رامنډه ئې کړه او ورته وائي:

"أَبْشِرْ يَا عُمَرُ!".

"عمره! زيرے واخله!".

وائي: دَ څهٔ شي زيرے؟ وائي: دَ الله نبي ﷺ ستا دپاره دَ الله نه دعاء غوښتې وه: «اللهُمَّ أَيِّدْ الإِسْلَامَ بِأَبِي الْحَكَمِ بْنِ هِشَامٍ أَوْ بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ».[1]

يا الله! مسلمانان ډير کمزوري دي، او دا دوه کسان لړ زوزور دي چې يَو ابو جهل دے، او بل عمر بن الخطاب دے، الله! پهٔ دې دوؤ کښې چې کوم يَو تا ته محبوب وي نو الله! هغهٔ ته اسلام نصيب کړه، چې اسلام مضبوط شي. وائي: زما پهٔ خيال دَ رسول الله ﷺ دعاء الله ستا باره کښې قبوله کړه، تهٔ دَ الله ډير خوښ وې، نوره هم دَ عمر ﷺ پهٔ زړهٔ کښې لا ر اوشوه.

دوه قسمه روايات راځي: يَو دَ امام احمد ﷫ او امام ترمذي ﷫ روايت دے: رسول الله ﷺ داسې دعاء کړې ده: چې يا الله پهٔ ابو جهل او عمر بن الخطاب کښې چې کوم يَو تا ته ډير محبوب وي نو الله! هغهٔ ته ايمان نصيب کړه.

**دَ نبي ﷺ دعاء خاص دَ عمر ﷺ دپاره**

او بل روايت کښې راځي: " اللَّهُمَّ أَيِّدِ الإِسْلَامَ بِعُمَرَ بنِ الخطابِ خاصَّةً".[2]

"يا الله! تهٔ اسلام پهٔ عمر بن الخطاب باندې مضبوط کړه. خاص کر دَ هغهٔ دپاره ئې ځان له دعاء اوکړه".

دې دواړو روايتونو کښې محدِّثين تطبيق داسې کوي: چې اول کښې دَ الله نبي ﷺ دَ دواړو نومونه ياد کړل، بيا دَ وحي پهٔ ذريعه دَ الله نبي ﷺ ته اووئيلے شو: چې ابو جهل به دَ دنيا نه کافر ځي، دهٔ ته به ايمان نهٔ نصيب کيږي. نو چې نبي ﷺ ته اووئيلے شو چې ابو جهل ته ايمان نهٔ نصيب کيږي نو دَ عمر بن الخطاب ﷺ دپاره ئې خاص دعاء اوکړه.

(1) انظر: "الروض الأنف" لأبي القاسم عبد الرحمن بن عبد الله بن أحمد السهيلي: (165/3).

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (240/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق مخرجا: (209/1-212).

**دَ عمر بن الخطاب ﷺ دَ نبي ﷺ خوا ته راتلل**

عمر ﷺ اوفرمائيل: چې شابيءُ! ما دَ نبي ﷺ خوا ته بوځئ. ما تاسو ته وئيلي وو: چې دا هغه وخت وو چې ابتداء وه، نبي ﷺ او صحابه ﷺ به پټ ناست وو، چا ته ځائے معلوم نهٔ وو. سيدنا خباب ﷺ ورته وائي: زهٔ به دې بوځم ما ته ځائے معلوم دے. دَ ارقم ﷺ پهٔ کور کښې نبي ﷺ او صحابه ﷺ ناست دي.بې دې کښې عمر بن الخطاب ﷺ ئې را روان کړو. چا نبي ﷺ ته اووئيل: چې عمر را روان دے. کله چې را اورسيدو، دروازه ئې اوټکوله، چا ته دننه پته نشته چې دے پهٔ کومه اراده راغلے دے، دهٔ خو دَ الله نبي ﷺ پسې توره کرځوله. نو پهٔ دې دوران کښې دَ صحابؤ ﷺ سره فکر شو چې خدايه! ټول کمزوري خلق يُو، بے وسه يُو، کهٔ توره ورسره وي او مونږ دلته اووهي. چا اووئيل: دروازه ورته کهولاؤو او چا اووئيل: چې نا! دروازه ورته نهٔ کهولاؤو، پهٔ دې کښې سيدنا حمزه ﷺ دَ دهٔ نه درې (۳) ورځې مخکښې مسلمان شوے وو، خو حمزه ﷺ هم يَو ډير بهادر انسان وو، ورته وائي: دروازه ورته کهولاؤ کړئ، کهٔ عمر دَ خير پهٔ اراده راغلے وي، دَ ايمان پهٔ اراده راغلے وي نو الله به ورله خير ورکړي، او کهٔ عمر پهٔ غلطه اراده راغلے وي نو دروازه ورته کهولاؤ کړئ عمر زما نه واپس نهٔ شي تلے. چې نبي ﷺ ته پته اولګيده چې عمر راغلے دے نو اوئې فرمائيل: چې دروَازه ورته کهولاؤ کړئ. چې څنګه ئې ورته دروازه کهولاؤ کړه نو دے را روان دے دَ نبي ﷺ خوا ته را اورسيدو. حديث کښې راځي: سيدنا عمر ﷺ وائي: نبي ﷺ زما دا جامې داسې راخکلې ځان پله او زما دپاره ئې دعاء اوکړه: چې "اللهُمَّ اهْدِهْ". الله! تهٔ دهٔ ته هدايت اوکړه. او يَو بل روايت کښې راځي، وائي: نبي ﷺ دا دعاء اوکړه:

"اللَّهُمَّ هَذَا عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ، اللَّهُمَّ أَعِزَّ الدِّينَ بِعُمَرَ".

"الله! دا عمر بن الخطاب راغلے دے (چې واپس کافر اونهٔ وځي)، الله تهٔ دين له پهٔ دهٔ باندې عزت ورکړې"، او دهٔ ته اسلام نصيب کړه.

دا دَ نبي ﷺ دعاء وه، دَ دې پهٔ قبليدو کښې څهٔ شک نهٔ وو، عمر بن الخطاب ﷺ ورته

اوخندل او وائي: يا رسول الله! زۀ دَ ايمان پۀ اراده راغلے يم، دَ دې دپاره راغلے يم چې زۀ مسلمان شم. او نبي ﷺ ته مخامخ كيښناستو ورته وائي:

"أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلا اللهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللهِ". "زۀ شهادت كوم چې بل إِلٰه نشته مگر يَو الله دے، او زۀ دا گواهي كوم چې تۀ دَ الله رب العزة رسول ئې".

بس خلقو يَو بل ته دَ خوشحالئ نه مباركئ شروع كړې، چې شكر دے عمر مسلمان شو. صحابه ﷺ ډير خوشحاله شول، سيدنا عمر ﷺ اوفرمائيل: چې ټول عمر مې دَ مسلمانانو خلاف كړے وو، نن به زۀ دَ مسلمانانو دفاع كوم. او يَو كس دے چې هغه پۀ دې كښې ډير مشهور وو، چې هغۀ به خبره ډيره خوروله، دَ هغۀ نوم دے "جميل بن معمر"، دَ هغۀ خوا ته لاړو او ورته وائي: جميله! تۀ خبر ئې؟ عمر مسلمان شو. جميل بن معمر منډه كړه او چې چا سره مِلاويږي نو هغۀ ته وائي: چې عمر صابي شوے دے. سيدنا عمر ﷺ وروسې روستو روان دے، چې دَ قريشو يَو ډلې ته اورسيدو نو هغوي ته وائي: زۀ صابي شوے نۀ يم، زۀ مسلمان شوے يم. خو سيدنا عمر ﷺ خو يَو بهادر انسان وو، مسلمانانو ته ئې اووئيل: چې راځئ! اوس به تاسو پۀ پټه عبادت نۀ كوئ. بيا به مسلمانان بيت الله ته راتلل، او مونځ به ئې هلته كښې كولو، هلته به ناست وو، دعوت به ئې هم چلولو. بيا چا دَ هغوي خلاف نۀ شو كولے.

ترڈې پورې بيان اوشو، ان شاء الله باقي سيرت به نورو جُمعو كښې بيانيږي.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

بسم الله الرحمن الرحیم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه شپاړلسمه

## "مقاطعه بني هاشم او هغې با ندې ليكل او بيت الله كښې اويزا نول"

بتاريخ: 2022-06-03

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه شپاړلسمه

## "مقاطعه بني هاشم او هغې باندې خط ليکل او بيت الله کښې اويزا نول "

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرتِ طيبه شروع وو، چې کوم تکليفونه رسول الله ﷺ ته دَ دينِ اسلام دَ دشمنانو نه، دَ کفارو نه رسيدلي وو او دَ هغوي صحابۇ ﷺ ته چې کوم تکليفونه رسيدلي وو دَ هغې بيان شروع وو. دَ صحابۇ ﷺ تکليفونه او مشکلات بيان شول. مخکښې مونږ اووئيل: چې سيدنا حمزه ﷺ او دَ هغې نه بعد سيدنا عمر ﷺ چې کله مسلمانان شول چې دَ هغوي دَ اسلام واقعات مونږه تيره جُمعه کښې بيان کړي دي.

### قريش دَ مسلمانانو دَ حال نه خبريدل او بيا دَ مسلمانانو نه دَ بائيکاټ اعلان کول

قريشو ته چې کله پته اولګيده چې اوس مسلمانان رو رو مضبوطيږي، او خلق دَ هغوي سره په اسلام کښې دننه کيږي نو هغوي هم دَ مسلمانانو خلاف کښې خپل کار لږ تيز کړو، تول قريش په "دار الندوه" کښې (چې دا ئې دَ جرګو دپاره يَو کونسل، يَو ځائے جوړ کړے وو چې هغوي به په دې کښې راجمع کيدل) راجمع شول. او په هغې کښې ئې دا فيصله اوکړه: "چې يره! دَ

(1) [سورة الأحزاب: 21].

دې نبي نه مونږ تنګ راغلو او يَواځې نۀ دے نوي نوي خلق راځي او دَ دۀ سره ملګري کيږي نو داسې کوؤ: رسول الله (ﷺ) چې دے او دَ دۀ سره چې څومره ملګري دي نو دَ دې ټولو سره به زمونږ بائيکاټ وي او دَ دوي سره به زمونږ هيڅ قسمه ربط او تعلق نۀ وي، دَ دوي سره به نۀ غم ښادي کوئ، او نۀ به دوي باندې څۀ څيز خرڅوئ او نۀ به دَ دوي نه څۀ څيز اخلئ، نۀ به دَ دوي زنانه جينکئ پۀ نڪاح اخلئ او نۀ به دوي له خپلې لونړه خويندې پۀ نڪاح ورکوئ، هيڅ قسمه تعاون به دَ دې خلقو سره نۀ کوئ. دوي به ځان له وي او مونږ به ځان له يُو، تر هغې وخته پورې چې تر څو پورې دوي مونږ ته دا خپل پيغمبر راکړے نۀ دے چې تاسو پوهه شئ او دے پوهه شه، کۀ وژنئ ئې او کۀ هر څۀ ورسره کوئ. تر څو پورې چې دوي دَ دې پيغمبر ملګرتيا کوي نو تر هغې پورې به مونږه دَ دوي سره هيڅ قسمه تعلق نۀ ساتو".

## دَ نبي ﷺ پۀ خلاف کښې ليکل کول

نو پۀ دې مقاطعه باندې ليکل اوشو، او دَ کافرانو غټو غټو سردارانو پۀ هغې باندې دستخطې اوکړې. نو دا کاغذ ئې چې اوليکلو نو دَ خانه کعبې ديوال ته ئې دننه طرف ته آويزان کړو، چې دا به خانه کعبه کښې محفوظ پروت وي او څوک به دَ دې سره لاس نۀ لګوي.

او دَ دې کاغذ کاتب (ليکونکے) منصور بن عکرمه وو. او دَ الله کار ته ګوره! دۀ چې دا کاغذ پۀ کوم لاس باندې اوليکلو نو هم هغه لاس ئې الله شل کړو او تر مرګه پورې ئې بيا دغه لاس مکمل شل وو.

خلق دوه ډلې شول، نبي ﷺ او دَ هغۀ ملګري شعبِ ابي طالب ته لاړل، دا دَ مکې نه بهر داسې يَو ځائے وو، دا دَ بنو هاشم وو. هغوي بيا پۀ خپل اولاد کښې تقسيم کړو، شعبِ ابي طالب کښې دَ نبي ﷺ دَ خاندان او دَ نبي ﷺ زمکې وې. هلته کښې لاړل او بيا هلته کښې اوسيدل، بنو هاشم او بنو عبد المطلب پۀ هغوي کښې چې کوم مؤمنان وو نو هغوي خو هسې هم دَ نبي ﷺ ملګري وو خو چې کوم کسان پکښې کافران وو نو هغوي هم دَ نبي ﷺ سره ملګري شول، چې قوميت دے، دا زمونږ دَ قوم سړے دے، زمونږ ورارۀ دے او زمونږ نوَسے دے او زمونږ کشر دے

مونږه تول به دَ دهٔ ملګري يُو. هغه غيرت پکښې راغے اګر چې کافر وو خو دَ نبي ﷺ سره اودريدل.

### دَ نبي ﷺ مخالف

بنو هاشم کښې يَو سړے داسې وو چې هغه کافر وو او دَ نبي ﷺ سره ملګرے نهٔ شو او سخت خلاف ئې کولو چې هغه ابو لهب ظالم وو. ابو لهب دَ نبي ﷺ سخت مخالف شو، دا دَ نبي ﷺ ترهٔ وو. درې (۳) کاله مسلسل دوي پهٔ دې تکليفونو کښې اوسيدل، او ډير سخت ژوند ئې تيرولو. داسې حال ته دَ هغوي ژوند رسيدلے وو چې لوږه او قحط پهٔ هغوي باندې شروع شو، چا ورله څهٔ شے نهٔ ورکولو او نهٔ ئې پرې څهٔ شے خرڅولو، او کهٔ دَ بهر نه به قافله راغله نو ابو لهب لعين به ورته اووئيل: چې پهٔ نورو خلقو ئې خرڅوئ خو پهٔ دوي به ئې نهٔ خرڅوئ، او کهٔ خرڅوئ ئې نو ښهٔ ګران به ئې پرې خرڅوئ، چې ښهٔ تاواني شي. نو اول نه خو هسې هم غريبي وه، او چا به مزدورئ ته بوتلل هم نهٔ، او نهٔ به پرې چا کار کولو او چې بيا به څهٔ شے راغے او هغه به هم ګران وو نو کهٔ هغوي به بازار ته راغلي وو نو بيا به تش تور لا ړل، هغه شے به ئې وانهٔ غستو. ابو لهب به هغې قافلې والا ته وئيل: چې څومره تاوان مو کيږي خير دے هغه زما نه اخلئ خو دوي له مهٔ ورکوئ او کهٔ يَو څيز ورکوئ نو هم پهٔ ډبل قيمت به ئې ورکوئ.

مسلمانانو باندې لوږه شروع شوه.

### دَ سعد بن ابي وقاص ﷺ ړومبنې حالت

سعد بن ابي وقاص ﷺ وائي: چې دومره وږے شوے اووم چې دَ حد نه سبوا، يَو شپه مې دَ دې خېې سره څهٔ شے يخ غوندې اولګيدو نو وائي: کتلي مې ورته نهٔ دي چې څهٔ شے دے؟ خو ډير زيات اووږے اووم، چې لاس مې ورسره وُلګيدهٔ او پهٔ لاس مې را اوچت کړو او ډارک مې اوخوړو، وائي: قسم دے کهٔ اوسه پورې ما ته دا پته وي چې دا څهٔ شے وو؟

### دَ سعد بن ابي وقاص ﷺ دويم حالت

يَو بله واقعه کښې راځي: سعد بن ابي وقاص ﷺ وائي: يَو شپه زهٔ وړو بولو ته را اووتم، نو

لوږې ډیر زیات په مخه اغستے ووم دَ لوږې خوب نه هم نۀ راتلو... وائي: چرته ښځوا چا يَو اوښ حلال کړے وو، څرمن پرته وه، بالکل اوچه شوې وه، وائي: راغلم هغه څرمن مې خپې سره اولګیده، ما وئیل: چې دا څۀ شے دے؟ چې راخکته شوم نو هغه څرمن وه، دَ څرمنې يَو ټوټه وه، هغه اوچه څرمن مې را اوچته کړه او اُور مې بل کړو، اول مې ترې هغه ویښتۀ لرې کړل او بیا مې پۀ اُور باندې سرۀ کړه نو بیا مې وریسې کانړے زا واغستو او ورۀ مې کړه (چې وُړۀ مې کړه لکه څنګه چې دا خلق میده دوائي خُلۀ کښې اچوي او وریسې اوبۀ څښکي)، وائي: پۀ دې طریقه باندې مې خُلې ته اوغورځوله او بیا مې وریسې اوبۀ اوڅښکلې. نو هغه وُړۀ کړې څرمن مې پۀ دې طریقه باندې اوخوړله. تر دې پورې چې انتهائي حالت خراب وو....

خو دومره غیرتي وو چې کۀ هر څۀ کیږي خو پیغمبر دې کافرو ته نۀ حواله کوو، مرۀ به شو خو پیغمبر به دوي له حواله نۀ کړو. مسلمانانو خو خود نۀ حواله کولو خو کافرو به وئیل: مرۀ به شو خو حواله به ئې نۀ کړو.

پۀ دې دوران کښې بعضې عزیزانو، بعضې دوستانو چې به دې حالت ته کتل نو دَ زړۀ نه به ئې يَو الله خبر وو، کۀ هر څۀ دي نو انسانان خو دي کنه؟ دا ولې مونږه دومره ظلم او زیاتے کوؤ؟ دَ چا به پټکښې خپلوان یا به ئې دَ چا سره پټ تعلق وو نو هغوي به دَ نورو خلقو نه پټ دوي ته دَ خوراک څۀ شے اولیږلو، چې دا مې تا له راوړے دے، دا اوخوره.

**دَ حکیم بن حزام او دَ ابو جهل بحث**

حکیم بن حزام دا دَ سیدة خدیجة الکبرٰی ﷺ ورارۀ وو، نو دۀ خپل غلام ځان سره کړو او خپلې پیو (ترور) له ئې څۀ غله ځان سره راوړه. ابو جهل لعین پۀ لاره کښې ولاړ وو، او چې حکیم بن حزام ئې اولیدو نو هغه ته وائي: چې حکیمه! تا بنو هاشم له دَ خوراک څۀ شے یوړو؟ هغۀ ورته اووئیل: یره! څۀ اوکړو، غریبانان دي، کمزوري دي، لوږې، تندې تیرَوي، ترور مې ده هلته کښې وادۀ ده نو هغې له مې دَ مجبورئ نه راوړو. ابو جهل ورته وائي: چې نا! خبردار کورے! کله به ورته هم څۀ شے نۀ اوړې، کۀ مرۀ کیږي نو مرۀ دې شي خو څۀ شے به نۀ اوړې؛ ځکه

فیصله دا شوې ده.

### دَ ابو البختري او ابو جهل بحث

پۀ دې کنبې دوي دواړه پۀ شور باندې وو، يَو بل کافر دے دَ هغۀ نوم دے "ابو البختري". هغه وخت لا ابو البختري او حکيم دواړه نۀ وو مسلمانان شوي، روستو بيا دواړه الله مسلمانان کړي دي. نو ابو البختري را روان وو او دوي يَو بل سره لګيا دي نو ابو البختري ورته وائي: څۀ چل دے؟ ابو جهل ورته وائي: ګوره! مونږه پۀ خانه کعبه کنبې کاغذ رازوَړند کړے دے او دے هغه وعده ماتیٔ او ترور له خوراک اوړي؟ نو ابو البختري ورته وائي: نو چې خوراک ئې يوړو نو څۀ چل اوشو خپله ترور ئې ده خوراک ورله اُوړي. پۀ دې کنبې ابو البختري او ابو جهل دَ يَو بل سره ګرم شول، ابو البختري خکته ټوپ کړو او دَ اوښ يَو هډوکے پروت وو هغه ئې را واغستو او ابو جهل له ئې سر ته را خلاص کړو. سرے ئې زخمي کړو. چې زخمي ئې کړو نو دَ دې نه رو رو خبره خرابيده او معاهده کنبې فرق راتلو.

### دَ هشام بن عَمرو حالت

پۀ دې کنبې بيا يَو بل کس دے "هشام بن عَمرو"، دے بيا دَ مکې دَ فتحې پۀ وخت کنبې مسلمان شوے وو. نو دے وائي: چې ما له دا خيال پۀ زړۀ کنبې راغے چې دا زمونږ خپلوان دي او دا زمونږه رشته داران دي، دوي سره زمونږ غم ښادي وه، او نن مونږه دوي پۀ دې مجبوره کوؤ چې دا خپل کشر (يعني محمد ﷺ) مونږ له راکړیٔ او کۀ مونږ له ئې نۀ راکوئ نو مونږه ورسره دومره تعلق ختموؤ!!!، پۀ دې باندې ډير خفه اووم.

نو پۀ دې خيال کنبې روان اووم نو يَو ځل ما ته زهير بن اُميه مخې ته راغے (زهير بن اُميه دے بيا روستو مسلمان شوے دے دَ فتح مکه پۀ موقع باندې. دے دَ عبد المطلب نوَسے کيدو، دَ نبي ﷺ ترور عاتکه بنت عبد المطلب دے دَ هغې ځوي وو، دَ نبي ﷺ خپل وو). نو دۀ ته وائي: چې زهيره! تا له دا خوند درکوي چې ستا ترور، ستا رشته داران، ماماګان هغوي دې داسې لکه دَ لوږې او تندې دَ لاسه ترسيږي او مونږه دې خائسته خائسته خوراکونه کوؤ او دَ هغوي دې څۀ سوچ نۀ

کوؤ؟ کۀ دَ ابو جهل ماما داسې پۀ تکلیف کښې وي هغۀ به کله هم مونږ سره داسې مُعاهده باندې دستخط نۀ وو کړے، او زمونږ ماما خیلي ده، او زمونږه رشته داران دي نو خیر دے چې زمونږ نه ئې دستخطي اغستې دي؟ نو زهیر ورته وائي: یره! پۀ دې زړۀ کښې مې هره ورځ دا خبره تیریږي خو زۀ یَواځې یم څۀ وئیلے نۀ شم ټول خلق یَو خوا دي نو زۀ به یَواځې څۀ اوکړم؟ نو هشام بن عَمرو ورته وائي: چې زۀ دې ملګرے یم، دواړه دې کښې یَو تحریک چلوؤ. دے ورسره ملګرے شو، دواړه یَو ځائے شول، وائي: ځان له یَو دریم ملګرے پیدا کوؤ.

نو دوي روان شول او دَ مطعم بن عدي سره لاړل، هغۀ ته ئې دا قصه اوکړه، هغۀ ورته اووئیل: چې دا خو واقعي ظلم دے، زۀ هم درسره ملګرے یم. دَ هغۀ نه روان شول دَ ابو البختري خوا ته لاړل، هغۀ ورسره هم ملګرے شو وائي: دَ دې ظلم خلاف زۀ هم آواز اوچتوم، هغۀ خو مخکښې نه دَ ابو جهل سر ته هډوکے راخلاص کړے وو. دَ هغې نه بعد زمعه بن اسود پسې لاړل، هغه ئې هم ملګرے شو. نو دا پنځۀ کسان غلي غلي ملګري شول چې راځئ! یَو تور پیدا کوؤ، دَ دې کافرانو دا معاهده ختموؤ.

چې دوي ټول ملګري شول نو وائي: یره! اوس به دا خبره څوک کوي؟ نو زهیر بن اُمیه ورته وائي: دا اوس زما کار دے، اوس به خبره زۀ کوم. ټول خلق ئې راجمع کړل، قریش ئې راجمع کړل، دے پاسیدو او هغوي ته وائي: چې ګوره مکې والؤ! ډیره لویه دَ افسوس خبره ده چې زمونږ خپلوان، زمونږه رشته داران دې لوږې تندې تیرَوي، او مونږه دې خوشحاله ګرځوؤ او ژوند دې تیرَوؤ!!!، دا ظلم نۀ دے؟ دا زیاتے نۀ دے؟ پۀ دې کښې ماشومان دي، پۀ دې کښې زنانه دي، پۀ دې کښې کمزوري خلق دي، هغوي سره ولې زیاتے کوؤ؟ زهیر بن امیه ورته وائي: زما دې پۀ خدائے قسم وي! چې دَ نن نه پس دا معاهده زۀ نۀ منم، تر هغې وخته پورې زۀ نۀ کینېنم تر څو پورې چې مې دَ مُعاهدې دا کاغذ شلولے نۀ وي. نو ابو جهل پاسیدو، وائي: زما دې قسم وي کۀ ته کاغذ ته نزدې شوې نو زۀ تا سره داسې چل کوم. شور جوړ شو، پۀ دې کښې دَ زهیر بن امیه هغه ملګري یَو یَو پاسیدو: زمعه بن اسود پاسیدو وائي: قسم پۀ خدائے دے دا کاغذ به شلوؤ. بل

خوا نه هغه بل ملګرے ابو البختري پاسیدو وائي: دے بالکل صحیح وائي، دا شے نا رواه دے، دا تاسو زیاتے کوئ. بل خوا نه هغه بل ملګرے پاسیدو او هغهٔ آواز اوکړو... هر یَو آواز اوکړو.

پهٔ کنره کښې چې خلور، پنځهٔ کسان یَو خبره اوکړي، څهٔ خو اکثر خاموش پاتې شي نو نورو کافرانو کښې خو هر یَو سړے دَ خبرو نهٔ وو. نو ابو جهل چې پوهه شو نو وائي: نا! نا! دا تاسو بیګا څهٔ چل کړے دے، تاسو دا یَو مشوره کړې ده، یَو اتفاق مو کړے دے... بهر حال دا خبرې شروع دي. پهٔ دې کښې وائي: صبا به خبرې کوؤ....

**دَ قریشو معاهده باندې دَ الله رب العزة وینهٔ مسلّط کول**

چې سحر شو، ابو طالب (دَ نبي ﷺ ترهٔ) هم بیت الله له مونځ له راغلے دے. نبي ﷺ ته الله دَ وحي پهٔ ذریعه دا خبر رسولے وو چې کافرانو هغه کومه مُعاهده لیکلې وه نو دَ هغې شلولو ته ضرورت نشته، هغه ختمه شوې ده. وائي: څنګه؟ الله تعالیٰ داسې وینهٔ پیدا کړل چې دوي خانه کعبه کښې دا کاغذ اویزان کړو چې څوک ورته ګوتې نهٔ وُړي، چې څنګه دا اوشلوم دا خو دَ خپل قوم سره خیانت دے، هلاک به شم... نو الله داسې وینهٔ پیدا کړل چې هغې کښې صرف دَ الله نوم ئې پرېخودے وو او نور چې څومره کاغذ وو او پهٔ هغې کښې چې څومره ټکي وو نو ټول ئې ترې خوړلي وو، کاغذ سورے سورے پروت وو، هیڅ شے پکښې نهٔ وو، او دوي خو خوشحاله وو چې معاهده رازوَرنده ده.

نبي ﷺ خپل ترهٔ ابو طالب ته اووئیل: چې کاکا جي! داسې کار شوے دے: دې کافرو چې زمونږ خلاف کوم لیکل کړي دي نو الله تعالیٰ داسې یَو وینهٔ پیدا کړي دي چې دَ هغې نه ئې هغه ټولې خبرې خوړلي دي او کاغذ ئې ټول خوړلے دے صرف هغه کاغذ ئې بچ پرېخودے دے چې پهٔ کوم باندې دَ الله نوم وو. ابو طالب ورته راغے ورته وائي: اے کافرو! (دے هم کافر وو)، اے ظالمانو! تاسو چې زمونږ خلاف دومره کلکې معاهدې کړي دي دا ظلم دے او دا نا روا دي او کهٔ تاسو نهٔ منئ نو ورشئ هغه کاغذ مو اوګورئ! چې کوم مو زمونږ خلاف لیکلے دے ما ته زما ورارهٔ وئیلي دي چې هغه کاغذ وینو خوړلے دے او هغه ئې ختم کړے دے. ابو طالب خپله لیدلے نهٔ

وو چې ريشتيا ئې خوړلے دے او کهٔ نهٔ خو دَ هغهٔ يقين وو چې زما ورارهٔ څهٔ اووائي نو دے دروغ نهٔ وائي. کافرانو ورته اووئيل: چې نهٔ ئې دے خوړلے، دے ورته وائي: خوړلے ئې دے.

ابو طالب ورته وائي: راځئ! يَو خبره کوؤ: کهٔ چرته زما ورارهٔ دروغ وئيلي وي نو دے خو بيا پيغمبر نهٔ دے، دے خو دروغژن دے، زهٔ درسره دا معاهده کوم چې زهٔ درته دا خپل ورارهٔ حواله کوم چې تاسو ورسره څهٔ کوئ نو بيا ئې اوکړئ!. او کهٔ هغهٔ ريشتيا وئيلي وي نو کهٔ تاسو زمونږ ملګري کيږئ نهٔ نو کم از کم دا ظلم خو را سره مهٔ کوئ، دا تعلقات خو را سره مهٔ کټ کوئ. دوي ورته اووئيل: صحيح ده. ځئ چې کاغذ اوګورو!، چې راغلل نو پهٔ کاغذ کښې هيڅ شے پاتې نهٔ وو، ځنګه چې رسول الله ﷺ وئيلي وو هم هغه شان خبره وه. کاغذ کښې صرف دَ الله نوم ئې چې کوم ځائے کښې ليکلے وو نو هغه ځائے باقي وو. نور کاغذ وينو تول خوړلے وو.

دوي ته پته اولګيده چې واقعي دا کاغذ مونږه دَ ظلم کاغذ ليکلے دے. نو هغه معاهده دَ هغوي بيا درې (۳) کاله بعد بيا ختمه شوه. نو درې کاله نبي ﷺ او دَ هغهٔ ملګرو پهٔ شعبِ ابي طالب کښې ډير دَ تکليف وخت تير کړے وو.

### دَ ابو بکر صديق ﷺ هجرت کول

پهٔ دې دوران کښې ابو بکر صديق ﷺ هغه هم مهاجر شو، نبي ورته اووئيل: ابا بکر! مونږ باندې خو هسې هم پابندياني دي، تکليف دے، تهٔ خو چرته اوځه!. ابو بکر صديق ﷺ دَ حبشې دَ سفر پهٔ اراده روان شو کله چې "برک الغماد" علاقې ته اورسيدو، هغه دَ قاره علاقې يَو سردار وو ابن الدغنه، هغه ورسره مِلاؤ شو، ابو بکر ﷺ ته وائي: ابا بکر! چرته ځې؟ دے ورته وائي: چې ځمه، دا کلے پريږدم او حبشې له ځم. وائي: څهٔ له ځې؟ وائي: مزدورئ له ځې؟ وائي: نا!. دَ الله دَ دين دَ وجې نه ځم، دا خلق مې دَ الله دين نه نهٔ پريږدي. حديث کښې راځي: ابن الدغنه ورته وائي:

"إِنَّ مِثْلَكَ لاَ يَخْرُجُ وَلاَ يُخْرَجُ، فَإِنَّكَ تَكْسِبُ المَعْدُومَ، وَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".

"اے ابو بکر! ستا پهٔ شان سړے نهٔ پهٔ خپله باندې اوځي او نهٔ هغه څوک ايستلے شي،

(ولې؟؛ ځکه ته خو دومره قيمتي سړے ئې چې ته خو غريبانانو سره احسانات کوې) چې کوم سړے کسب نهٔ شي کولے نو هغهٔ له کسب کوې او هغه شتهٔ کوې، تهٔ دَ خلقو سره خپلوَلي او رشته داري پالې (تهٔ خو دَ رشته دارئ دَ پاللو او يَو ځائے کولو والا ئې)، او تهٔ دَ خلقو بوجونه پهٔ خپله غاړه باندې اوچتوې، او تهٔ ميلمنو ته ميلمستيا ورکوې، او تهٔ پهٔ حوادثو دَ حق کښې خلقو سره مرسته او تعاون کوې". نو ستا پهٔ شان خلق هم لا څوک دَ ملک نه اوباسي. هغهٔ ته خو پته نهٔ وه چې دا کافر ئې نهٔ مني، ابن الدغنه ورته وائي:

"وَأَنَا لَكَ جَارٌ".

"زهٔ ستا دپاره پناه ورکونکے يم"، راځه! زهٔ ستا ضمانت کوم، او تهٔ خپل کور ته واپس راځه.

ابو بکر ﷺ ئې را روان کړو ورته وائي:

"فَارْجِعْ فَاعْبُدْ رَبَّكَ بِبِلاَدِكَ".

"واپس شه! راځه! پهٔ خپل کلي کښې دَ خپل ربّ عبادت کوه"، تا ته به څوک څهٔ نهٔ وائي. ابو بکر ﷺ ورته اووئيل: چې تهٔ مې ضمانت کوې نو زهٔ هلته کښې څهٔ کوم چې ځم، ځه! چې ځو.

کله ئې چې ابو بکر ﷺ واپس راوستو نو پهٔ ټولو سردارانو دَ قريشو باندې ابن الدغنه اوګرځيدو، او هغوي ته وائي: اے قريشو! دَ ابو بکر پهٔ شان سړے هغهٔ دَ ملک نه نهٔ شي ايستے کيدے، دا خو دَ ايستلو سړے نهٔ دے، آيا تاسو داسې سړے دَ ملک نه اوباسئ چې:

"يَكْسِبُ الْمَعْدُومَ، وَيَصِلُ الرَّحِمَ، وَيَحْمِلُ الكَلَّ، وَيَقْرِي الضَّيْفَ، وَيُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".[1]

"چې هغه دَ عاجزانو سره امداد کوي، هغه دَ خپلوانو سره خپلوَلي پالي، دَ کمزورو بوج پهٔ خپل سر باندې اخلي، ميلمه ته ميلمستيا ورکوي، پهٔ حوادثو کښې مرسته او امداد کوي؟".

نو قريشو اووئيل: دا خو غټ سړے دے اوس دهٔ ته څهٔ اووايُو؟، دے به را نه خفه شي کهٔ څهٔ ورته وايُو، وائي: بس صحيح ده چې تهٔ ابو بکر له پناه ورکوې نو ستا خبره مونږه نهٔ غورځوُ،

(1) أخرجه البخاري في كتاب الكفالة، باب جوار أبي بكر في عهد النبي ﷺ وعقده: (98/3).

مونږ ورله هم پناه ورکوؤ، بس دے دې دلته کښې وي، خو يَو شرط دے:

**دَ قريشو شرط**

هغه شرط دا دے: چې:

"مُرْ أَبَا بَكْرٍ، فَلْيَعْبُدْ رَبَّهُ فِي دَارِهِ، فَلْيُصَلِّ، وَلْيَقْرَأْ مَا شَاءَ، وَلاَ يُؤْذِينَا بِذَلِكَ، وَلاَ يَسْتَعْلِنْ بِهِ، فَإِنَّا قَدْ خَشِينَا أَنْ يَفْتِنَ أَبْنَاءَنَا وَنِسَاءَنَا".

"ابو بکر ته اووايه: چې دَ خپل ربّ عبادت دې په خپل کور کښې کوي، او په کور کښې دې دننه مونځونه کوي او تلاوت دې کوي څومره ئې چې خوښه وي، خو مونږ له دې بهر تکليف او نقصان نهٔ رارسَوي، بهر دې دَ خلقو مخکښې تلاوت نهٔ کوي، عبادت دې نهٔ کوي؛ ځکه مونږه يريږو چې زمونږه زنانه او اولاد به په فتنه کښې واقع کړي".

نو ابن الدغنه دوي ته اووئيل: چې ډيره ښهٔ ده، دا يَو پابندي به اومني، نو ابن الدغنه ابو بکر ﷺ ته اووئيل: چې دَ مشرکينو دغه يَو شرط دے دا اومنه. نو ابو بکر ﷺ اومنلو، وائي: صحيح ده. نو ابو بکر ﷺ يَو څو ورځې په خپل کور کښې عبادت کولو او بهر به ئې په داګه مونځونه نهٔ کول او نهٔ به ئې بل ځائے کښې بهر چرته تلاوت کولو. نو ابو بکر ﷺ بيا اووئيل: خپله زمکه مې ده، خپل کور مې دے، دَ کور مخې له ئې وړه غوندې جونګړه جوړه کړه، ابو بکر ﷺ په هغې کښې مونځ هم کولو او دَ قرآن تلاوت به ئې هم پکښې کولو. او دَ قرآن تلاوت چې به ئې کولو نو روايت کښې داسې راځي:

"فَيَتَقَصَّفُ عَلَيْهِ نِسَاءُ الْمُشْرِكِينَ وَأَبْنَاؤُهُمْ، يَعْجَبُونَ وَيَنْظُرُونَ إِلَيْهِ".

"نو دَ قريشو ماشومانو او دَ هغوي زنانه به په ابو بکر ﷺ باندې سمه ګڼړه جوړه شوه، ټول به ترې را چاپير شول، او دوي به تعجب کولو، او ابو بکر ﷺ ته به ئې کتل". نو دوي چې به دَ ابو بکر ﷺ دا سبق اوريدو نو هغوي به تعجب کولو چې دا دے لا څهٔ وائي!!!؛ ځکه هغوي ته خو به پته نهٔ وه چې دا دَ الله کلام دے. او بل خوا ابو بکر ﷺ کښې هم دَ الله دَ دين يَو مينه وه او دومره اخلاص پکښې وو: چې دَ ابو بکر ﷺ باره کښې راځي:

"وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ رَجُلاً بَكَّاءً، لاَ يَمْلِكُ دَمْعَهُ حِينَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ".

"ابو بکر ﷺ يَو داسې نرم دِل انسان وو چې ډیر ژړیدونکے وو، چې کله به ئې دَ قرآن تلاوت شروع کړو نو بے اختیاره به ئې دَ سترګو نه اوښکې روانې شوې"، او دَ قرآن دَ تلاوت سره به ئې ژړل. نو چې دَ مشرکانو ښځو او ماشومانو به دهٔ ته کتل نو هغوي به هم دَ دهٔ دَ وجې نه ژړل، دَ دهٔ به هم اوښکې بهیدې او دَ هغوې به هم اوښکې بهیدې.

قریش راغونډ شول وائي: یره! دا ابو بکر چې مونږه دَ کوم یَو څیز نه منع کړے وو نو دے هم هغه کار کوي هسې نهٔ چې زمونږه زنانه او زمونږه ماشومان بے دینه کړي (نعوذ بالله!). نو دوي ابن الدغنه پسې سؤال جواب اوکړو چې راشه! یا دا سړے منع کړه او یا مونږ ته خپل ضمانت واپس کړه او دے لرې کوه دَ ځان نه. هغهٔ وریسې راغے ابو بکر ﷺ ته وائي: چې ګوره! ما درله ضمانت کړے دے نو تهٔ دا عبادت دننه کوه، تلاوت دننه کوه، او یا ما ته خپله ذمه واپس را کړه. ابو بکر ﷺ ورته وائي:

"إِنِّي أَرُدُّ إِلَيْكَ جِوَارَكَ، وَأَرْضَى بِجِوَارِ اللهِ".[1]

"روره! ضمانت دې واپس واخله او زهٔ دَ الله پهٔ ضمانت باندې خوشحاله یم"، الله به زما حفاظت کوي، ما پریږده چې څهٔ کیږي نو هغه به کیږي خو زهٔ دننه کیږم نهٔ.

نو دا ډیر دَ تکلیف وخت وو، دَ ډیرو مشکلاتو وخت وو.

**دَ ابو طالب وفات**

بیا پهٔ دغه کال باندې دَ دې نه پس علماؤ لیکلي دي: تقریبًا دَ رسول الله ﷺ دَ عُمر نهه څلویښتم (۴۹) کال وو او اتهٔ (۸) میاشتې پرې دَ پاسه وې چې دَ نبي ﷺ ترهٔ ابو طالب وفات شو. او څوک وائي: چې دا دَ نبي ﷺ دَ نبوّت لسم کال وو. او څوک نهم یادَوي. دَ نبي ﷺ دَ هجرت نه درې کاله مخکښې دا واقعه شوې وه. دَ نبي ﷺ لوئي سپورت خو دَ هغهٔ ترهٔ کولو، ابو طالب به کولو، نو دغه ترهٔ دَ نبي ﷺ وفات شو. نبي ﷺ دَ خپل ترهٔ پهٔ وفات باندې ډیر سخت پریشانه وو، حدیث

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الكفالة، باب جوار أبي بكر في عهد النبي ﷺ وعقده: (98/3).

کښېښ راځي: نبي ﷺ راغے کله چې ئې دا تره وفات کيدو، دَ تره سره ئې ابو جهل بن هشام او عبد الله بن ابي اميه (کافران) هم ناست وو، نو نبي ﷺ سخت پريشانه وو، تره ته وائي:

«يَا عَمِّ، قُلْ: لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ، كَلِمَةً أَشْهَدُ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللهِ».[1]

"تره! تۀ ما ته "لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ" پۀ دې غوږ کښې اووايه! دا داسې کلمه ده چې قيامت کښې به پرې الله ما له ستا شفاعت جائز کړي نور سفارش به درته زۀ کوم".

خو ابو طالب ورته اوکتل وائي: وراره! خفه کيږه مۀ؛ بيا به دا قريش وائي: چې آخر کښې دَ أور نه اوويريدو، او دَ أور دَ وجې ئې دَ پلار نيکۀ دين پريخودو. وائي: أور ته دې لاړ شم خو دَ پلار نيکۀ دين پريخودو ته پۀ دې وخت کښې تيار نۀ يم، بيا به دا جينکۍ ما له پيغورونه راکوي چې دَ پلار نيکۀ دين ئې دَ أور دَ وجې نه پريخودو. وائي: أور ته دې لاړشم خو دَ پلار نيکۀ دين نۀ پريږدم:

"فَاخْتَارَ الْعَارَ عَلَى النَّارِ". "هغۀ غيرت ئې دَ جهنم پۀ أور غوره کړو"، خو دَ جاهليت غيرت ئې پرې نۀ خودو.

نبي ﷺ دَ هغۀ دَ خوا نه روان شو او دے دَ کفر پۀ حالت کښې وفات شو. نبي ﷺ ډير پريشانه وو چې تره مې ټول عمر خدمتونه اوکړل نو يَو خو مې سر پرست ختم شو او بل دا چې کلمه ئې اونۀ وئيله، بے ايمانه دَ دنيا نه لاړو، ډير زيات پريشانه وو. الله تسلي راليږي:

﴿إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾.[2]

ـــ پېغمبره! تۀ هدايت نۀ شې کولے هغه چا ته چې ستا ورسره مينه وي ليکن الله رب العزة هدايت کوي چا ته چې اوغواړي".

## دَ ابو طالب باره کښې دَ جمهورو مسلک

دَ جمهورو علماؤ مسلک دا دے: چې ابو طالب دَ کفر پۀ حالت کښې دَ دنيا نه تلے دے، دے کافر وفات شوے دے.

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب إذا قال المشرك عند الموت: لا إله إلا الله، برقم: (1360).

(2) [سورة القصص: 56].

بعضې خلق دا زور لګوي: چې ابو طالب مسلمان وو، ليکن شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي ﷫ ليکلي دي: "اہل سنت والجماعت کا عقیدہ یہی ہے: کہ ابو طالب کفر ہی پر مرا ہے، جیسا کہ آیات اور احادیث سے واضح ہو چکا ہے"۔ (1)

"دَ اهلِ سنت والجماعت دَ علماؤ متّفقه فيصله ذا ده: چې ابو طالب پۀ کفر باندې وفات شوے دے لکه څنګه چې دَ آيتونو او احاديثو نه دا خبره واضحه ده".

او صحيح حديث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: "ابو طالب به جهنم کښې وي، خو چونکه زما ئې ډير خدمتونه کړي دي نو دَ دې پۀ وجه باندې به الله تعالٰی پۀ هغۀ باندې عذاب کښې تخفيف راولي (عذاب معاف نۀ دے)، دے به نري غوندې اُور کښې ولاړ وي چې تر ګيټو پورې به ئې وي".

نو دَ ابو طالب بِه تر ګيټو پورې اُور رار سيږي. او بل يَو حديث کښې راځي: "دۀ ته به دَ اُور دوه پنړۍ واچولے شي چې دَ هغې دَ وجې نه به ئې دَ خپو دَ لاندې اُور بليږي، او دَ هغې دَ وجې نه به ئې پۀ سر کښې دماغ ايشيږي او دے به زړۀ کښې وائي: چې زما نه سخت عذاب پکښې دَ چا نشته"؛ ځکه دَ جهنم عذاب خو ډير سخت دے.

## دَسيدة خدجة الكبرىٰ ﷺ وفات

دَ ابو طالب دِ مرګ نه پنځۀ (٥) ورځې بعد يا درې (٣) ورځې بعد دَ نبي ﷺ بي بي خديجة الكبرٰى ﷺ هم وفات شوه. دې کال ته دَ علماؤ پۀ نزد "عام الحزن" (دَ غمونو کال) وائي. دا دَ پريشانو هغه کال وو، يَو خوا دَ کافرانو دَ طرف نه هغه پابندۍ وې، پۀ شعبِ ابي طالب کښې درې کاله تکليفونه وو، پريشانۍ وې، چې دَ هغې نه آزاد شول نو دَ رسول الله ﷺ ترۀ وفات شو، دَ هغۀ غم نه لا فارغ شوے نۀ وو چې بي بي ئې وفات شوه. خديجة الكبرٰى ﷺ هغه بي بي وه چې دَ دې پۀ ژوند نبي ﷺ دَ بلې بي بي سره وادۀ نۀ وو کړے، او ډيره يَو خوښياره زنانه وه، دَ الله دَ نبي ﷺ ډيره تابعداره وه.

حديث کښې راځي: نبي ﷺ دَ هغې پۀ فراق ډير زيات پريشانه وو، خوله بنتِ حکيم ﷺ نبي ﷺ

(1) انظر: "سيرة المصطفٰى": (253/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق مخرّجا: (220/1).

ته وائي: يا رسول الله! ته خو ډير خفه ئې؟

نبي ﷺ ورته وائي: بالكل خفه يم، ولې نهٔ؟!

«كَانَتْ أُمَّ الْعِيَالِ، وَرَبَّةَ الْبَيْتِ».[1]

"خديجه خو زما د تولو بچو مور وه، او خديجه خو زما د كور پرورش كونكې وه"، ټول كور پهٔ هغې راغونډ وو. نو زهٔ به خفه نهٔ يم؟ حديث كښې راځي: كله چې د خديجة الكبرٰى ﷺ د زنكدن حال شروع وو نو نبي ﷺ ئې خوا ته راغے، نبي ﷺ ورته وائي: خديجې! دا كوم حالت دې شروع دے د زنكدن؟ تهٔ خفه ئې، پريشانه ئې، چې تهٔ كله وفات كيږې صحيح ده چې تا له به تكليف وي او پريشاني به وي خو كله كله الله انسان له پهٔ تكليف كښې ډير خير اوكرځوي.

او يو روايت كښې راځي: د الله نبي ﷺ ورته د جنت انكور وركړل وائي: دا خوره!. او پهٔ يو حديث كښې راځي: نبي ﷺ ورته اووئيل: خديجې! چې ځې كنه نو تهٔ خو د دنيا نه رخصتيږې خو ستا پهٔ هغې بنو به زما سلام وائې. "بنه" د خاوند هغې بلې ښځې ته وائي. وائي: څوك دي؟ نبي ﷺ ورته وائي: د فرعون ښځه ده "آسيه بنتِ مزاحم" او د عيسٰى عليه السلام مور ده "مريم بي بي"، چې دا دواړه به الله ماته پهٔ هغه جهان كښې راكوي، پهٔ هغوي زما سلام وايه.

خديجې ﷺ سره د نبي ﷺ ډيره مينه وه. عائشه ﷺ فرمائي: ډير وخت پس كله كله به نبي ﷺ شروع شو د خديجې ﷺ به ئې ډير تعريف كولو، چې خديجه ﷺ داسې وه او داسې وه. وائي: مونږه به ورته وئيل: چې بس دنيا كښې الله يو خديجه پيدا كړې وه، بله ښځه چرته دنيا كښې نهٔ وه چې تهٔ د هغې دومره صفتونه كوې!. نبي ﷺ ورته اووئيل: خديجه خو خديجه وه. او چې كله به نبي ﷺ داسې څهٔ ښهٔ شے پوخ كړو نو نبي ﷺ به اووئيل: دا فلانئ زنانه ته يوسئ، فلانئ زنانه ته ئې يوسئ وائي: دا ولې؟! وائي: ځكه چې خديجې ﷺ به پهٔ خپل ژوند دوي كره تحفې ليږلې نو زهٔ ځكه ليږم چې د هغې هغه ملګرې دا اونهٔ وائي: چې نن خديجه نشته. نو كني مونږ له د الله نبي ﷺ څهٔ نهٔ راليږي. دومره مينه وه د نبي ﷺ د خديجة الكبرٰى ﷺ سره.

---

(1) انظر: "السيرة النبوية" لمحمد بن محمد بن سويلم أبي شهبة: (397/1).

يَو روايت کښې راځي: نبي ﷺ دَ هغې پۀ فراق ډير زيات پريشانه وو، تر دې چې کله ئې دَ عائشې رضي الله عنها سره نکاح اوشوه نو بيا دَ نبي ﷺ هغه فراق او جدائي دَ هغې هغه غم لږ کم شو.

نو دا عام الحزن وو. يَو خوا نبي ﷺ او صحابۀ رضي الله عنهم باندې دومره سختي او بل خوا دَ نبي ﷺ هغه ترۀ چې دَ نبي ﷺ مَلاتړ وو، چې دَ الله نبي ﷺ ته ئې وئيلي وو:

وَاللهِ لَنْ يَصِلُوا إِلَيْكَ بِجَمْعِهِمْ حَتَّى أُوَسَّدَ فِي التُّرَابِ دَفِينَا[1]

"قسم پۀ خدائے دے! ورارۀ! کۀ دا ټول عرب راجمع شي تا ته نۀ شي نزدې کيدے، هله به تا ته نزدې کيږي چې ما له دَ خاورو بالخت جوړ کړے شي".

نو هغه ترۀ هم دَ نبي ﷺ وفات شو، بي بي ئې هم وفات شوه.

تر دې ځائے پورې سيرت بيان شو باقي به ان شاء الله نورو جُمعو کښې بيانوؤ.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(1) انظر: "السيرة النبوية" لابن كثير: (464/1).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه اوولسمه

## "دَ نبي ﷺ قبائلو له دعوت ورکول او دَ طائف واقعه "

بتاريخ: 10-06-2022

مقام: جلسیٔ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه اوولسمه

## "دَ نبي ﷺ قبائلوله دعوت ورکول او دَ طائف واقعه "

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لاَ أَوَّلَ لَهُ وَلاَ آخِرَ لَهُ لاَ ضِدَّ لَهُ وَلاَ نِدَّ لَهُ وَلاَ مُمِدَّ لَهُ وَلاَ بَشِيْرَ لَهُ وَلاَ نَذِيْرَ لَهُ وَلاَ وَزِيْرَ لَهُ وَلاَ مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.(1)

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرتِ طيبه شروع وو، تر دې ځائے پورې خبره پهٔ تيره جُمعه کښې شوې وه چې کله کافران پوهه شول چې دَ دې پيغمبر ﷺ سره مونږ جنګ جګړه څکه نهٔ شو کولے چې قوم ئې پهٔ سر اودريږي او دشمني او جنګ جوړيږي نو راغونډ شول او دَ نبي ﷺ او دَ هغهٔ دَ قوم سره ئې مقاطعه اوکړه او بائيکاټ ئې اوکړو. پهٔ شعبِ ابي طالب کښې درې (۳) کاله رسول الله ﷺ او دَ هغهٔ چې څومره رشته دار او خپلوان وو دَ هغوي سره مقاطعه وه، رشتې ورسره بندې وې، سودا ورکول هغوي ته يا دَ هغوي نه اغستل دا بند وو، تعلقات بند وو. درې (۳) کاله بعد بيا رو رو پهٔ خلقو کښې شعور راتلو چې يره! دا خو ظلم دے او نا روا دي او وينهٔ هغه کاغذ هم تول خوړلے وو، او ختم کړے ئې وو کوم چې دوي دَ مقاطعې پهٔ عنوان ليکلے وو. نو هغهٔ مقاطعه درې (۳) کاله بعد بيا ختمه شوه او آزادي مِلاؤ شوه خو بيا ئې هم مسلمانانو ته

(1) [سورة الأحزاب: 21].

تکلیفونه رسول، څوک مهاجر شول، څوک پهٔ هغې ځائے کښې وو. نبي ﷺ خو خپل کار پرېښودو نهٔ نو نبي ﷺ بیا دَ دعوت کار شروع کړو. دا دریم قسم مرحله وه، اول دعوت دا وو: چې نبي ﷺ به پټ پټ یَو یَو کس له پهٔ مکّه کښې دعوت ورکولو، او کهٔ هغهٔ به منلو او کهٔ به ئې نهٔ منلو خو کوړے چې بل څوک درنه خبر نهٔ شي. بیا دویم قسم دعوت دا وو: چې نبي ﷺ پهٔ مکه کښې ښکاره دعوت شروع کړو، دَ هغې دَ لاسه به هغوي له دا تکلیفونه او مصیبتونه مِلاویدل.

**دَ نبي ﷺ دَ مکّې نه بهر خلقو له دَ اسلام دعوت**

دا اوس دریمه مرحله ده: چې رسول الله ﷺ دَ مکّې مکرمې نه بهر چې کوم خلق وو هغوي ته به تلو او دَ اسلام دعوت به ئې ورکولو اګر چې هغوي به دَ مکّې نهٔ وو، دَ نورو ځایونو به وو هغوي له دَ دعوت سلسله ئې شروع کړه.

**دَ نبي ﷺ طائف ته تلل**

لسم (۱۰) کال دَ نبوّت دَ رسول الله ﷺ وو، او عیسوي تقریبًا شپږ سوه نوؤلسمه (۶۱۹) وه، او دا اوس دو هزار بائیس (۲۰۲۲) دے، کوم چې هجري کال دے هغه خو لا شروع شوے نهٔ دے چې مونږه ئې هجري کال یاد کړو. دَ شوّال میاشت وه رسول الله ﷺ سوچ اوکړو: چې بهر خلقو له دعوت ورکوم نو اول طائف ته لاړو، طائف دَ مکّې نه تقریبًا شپیتهٔ (۶۰) میله بهر یَو ځائے دے، چې دا دَ سفر دَ هغې انداز نه سبوا دے؛ ځکه دَ سفر انداز اتهٔ څلویښت (۴۸) میله دے او دا شپیتهٔ (۶۰) میله دے. نبي ﷺ دا شپیتهٔ (۶۰) میله مزل پهٔ خپلو خپو باندې پیدل کړے وو، تلے هم پیاده وو او بیا راغلے هم پیاده وو، ورسره یَو غلام وو زید بن حارثه ﷛، دے ورسره ملګرے وو او شپیتهٔ (۶۰) میله لرې دَ الله نبي ﷺ طائف ته تلے وو. لس (۱۰) ورځې ئې تقریبًا هلته تیرې کړې دي، بعضې روایاتو کښې میاشت راځي او هلته ئې هغې خلقو له دعوتونه ورکول.

**پهٔ لاره تلل او دَ نبي ﷺ خلقو له دعوت ورکول**

پهٔ دې لاره لاره چې روان وو نو دا هم دَ دعوت سلسله وه، چې کله به پهٔ لاره کښې پهٔ یَو

قبیله باندې تیریدو نو هغوي له به ئې دَ اسلام دعوت ورکولو، خو هغوي به منلو نهٔ، بَس صرف اوریدو به ئې خو منلو به ئې نهٔ. نبي ﷺ آخر طائف ته اورسیدو او چې کله طائف له اورسیدو نو دَ ثقیف قبیلې درې (۳) رونړه وو چې هغوي دَ دې ټول طائف سرداران او مشران وو: (۱) یَو: عبد یالیل، (۲) دویم: مسعود وو او (۳) دریم: حبیب وو. چې دا درې واړه دَ عَمرو بن عُمیر الثقفي بچي وو. درې واړه خلقو مشران جوړ کړي وو چې دا اوښیاران دي. نبي ﷺ اووئیل: کهٔ دا مشران پوهه شول کیدے شي چې دا کشران پهٔ خپله باندې سم شي. هغوي ته نبي ﷺ ورغے او هغوي له ئې ډیر پهٔ خائسته انداز کښې دعوت ورکړو.

(۱) هغه یَو اووئیل: کهٔ چرته تهٔ الله پیغمبر رالیږلے ئې نو زهٔ به دَ خانه کعبې دا کپړه کټ کړم. معنٰی: تهٔ دَ سره پیغمبر نهٔ ئې.

(۲) هغه دویم کس ورته اووئیل: مزه! الله بل څوک پیغمبر نهٔ پیژندو، بل څوک الله ته نهٔ وو معلوم چې تهٔ ئې رالیږلې، یَو غریب او یَو یتیم، بے موره او بے پلار ئې رالیږلو چرته خان نواب، چرته مخوریز سړے ئې ولې نهٔ پیغمبر کولو، بل الله.نهٔ وو لیدلے چې تهٔ ئې رالیږلې، نو هغهٔ هم انکار اوکړو.

(۳) هغه دریم نبي ﷺ ته وائي: پهٔ خدائے قسم! چې زهٔ تا سره دَ سره خبرې نهٔ کوم، کهٔ چرته تهٔ پیغمبر ئې نو ما له نهٔ دي مناسب چې زهٔ تا سره خبرې اوکړم او کهٔ تهٔ پیغمبر نهٔ ئې نو بیا خو تهٔ دروغژن ئې نو بیا خو هډو پکار نهٔ دي چې زهٔ تا سره خبرې اوکړم نو لِهٰذا زهٔ نهٔ تا ته آؤ کوم او نهٔ درنه انکار کوم زما دَ خوا نه ځه!.

**دَ نبي ﷺ دَ طائف نه اوباسل**

نبي ﷺ چې پوهه شو چې دا درې واړه زما خبره نهٔ مني نو نبي ﷺ دَ هغوي نه روان شو. چې کله روان شو نو پهٔ دې تلو تلو کښې دوي له یَو خبره کوي چې ګوره! منئ ئې خو نهٔ خو زما دا خبره بل چا ته مهٔ کوئ، ځان سره ئې اوساتئ. بیا نبي ﷺ پهٔ طائف کښې لس (۱۰) ورځې پاتې شوے وو، او چې کوم اوچت سړے به وو هغې یَو یَو پسې کور ته ورغلے وو او هغوي له ئې دعوت ورکړے وو. هغوي دَ نبي ﷺ دَ دعوت نه انکار اوکړو او رسول الله ﷺ ته وائي: چې:

"أُخْرُجْ مِنْ بِلاَدِنَا".(1) دعوت خو لرې خبره ده "زمونږه دَ دې ښار نه اوځه!"، زمونږ دَ دې علاقې نه اوځه، چرته خپل کلي کښې ولې مسئلې نهٔ کوې، چې دلته راغلے ئې مونږ له کار کوري، زمونږ کلي کښې شر پيدا کوې!!!. نبي ﷺ پسې ئې ماشومان، کم عقل او ليوني ئې وريسې کړل او هغوي ته ئې اووئيل: چې دهٔ پسې ګرځئ او دے پهٔ کاڼړو اولئ، چغې وريسې اوباسئ، دَ رسول الله ﷺ پهٔ خلاف پهٔ طائف کښې ډير زيات نوجوانان تيار شول، داسې ظالمان وو چې دَ رسول الله ﷺ پهٔ خلاف کښې ئې کسان را اوچت کړل، نبي ﷺ چې پهٔ کومه لار روان وو نو دَ لارې يَو طرف ته او بل طرف ته ورته اودريدل، هر يَو به نبي ﷺ ته کنځلې کولې، پهٔ کاڼړو به ئې ويشتو چې دَ هغوي پهٔ خوا به تيريدو، تر دې چې دَ نبي ﷺ بدن مبارک ټول پهٔ وينو باندې لوند شو، پنړې مبارکې ئې دَ وينو ډکې شوې. نبي ﷺ روان دے او دوي ئې پهٔ کاڼړو اولي.

## دَ نبي ﷺ دَ غلام زيد بن حارثه ﷺ حالت

زيد بن حارثه ﷺ چې دَ نبي ﷺ غلام وو، هغهٔ دَ رسول الله ﷺ سره دے، يَو کس دے نو هغه څهٔ کولے شي، يَو خوا ټول کافر دي او بل خوا يَو رسول الله ﷺ او زيد بن حارثه ﷺ دي، خو صحابؓ ته خو رسول الله ﷺ دَ خپل ځان نه زيات محبوب وو، زيد بن حارثه ﷺ کوشش کوي چې خپل ځان کاڼري ته مخامخ کړي چې رسول الله ﷺ بچ کړي خو کله دَ يَو طرف نه ګزار او کله دَ بل طرف نه ګزار... تر دې پورې چې دَ زيد بن حارثه ﷺ دا سر ټول پهٔ کاڼړو زخمي شوے وو، چې پهٔ رسول الله ﷺ به ئې ګزار کولو نو پهٔ هغهٔ به لګيدو. پهٔ دې کښې رسول الله ﷺ دَ طائف نه درې ميله بهر تر هغې ځائے پورې هلکان دَ هغوي پسې را روان وو او پهٔ کاڼړو ئې ويشتو، کله چې به دَ الله نبي ﷺ لږ حصار شو، ستړے به شو؛ ځکه چې سړے زخمي وي نو بيا مزل هم نهٔ شي کولے نو چرته چې به دَ الله رسول ﷺ يَو ديوال ته يا يَو سوري ته به کيښناستو دمه به ئې کوله نو دوي به بيا را منډه کړه وائي: هغهٔ دے ولاړ دے، يا ناست دے شابئ! ځان وريسې اورسَوئ، بيا به

(1) انظر: "الرحيق المختوم لصفي الرحمن المباركفوري، الرسول ﷺ في الطائف: (113).

ئې نبي ﷺ پسې را منډې کړې او نبي ﷺ به ئې پاسولو، چې شابه! زر ځه، چې حصار نهٔ شې.

**دَ نبي ﷺ يَو باغ ته رسيدل او دَ الله نه دعاء کول**

تر دې پورې چې دَ الله نبي ﷺ يَو باغ ته اورسيدو، هغه باغ دَ عتبه او شيبه وو، چې دا دواړه دَ ربيعه ځامن وو. درې (۳) ميله بهر دَ طائف نه باغ وو، نو کله چې دَ الله پيغمبر ﷺ هغه باغ ته راغے نو هغوي اوويل: هسې نهٔ چې دَ باغ دا مالک را ته غصه شي نو هغوي دَ نبي ﷺ نه واپس شول، وائي: يره! پريږدئ. نبي ﷺ دَ انګورو يَو وُنه وه دَ هغې لاندې کيښناستو. او چې کله کيښناستو نو دَ نبي ﷺ حالت ډير زيات خراب وو، زخمي زخمي وو، درد مند درد مند وو، او ډير خفه او پريشانه وو، پهٔ دې حالت کښې نبي ﷺ دعاء شروع کړه، رحمةٌ للعالَمين وو کنه!، نبي ﷺ دعاء کوي فرمائي:

«اللهُمَّ إِلَيْكَ أَشْكُو ضُعْفَ قُوَّتِي، وَقِلَّةَ حِيلَتِي، وَهَوَانِي عَلَى النَّاسِ أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ، أَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ، إِلَى مَنْ تَكِلُنِي؟، إِلَى عَدُوٍّ يَتَجَهَّمُنِي، أَمْ إِلَى قَرِيبٍ مَلَّكْتَهُ أَمْرِي، إِنْ لَمْ تَكُنْ غَضْبَانًا عَلَيَّ، فَلاَ أُبَالِي، إِنَّ عَافِيَتَكَ أَوْسَعُ لِي، أَعُوذُ بِنُورِ وَجْهِكَ الَّذِي أَشْرَقَتْ لَهُ الظُّلُمَاتُ، وَصَلَحَ عَلَيْهِ أَمْرُ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ أَنْ تُنْزِلَ بِي غَضَبَكَ، أَوْ تُحِلَّ عَلَيَّ سَخَطَكَ، لَكَ الْعُتْبَى حَتَّى تَرْضَى، لاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِكَ».[1]

"يا الله! زهٔ تا ته شکايت کوم چې زهٔ ډير کمزورے يم، زما قوت او طاقت نشته، الله ما له پوره چل هم نهٔ راځي، الله دَ چل را سره هم کمے دے، الله! زهٔ پهٔ خلقو باندې سپک يم؛ ځکه زهٔ يَواځې يم او خلق ډير دي، اے هغه پهٔ ټولو جهان کښې لوئي رحم کونکي ذاته! تهٔ دَ ټول جهان نه لوئي رحم کونکے ئې (يَو روايت کښې داسې دي: اے الله! تهٔ دَ هغې خلقو رب نې چې هغوي عاجزان او کمزوري دي، دَ کمزورو ربّ تهٔ ئې)، يا الله! تهٔ ما چا ته سپارې؟ دشمن ته مې حواله کوې چې هغه تا زما مشر کړے دے يا خپلو ته مې حواله کوې چې هغوي زما سره ظلم او زياتے کوي؟ الله! کهٔ تهٔ ما ته غصه نهٔ ئې نو پهٔ دې تکليف هم زما څهٔ پروا نشته، الله! ستا معافي چې ده هغه ما له دَ دې نه ډيره فراخه ده، دَ دې نه ډيره فائده منده ده. الله! زهٔ ستا دَ هغې مخ پهٔ نور باندې ستا پورې پناه غواړم چې ټولې تيارې دَ هغې دَ وجې نه رڼا دي، او الله! دَ دنيا او دَ آخرت

(1) أخرجه الطبراني في "المعجم الكبير"، برقم: (181)، (13/73).

کارونه په هغې سمیرې دَ دې نه پناه غواړم الله! هسې نهٔ چې تهٔ پهٔ ما باندې چرته غضب نازل کړې، یا دَ دې نه چې چرته ستا غصه پهٔ ما نازله نهٔ شي، الله تا ته رجوع کوم تر دې پورې چې تهٔ رضاء شې، نشته دے دَ ګناه نه دَ اوړیدو طاقت او نشته دے دَ نیکۍ طاقت مګر پهٔ تا دے".

**دَ ربیعه دَ ځامنو دَ نبي ﷺ خوا ته راتلل**

دا دعاګانې دَ الله نبي ﷺ غوښتې، دَ ربیعه ځامنو چې اولیدو چې نا آشنا سړے دے، باغ له راغلے دے، او تږول پهٔ وینو سور دے نو دوي ورله خوا له راغلل، او زړهٔ ئې پرې خوږ شو، اګر چې کافر وو خو دَ نبي ﷺ پهٔ دې حال ئې زړهٔ خفه شو، خپل یَو نصراني غلام هغهٔ ئې را اوغوښتو، دَ غلام نوم ئې "عداس" وو، دا دَ دې باغ دَ مالکانو غلام وو. عداس ته وائي: اے عداسه!

"خُذْ قِطْفًا مِنْ هَذَا الْعِنَبِ، فَضَعْهُ فِي هَذَا الطَّبَقِ، ثُمَّ اذْهَبْ بِهِ إِلَى ذَلِكَ الرَّجُلِ، فَقُلْ لَهُ يَأْكُلُ مِنْهُ".

"ورشه دَ انګورو یَو غُنچک را واخله او پهٔ دې شکرۍ کښې ئې کیږده بیا دا دې سړي له ئې یوسه، دهٔ له ئې ورکړه او ورته اووایه: چې دَ دې نه اوخوره!".

هغهٔ هغه غُنچک راواغستو او رسول الله ﷺ ته ئې راوړو، نبي ﷺ تږے هم دے او اوږے هم دے، پهٔ وینو باندې سور هم دے، تږول خوږ خوږ دے، دَ نبي ﷺ مخې له ئې چې کله کیخودو نو رسول الله ﷺ لاس ور اوږد کړو او نبي ﷺ وائي: بسم الله. بسم الله ئې اووئیله او بیا ئې دَ هغې نه خوراک شروع کړو، نو عدّاس چې دَ بسم الله دا تکے واوریدو نو هغه غلام خو کافر وو، هغهٔ خو دا نهٔ پیژندو نو عدّاس نبي ﷺ ته وائي:

"وَاللهِ إِنَّ هَذَا الْكَلَامَ مَا يَقُولُهُ أَهْلُ هَذِهِ الْبِلَادِ".[1]

دا تا چې کوم کلام اوکړو نو "قسم پهٔ الله چې دَ دې علاقې دا خلق چې کله خوراک شروع کوي نو هغوي خو پکښې دا نهٔ وائي"، دا تا څنګه کلام اوکړو؟

**دَ رسول الله ﷺ دَ عدّاس نه تپوس کول**

رسول الله ﷺ ورته یَو خبره کوي، وائي: هلکه! تهٔ دَ کوم ښار ئې؟ دَ کوم ځائے ئې؟؛ څکه

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (421/1)..

دے خو غلام وو، دَ طائف خو نهٔ وو. او بل تپوس ترې دا کوي: چې تهٔ پهٔ کوم دين باندې ئې؟ نو دے ورته وائي: زهٔ دَ نينوٰی علاقې يم، نينوٰی پهٔ موصل ښار کښې يَو علاقه وه، کوم ځائے کښې چې الله رب العزة يونس عليه السلام پيغمبر راليږلے وو، او وائي:

"وأنا نَصْرَانِيٌّ". "زهٔ نصراني يم".

نبي ﷺ ورته اووئيل: چې خا! "مِنْ قَرْيَةِ الرَّجُلِ الصَّالِحِ يُونُسَ بْنِ مَتَّى".

"تهٔ دَ هغه ډير نيک انسان دَ علاقې ئې چې هغه ډير نيک انسان وو، دَ هغهٔ نوم يونس بن متّٰی عليه السلام وو"، نو تهٔ دَ يونس عليه السلام دَ علاقې ئې.

## دَ عدّاس دَ نبي ﷺ نه تپوس کول

نو دا عدّاس دَ الله پيغمبر ﷺ ته وائي: تهٔ يونس بن متّٰی څنګه پيژنې؟ نبي ﷺ ورته وائي: "ذَاكَ أَخِي، كَانَ نَبِيًّا وَأَنَا نَبِيٌّ". هغه زما ورور دے، "هغه هغې وخت کښې نبيَ وو او زهٔ اوس نبي يم (او دَ انبياؤ عليهم السلام دين خو يَو وي کنه) هغه زما ديني ورور دے". نو هغهٔ هم پيغمبر وو او زهٔ هم پيغمبر يم. دے ورته وائي: خا! تهٔ پيغمبر ئې!؟ ځکه دې دا خلق پهٔ کاڼړو باندې اولي. نو عدّاس چې دے غلام وو نو را منډه ئې کړه او دَ رسول الله ﷺ لاس او خپې ئې ښکلول شروع کړل، او کله دَ الله دَ نبي ﷺ تلي ښکلوي، هاں! لکه تهٔ دَ الله رسول ئې.

اوس دَ هغې ځائے نه ورته دَ ربيعه ځامن ګوري، نو دا يَو دَبل ته وائي:

"أَمَّا غُلَامُكَ فَقَدْ أَفْسَدَهُ عَلَيْكَ".

"هلکه! غلام دې ورليږلے وو (چې انګور ورته يوسه) هغه خو ئې درله خراب کړو". خپل دين ته ئې درنه واړولو، اوګوره! هغه اوس لګيا دے هغهٔ ښکلوي. عدّاس چې کله واپس راغے نو دې خپلو مالکانو (دَ ربيعه ځامنو) ورته اووئيل:

"وَيْلَكَ يَا عَدَّاس! مَا لَكَ تُقَبِّلُ رَأْسَ هَذَا الرَّجُلِ وَيَدَيْهِ وَقَدَمَيْهِ؟".

"هلاک شې اے عدّاسه! دا تا څهٔ کول، تا خو هغه سړے ښکلولو، لاسونه او خپې دې ورله ښکلولې؟".

نو عدّاس ورته وائي:

"يَا سَيِّدِي مَا فِي الأَرْضِ شَيْءٌ خَيْرٌ مِنْ هَذَا، لَقَدْ أَخْبَرَنِي بِأَمْرٍ مَا يَعْلَمُهُ إِلاَّ نَبِيٌّ".

"اے زما سرداره! قسم په الله دے! چې دَ دې انسان نه په مخ دَ زمکه باندې بل بهترين انسان نشته، دا خو دَ الله رسول دے؛ ځکه چې دهٔ ماله دَ یو داسې یو څيز خبر را کړو چې دَ هغې صرف نبي ته پته وي، غير نبي ته دَ هغې پته نهٔ وي"، دَ یونس ﷺ قصه ئې چې ما ته کوله نو دا صرف نبي ته پته وي، عام خلق په دې څهٔ پوهيږي؟ دوي ورته اووئيل:

"وَيْحَكَ يَا عَدَّاسُ، لاَ يَصْرِفَنَّكَ عَنْ دِينِكَ، فَإِنَّ دِينَكَ خَيْرٌ مِنْ دِينِهِ".[1]

"اے عدّاسه! تباه شې خبردار! کورے دَ خپل دين نه دې وانهٔ ړوي؛ ځکه ستا دين (چې نصرانيت دے) غوره دے دَ دهٔ دَ دين نه"، نو په دې خپل دين باندې ټينګ شه. نو هغهٔ خو غلام وو هغهٔ کښې دومره زور چرته وو.

**دَ نبي ﷺ مکې ته واپس راتلل او دَ جبرئيل امين ﷺ سره ملاقات کول**

نبي ﷺ مکې ته را روان دے، هغې باغ نه را روان شو، ډير سخت پريشانه دے، زړهٔ ئې خفه دے، قرن الثعالب دَ دې مکې او دَ طائف په مينځ کښې یَو ځائے دے، واپس مکې ته را روان دے. قرن الثعالب ته چې را اورسيدو نو دغه ځائے کښې جبرئيل امين ﷺ ورته مخې له راغے، او ورسره یَو فرشته ده، چې هغې ته "مَلَكُ الْجِبَال" وائي، هغه فرشته چې هغې له الله تعالى دَ غرونو دَ اوچتولو او بل ځائے ته دَ منتقل کولو طاقت ورکړے دے، جبرئيل امين ﷺ راغے او نبي ﷺ ته وائي: چې تا سره یَو مشوره کوم..... بخاري کښې بيا تفصيلاً حديث راځي، اوږد حديث دے دَ هغې په آخر کښې دا دي: نبي ﷺ فرمائي: زهٔ داسې را روان وَوم، په ځان نهٔ پوهيدم (کله چې سړے ډير پريشانه وي نو بيا په ځان نهٔ پوهيږي، په سرچونو کښې ډوب وي، پته ورته بيا نهٔ لګي چې دا زهٔ په کوم ځائے کښې روان يم؟). نبي ﷺ وائي: چې ما اوکتل نو قرن الثعالب يا قرن المنازل کښې روان يم (هغې وخت کښې ورته قرن الثعالب وئيلو او قرن المنازل ورته هم وائي)، نو چې سر مې اوچت

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (421/1).

کړو او ما اوکتل نو زما د سر دَ پاسه وریځ وه چې په ما ئې سورے کړے، هغه وریځ ما سره روانه وه، نو ما چې اوکتل نو په هغې وریځ کښې جبرئیل ؑ وو، نو:

«فَنَادَانِي فَقَالَ: إِنَّ اللهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ لَكَ، وَمَا رَدُّوا عَلَيْكَ، وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيهِمْ».

"جبرئیل امین ؑ ما ته آواز اوکړو: چې اے دَ الله رسوله! الله تعالی ستا دَ قوم خبرې هم واوریدې او ستا خبرې ئې هم واوریدې او دَ هغوي جوابونه ئې هم واوریدل او الله تا ته یو دَ غرونو فرشته رالیږلې ده (چې دَ دې کار دے دَ غرونو دَ یو ځائے نه بل ځائے ته منتقل کول، په غرونو دَ دې وَس رسي)، اوس خوښه ستا ده (دا طائف خو هسې هم غره ئیزه علاقه ده) چې ته څنګه غواړې هغه شان ورته اووایه دوي به درته دَ غرونو په دې مینځ کښې اوچقوي، او په یو ځل به ئې تباه کړي".

«فَنَادَانِي مَلَكُ الجِبَالِ فَسَلَّمَ عَلَيَّ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ، ذَلِكَ فِيمَا شِئْتَ، إِنْ شِئْتَ أَنْ أُطْبِقَ عَلَيْهِمُ الأَخْشَبَيْنِ؟".

"هغه دَ غرونو فرشتې ما ته آواز اوکړو، ما باندې ئې سلام واچولو، بیا ما ته وائي: اے محمده! کهٔ ستا خوښه وي چې زهٔ پرې دا دوه غرونه را جوخت کړم". یو دَ مکې دَ ابي قبیس او بل قیقعان غر وو نو کهٔ ستا خوښه وي چې عذاب پرې راولو.

دا کهٔ اوس بل څوک وے نو وئیل به ئې چې یو سیکنډ ورته صبر اونهٔ کړې خو پیغمبر ﷺ څهٔ وائي؟ (اللهُ! اللهُ!)، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل:

«بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ اللهُ مِنْ أَصْلاَبِهِمْ مَنْ يَعْبُدُ اللهَ وَحْدَهُ، لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا».[1]

دوي نهٔ پوهیږي او "زما امید دے چې دَ دوي په بچو کښې به الله تعالی داسې خلق پیدا کړي چې هغوي به دَ یو الله رب العزة عبادت کوي او دَ الله رب العزة سره به څوک نهٔ شریک کوي".

(1) أخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق، باب إذا قال أحدكم: آمين والملائكة في السماء، فوافقت إحداهما الأخرى، غفر له ما تقدم من ذنبه، برقم: (3231).

نو رسول الله ﷺ هغه فرشتې له اجازت ورنهٔ کړو چې پهٔ دې خلقو عذاب راولي. کهٔ هغهٔ صرف وئيلے وے نو دا فرشته الله رب العزة رالیږلې دَ دې دپاره وه چې نن زما حبيب څهٔ وائي هغه به مني او هغه شان عذاب به پهٔ دې خلقو باندې راولي.

## دَ جنّاتو حاضریدل

رسول الله ﷺ را روان وو، حديث کښې راځي: نبي ﷺ چې وادي النخله مقام ته را اورسيدو نو پهٔ وادي النخله کښې نبي ﷺ مونځ کولو، او پکښې جنّات (پیریان) هم راغلي دي، دَ نبي ﷺ دَ تلاوت هغه آواز ئې اوريدو.... اوږده واقعه ده. دا قرآن هم ذکر کړې ده:

﴿وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوا أَنصِتُوا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ﴾.[1]

"كله چې مونږه را واړوله ستا طرف ته يَوه ډله دَ پیریانو نه، طلب ئې کولو دَ اوريدو دَ قرآن، او كله چې حاضر شول نو يَو بل ته وائي: چپ شئ، کله چې دَ قرآنِ عظیم بيان پوره شو نو واوريدل خپل قوم ته یره ورکونکي".

دا جنات راغلل او دَ رسول الله ﷺ نه ئې قرآن واوريدو او دوي الله مسلمانان کړل او بیا خپل قوم ته لاړل، هغوي ته ئې بيا بيان او تقرير شروع کړو. الله رب العزة دَ نبي ﷺ دَ دعوت اثر پهٔ جنّاتو اوکړو، هغوي کښې الله رب العزة مسلمانان پيدا کړل، بيا رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته واپس راغے، بيا دَ هغې نه روستو نبي ﷺ نورو قومونو ته خطونه ليږل او دعوتونه به ئې ورکول.

تر دې ځائے پورې دَ نبي ﷺ دَ سيرت حصه مونږ بيان کړه، باقي به ان شاء الله وړنسې راځي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينْ.

---

(1) [سورة الأحقاف: 29].

بسم الله الرحمن الرحيم

سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ

(سورة الإسراء: 1)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه اتلسمه

# "معراج النبي ﷺ"

بتاريخ: 2008-02-01

مقام جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه اتلسمه

## "معراج النبي ﷺ"

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾. [1]"

عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ ډير زيات معجزات وو، دَ هغې نه بعضې معجزات تاسو اوريدلي وو، اوس يَو بله لويه معجزه بيانوو:

**يَو لويه معجزه**

هغهٔ معجزه دَ أمام الأنبياء محمد مصطفىٰ ﷺ دا وه: چې نبي ﷺ باندې الله رب العزة دَ آسمانونو سيل کړے وو، بره ئې خيژولے وو، دَ معراج واقعه علماء کرام ذکر کوي: دا دلالت کوي: پهٔ رفع شان دَ محمد رسول الله ﷺ باندې، او دا دلالت کوي: پهٔ رسالت دَ محمد رسول الله ﷺ باندې، دَ معراج واقعه علماء کرامو ذکر کړې ده، محدثينو حضراتو دَ احاديثو پهٔ رنړا کښې واضحه کړې ده.

**معراج او اسراء کښې فرق**

يَو دے "إِسْراء" او يَو دے "مِعراج"، پهٔ دې دواړو کښې فرق دے، "إِسْراء" دَ شپې بوتللو ته

(1) [سورة الإسراء: 1].

وائي، او "مِعراج" پهٔ بره ختلو ته وائي، نو "إِسْراء" دَ رسول الله ﷺ دَ مکې نه تر بيت الـمقدَّس پورې وه، او امام نووي ؒ پهٔ شرحه دَ "صحيح مسلم" باندې ذکر کړي دي: چې پهٔ دې "المقْدَس" کښې دوه (۲) قِراءَته دي: "بيت المُقَدَّس"، او "بيتُ الْمَقْدَسْ"، نو بيت المَقْدَس پورې نبي ﷺ پهٔ زمکه باندې دَ بُراق پهٔ ذريعې تلے وو، بيا دَ هغې نه بره نبي ﷺ آسمانونو ته ختلے وو نو هغې ته "مِعراج" وائي.

**دَ مفسر قرطبي او قاضي عياض ؒ اقوال**

دې دواړو اوږد بحث کړے دے: چې معراج دَ نبي ﷺ څنګه وو؟

**(۱) اول قول: دَ معراج دَ نبي ﷺ باره کښې: چې دا بالروح وو فقط**

بعضې علماء وائي: چې معراج دَ نبي ﷺ پهٔ روح باندې وو، يعني پيغمبر ﷺ صرف . رب ليدلے وو، بخپله پهٔ ويخه باندې نهٔ دے ختلے، دا دَ بعضې علماؤ قول دے، معاويه ؓ هم پهٔ دې کښې دے، چې معراج دَ نبي ﷺ دا پهٔ خوب کښې وو، روح ئې تلے وو، او هغوي بيا پهٔ دې لائل پيش کوي:

**(۱) يَو دليل:** چې قرآنِ کريم کښې الله فرمائي:

﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾.[1]

"ستا هغهٔ خوب چې مونږ تا ته ښودلے وو، مونږ نهٔ دے ګرځولے هغې لره مګر امتحان دَ خلقو دپاره".

چې نبي ﷺ سحر خلقو ته بيانولو نو چا منلو، چا نهٔ منلو، نو وائي: دا نبي ﷺ پهٔ خوب کښې تلے وو، روح ئې تلے وو، هغهٔ بخپله باندې نهٔ وو تلے.

**(۲) دويم دليل:** هغه دا دے: چې دَ سيده عائشه ؓ نه نقل دي: چې هغهٔ وائي:

"مَا فَقَدْتُ جَسَدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عليه وسلم".[2]

---

(1) [سُورة الاسراء: 60].

(2) انظر: "الشفا بتعريف حقوق المصطفى" للقاضي عياض بن موسى: (187/1).

"ما روک نهٔ وو موندلے بدن مبارک دَ رسول الله ﷺ"، معنٰی دا شوه: چې هغهٔ ځائے کښې وو، نو څنګه تلے وو، چې بدن ئې دلته وو؟

**(۳) دریم دلیل:** دَ هغوي دا وو: «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ».[1]

نبي ﷺ وائي: "زهٔ پهٔ مسجدِ حرام کښې اودهٔ اووم (چې ما ته جبرئیل امین راغے)".

نو هغوي وائي: چې نا! نبي ﷺ پهٔ ویخه باندې معراج نهٔ دے کړے، پهٔ اودو ئې کړے دے، خوب ئې لیدلے وو، روح ئې ختلے دے.

**(۲) دویم او صحیح قول: قاضي عیاض ؒ ذکر کوي: دا روح مع الجسد وو...**

لیکن صحیح قول دا دے: چې نبي ﷺ پهٔ ویخه باندې معراج کړے دے، قاضي عیاض ؒ وائي:

"وَذَهَبَ مُعْظَمُ السَّلَفِ وَالْمُسْلِمِينَ إِلَى أَنَّهُ إِسْرَاءٌ بِالْجَسَدِ وَفِي الْيَقْظَةِ وَهَذَا هُوَ الْحَقُّ وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍ وَجَابِرٍ وَأَنَسٍ وَحُذَيْفَةَ وَعُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَمَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ وَأَبِي حَبَّةَ الْبَدْرِيِّ وَابْنِ مَسْعُودٍ وَالضَّحَّاكِ وَسَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ وَقَتَادَةَ وَابْنِ الْمُسَيَّبِ وَابْنِ شِهَابٍ وَابْنِ زَيْدٍ وَالْحَسَنِ وَإِبْرَاهِيمَ وَمَسْرُوقٍ وَمُجَاهِدٍ وَعِكْرِمَةَ وَابْنِ جُرَيْجٍ".

"پهٔ سلفو صالحینو علماؤ کښې دَ لویُو علماؤ او دَ لویُو مسلمانانو دا نظریه او دا عقیده ده: چې نبي ﷺ پهٔ ویخه باندې روح او جسد دواړو سره آسمانونو ته ختلے دے، معراج ئې کړے وو، او دا صحیح او حقه خبره ده، او دا قول دَ عبد الله بن عباس، دَ جابر بن عبد الله، دَ انس بن مالک، دَ حذیفه، دَ عمر فاروق، دَ ابو هریره، دَ مالک بن صعصعه، دَ ابي حبّه البدري، دَ ابن مسعودؓ، دارنګې دَ ضحاک، دَ سعید بن جبیر، دَ قتاده، دَ ابن المسیّب، دَ ابن شهاب، دَ ابن زید، دَ حسن بصري، دَ امام ابراهیم نخعي، دَ مسروق، دَ امام مجاهد، دَ امام عکرمه، دَ ابن جریج ؓ دَ دې ټولو دا نظریه ده: چې نبي ﷺ پهٔ ویخه باندې سره دَ روح نه دا معراج کړے دے".

او بیا وائي: "وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْمُتَأَخِّرِينَ مِنَ الْفُقَهَاءِ وَالْمُحَدِّثِينَ وَالْمُتَكَلِّمِينَ وَالْمُفَسِّرِينَ".[2]

---

(1) انظر: "الشفا بتعریف حقوق المصطفی" للقاضي عیاض بن موسی: (187،188/1).

(2) انظر: "الشفا بتعریف حقوق المصطفی" للقاضي عیاض بن موسی: (188/1).

"او دا قول په متأخرینو علماؤ کښې دَ اکثرو فقهاؤ، محدثینو، متکلمینو او مفسرینو وو".

نو دَ دې ټولو هم دا نظریه او عقیده وه: چې نبي ﷺ په ویښه باندې معراج کړے دے.

**(۳) دریم قول: دَ معراج دَ نبي ﷺ باره کښې**

دریم قول دَ بعضې علماؤ دا دے: وائي: نبي ﷺ تر بیت الـمقدّس پورې په ویښه باندې تلے وو، بره بیا په خوب کښې تلے دے، او دَ هغوي عقیده او نظریه دَ دې آیت نه ده: چې قرآنِ کریم کښې الله تعالی فرمائي:

﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى﴾.[1]

"پاکي ده هغهٔ ذات لره چې بوئې تلو خپل بنده لره دَ شپې دَ مسجد حرام نه مسجدِ اقصٰی پورې".

وائي: دا معجزه دَ پیغمبر ﷺ په قرآنِ کریم کښې بیان ده، کهٔ چرته نبي ﷺ دَ معراج په شپه باندې په بره باندې په ویښه تلے وو، نو الله به دَ هغې ذکر کړے وے، دا به ئې وئیلے وے: چې بیا ئې آسمانونو ته هم اوخیژولو، خو سورهٔ بني اسرائیل کښې صرف دا دي: چې دَ مسجد حرام نه صرف تر مسجد اقصٰی پورې بوتلے وو، دا دَ هغوي دلیل دے.

بیا قاضي عیاض ذکر کړي دي، وائي: صحیح خبره دا ده: "وَالصَّحِيحُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ أَنَّهُ إِسْرَاءٌ بِالْجَسَدِ وَالرُّوحِ فِي الْقِصَّةِ كُلِّهَا".[2]

"صحیح خبره دا ده: چې نبي ﷺ هغهٔ تلے وو، نو روح او بدن دواړه ئې الله تعالی خیژولي وو، اول دَ بیت الله نه واخلې تر بیت الـمقدّس پورې تلے وو په بُراق باندې، او بیا دَ هغې نه پس الله تعالی خپل پیغمبر ﷺ آسمانونو ته خیژولے وو".

نو زهٔ به تاسو ته اول دا بنایم: چې ځنګه تلے وو؟ روستو به بیا اختلاف ذکر کوو:

**دَ سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه روایت**

حدیث کښې راځي: دَ "صحیح مسلم" روایت دے، او دا صحیح روایت دے: سیدنا انس بن

(1) [سورة الإسراء: 1].

(2) انظر: "الشفا بتعریف حقوق المصطفی" للقاضي عیاض بن موسی: (189/1).

مالک ﷺ فرمائي: نبي ﷺ فرمائيلي دي:

«أُتِيتُ بِالْبُرَاقِ، وَهُوَ دَابَّةٌ أَبْيَضُ طَوِيلٌ فَوْقَ الْحِمَارِ، وَدُونَ الْبَغْلِ».[1]

"ما ته بُراق راوستلے شو، او (دا "براق" څۀ شے دے؟) دا بُراق يَو ځناور دے، چې تک سپين ځناور دے، او اوږد ځناور دے، دَ خر نه لږ اوچت او دَ قچر نه لږ غوندې لاندې داسې يَو شے دے".

نو بُراق داسې يَو ځناور چې نۀ خر وو، او نۀ قچر وو، تک سپين ځناور وو، دَ خر نه لږ اوچت وو، او دَ قچر نه لږ ښکته وو، اوږد وو، "يَضَعُ حَافِرَهُ عِنْدَ مُنْتَهَى طَرْفِهِ".

"دَ هغې يَو يَو قدم به دومره وو لکه څومره چې دَ انسان دَ نظر انتهاء ده".

دومره ځائے پورې دَ هغې يَو توپ وو، پۀ سيکنډونو کښې مسجدِ اقصٰی ته رسيدلے وو، حالانکه هغۀ دَ مياشتو مياشتو مزلې دي، پۀ يَو شپه کښې نبي ﷺ مسجدِ اقصٰی ته هم اورَسيدو، دَ بيت الله نه بيت الـمقدّس ته، او بيا ئې معراج هم اوکړو، بيا هم راغلے.

قَالَ: «فَرَكِبْتُهُ حَتَّى أَتَيْتُ بَيْتَ الْمَقْدِسِ»، قَالَ: «فَرَبَطْتُهُ بِالْحَلْقَةِ الَّتِي يَرْبِطُ بِهِ الْأَنْبِيَاءُ»، قَالَ «ثُمَّ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ، فَصَلَّيْتُ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ».

"نبي ﷺ فرمائي: زۀ پۀ هغې باندې کيښناستم او بيت الـمقدّس ته راغلم، ما دا بُراق دَ هغې کړئ پورې اوتړلو کومې کړئ پورې چې انبياؤ ﷺ خپل اسونه تړلي وو چې کلۀ به ئې بيت الـمقدّس کښې مونځ کولو، نو دَ هغې کړئ پورې ما دغه خپل اس اوتړلو، بيا بيت الـمقدّس جومات ته دننه شوم، نو دوه رکعته مونځ مې پۀ بيت الـمقدّس کښې اوکړو".

بيا روايات مختلف دي: بعضې رواياتو کښې راځي: ځانله مې مونځ اوکړو، بعضې رواياتو کښې راځي: چې ما ته الله تعالٰی انبياء کرام ﷺ متشکّل کړل، انبياء کرام ﷺ راپسې روستو ولاړ وو، او زۀ مخکښې ولاړ ووم، ما ورته امامتي ورکړه، دوه رکعته مونځ مو اوکړو.

بيا نبي ﷺ فرمائي:

«ثُمَّ خَرَجْتُ فَجَاءَنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ، وَإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ، فَاخْتَرْتُ اللَّبَنَ».

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

"بیا زهٔ رابهر شوم دَ بیت الـمقدّس نه نو جبرئیل امین ﷺ ماته دوه (۲) لوښي راوړل: (۱) يَو لوښے دَ شرابو وو، هغې کښې شراب وو، (۲) او بل لوښے دَ پيو وو هغې کښې پئ وو، ما نه ئې دواړه راوړل، نو ما پئ غوره کړل او پئ مې ترې اوڅښکل"، دا هغهٔ وخت وو چې شراب جائز وو، دوه لوښي ئې ما ته راوړل، يَو لوښے دَ پيو نه ډک وو، بل لوښے دَ شرابو نه ډک و، ما ته وائي: چې پهٔ دې کښې کوم ستا خوښ دے، نو هغهٔ واخله، نبي ﷺ فرمائي: ما پئ غوره کړل، پئ مې ترې اوڅښکل، شراب مې پرېښودل، نو فَقَالَ جِبْرِيلُ ﷺ: "اخْتَرْتَ الْفِطْرَةَ".[1]

"نو جبرئيل امين ﷺ اووئيل: چې تا فطرت غوره کړو".

بیا جبرئيل امين ﷺ اووئيل: څه چې خيژو!

«ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ».

"بیا جبرئيل امين ﷺ مونږه آسمان ته اوخيژولو".

"فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيلُ".

"جبرئيل امين ﷺ طلب اوکړو دَ دروازې دَ کولاوېدو".

"فَقِيلَ: مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ، فَفُتِحَ لَنَا".

"بره نه آواز راغلے، چې څوک ئې؟ (چې آواز کوې چې دروازه کولاؤ کړئ)، جبرئيل امين ﷺ ورته وائي: زهٔ جبرئيل يم، بيا بره نه تپوس کيږي: دا بل ملګرے درسره څوک ولاړ دے؟ دا څوک دے؟ نبي ﷺ فرمائي: چې جبرئيل امين ﷺ ورته اوفرمائيل: چې دا محمد ﷺ دے، بيا تپوس کيږي: بره نه آواز راغلے: چې دے خپله راغلے دے او کهٔ تهٔ وريسې الله ليږلے ئې؟ جبرئيل امين ﷺ ورته وائي: نا! زهٔ خو وريسې ليږلے شوے يم، نو بيا هله دَ آسمان دروازه کولاؤ شوه".

**دَ اسلام نه مخکښې آسمان ته ختل**

پهٔ دې آسمان باندې چوکيداراني فرشتې وې، دا چوکيداري دَ آسمان کوي، هيڅ څهٔ شے

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

بره نشي ختلے، او چې کله اسلام نهٔ وو راغلے نو مشهور روایت دے: دَ اسلام دَ راتلو نه مخکښې دَ نبي ﷺ دَ راتلو نه مخکښې دا شیطانان به دَ یَو بل دپاسه اودریدل، آسمان ته به رسیدل، او هلته پهٔ آسمان کښې فرشتو به چې څهٔ خبره کوله، هغهٔ به دوي واوریده، چې صبا به الله داسې کار کوي، نو دوي به راغلل خپلو شیطانانو کاهنانو ته به ئې اوویئیل: چې صبا به داسې کار کیږي، نو هغوي به خلقو ته اوویئیل: چې صبا به دا کار کیږي، نو چې هغهٔ کار به اوشو نو خلقو به اوویئیل: اوګوره! ریشتیا وائي کنه، یَو به ئې هغهٔ ریشتیا خبره اوکړه او سل (۱۰۰) به ئې ورسره دروغ ملګري کړل، نبي ﷺ وائي: یَو به دغه خبره وه، او یَو کم سل به ئې ورسره دروغ ملګري کړل، خلق به ئې پهٔ هغې دهوکه کول، کله چې نبي ﷺ راغلے نو شیطانان بیا بره نشو ختلے، دا معجزه وه دَ نبي ﷺ.

نو چې کله دَ آسمان دروازه کولاؤ شوه، نبي ﷺ فرمائي:

"فَإِذَا أَنَا بِآدَمَ، فَرَحَّبَ بِي، وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ".[1]

"پس ناڅاپه زهٔ خپل نیکهٔ آدم ؑ سره مېلاؤ شوم، ما ته ئې پخیر راغلې اوویئیل، او زما دپاره ئې دعاء دَ خیر اوغوښتله".

پهٔ ړومبي آسمان کښې آدم ؑ وو، او دا متشکل کیدل دي، ګني دَ انبیاء ؑ قبرونه خو پهٔ زمکه کښې دي. دلته "فَرَحَّبَ بِي، وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ" دا الفاظ راغلل.

بعضې روایاتو کښې لږ بدل الفاظ راځي: "مَرْحَبًا بِالابْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ".[2]

"پهٔ خیر دې راشي زما نیک بچے او نیک نبي".

نو بیا نبي ﷺ فرمائي: "ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ الثَّانِيَةِ، فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ، فَقِيلَ: مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ، فَفُتِحَ لَنَا".

"بیا دوېم آسمان ته اوختلو نو جبرئیل امین ؑ هغهٔ شان بیا دروازه اوټکوله: چې دروازه کولاؤ

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب المعراج، برقم: (3887).

کړئ؟ تپوس کیږي: چې څوک راغلے دے؟ جبرئیل امین ﷺ ورته وائي: زهٔ جبرئیل یم، بیا بره نه تپوس کیږي: دا بل ملګرے درسره څوک دے؟ جبرئیل امین ﷺ ورته اوفرمائیل: چې دا محمد ﷺ دے، بیا تپوس کیږي: بره نه آواز راغلے: چې دے خپله راغلے دے او کهٔ تهٔ وریسې الله لیږلے ئې؟ جبرئیل امین ﷺ ورته وائي: نا! زهٔ خو وریسې لیږلے شوے یم، نو بیا دَ آسمان دروازه کولاؤ شوه".

نبي ﷺ فرمائي: «فَإِذَا أَنَا بِابْنَيْ الْخَالَةِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ، وَيَحْيَى بْنِ زَكَرِيَّاءَ، صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِمَا، فَرَحَّبَا وَدَعَوَا لِي بِخَيْرٍ».

"ناڅاپه زهٔ ملګرے شوم چې هغهٔ دوه دَ ماسي زامن بره پهٔ آسمان کښې وو هغوي سره، یو عیسٰی ابن مریم ﷺ، او دویم: یحیي بن زکریا ﷺ، دا دواړه دَ ماسي زامن وو، هغوي ما ته پخیر راغلي اووئیل او هغوي دواړو زما دپاره دَ خیر سؤال اوکړو".

بیا دریم آسمان ته هم دغه طریقې سره تر اووم آسمانه پورې چې: جبرئیل امین ﷺ وائي: دروازه کولاؤ کړئ؟ تپوس کیږي: چې څوک راغلے دے؟ جبرئیل امین ﷺ ورته وائي: زهٔ جبرئیل یم، بیا بره نه تپوس کیږي: دا بل ملګرے درسره څوک دے؟ جبرئیل امین ﷺ ورته اوفرمائیل: چې دا محمد ﷺ دے، بیا تپوس کیږي: بره نه آواز راغلے: چې دے خپله راغلے دے او کهٔ تهٔ وریسې الله لیږلے ئې؟ جبرئیل امین ﷺ ورته وائي: نا! زهٔ خو وریسې لیږلے شوے یم، نو بیا دَ آسمان دروازه کولاؤ شوه، نو چې دریم آسمان ته اوختلو نو:

«فَإِذَا أَنَا بِيُوسُفَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا هُوَ قَدِ أُعْطِيَ شَطْرَ الْحُسْنِ، فَرَحَّبَ وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ».

"ناڅاپه چې ما اوکتل نو زهٔ دَ یُوسف ﷺ سره میلاؤ شوم، او یوسف ﷺ له یو لوئي حسن ورکړے وو، یو لویه حصه دَ حسن الله هغهٔ له ورکړې وه، هغهٔ ما ته پخیر راغلې اووئیلې او زما دپاره ئې دَ خیر دعاء اوکړه".

«ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ الرَّابِعَةِ، فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ، قَالَ: وَقَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ، فَفُتِحَ لَنَا».

"بيا څلورم آسمان ته اوختلو او چې څلورم آسمان ته اوختو نو هم دغه طريقه وه جبرئيل امين ﷺ به تپوس كولو: چې دروازه كولاؤ كړئ!، هغوي به وئيل څوک ئې؟ (دا دومره سخته سيكورټي)، بيا بره نه تپوس كيږي: دا بل ملګرے درسره څوک دے؟ جبرئيل امين ﷺ ورته اوفرمائيل: چې دا محمد ﷺ دے، بيا تپوس كيږي: بره نه آواز راغلے: چې دے خپله راغلے دے او كۀ تۀ وريسې الله ليږلے ئې؟ جبرئيل امين ﷺ ورته وائي: نا! زۀ خو وريسې ليږلے شوے يم، نو بيا دَ آسمان دروازه كولاؤ شوه، وائي: كله چې زۀ څلورم آسمان ته اوختم نو: «فَإِذَا أَنَا بِإِدْرِيسَ، فَرَحَّبَ وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ، قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾».[1]

"نو ناڅاپه زۀ دَ ادريس ﷺ سره ميلاؤ شوم، هغۀ ما ته پخير راغلې اووئيل، زما دپاره ئې دَ خير دعاء اوكړه، الله فرمائي: مونږ پورته كړے دے ادريس ﷺ لره اوچت مقام ته".

**دَ دروغو واقعه**

بعضې خلقو پۀ دې آيت يَو واقعه مشهوره كړې ده، هغۀ ټول دروغ دي، ﴿وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾.[2] الله وائي: "ما ادريس ﷺ له لوئي مقام وركړے وو".

بعضې خلق وائي: ادريس ﷺ پۀ جنت كښې ژوندے دے، وائي: دَ جنتيانو جامې كندي، دا خبره عوامو كښې مشهوره ده، وائي: ادريس ﷺ دَ جبرئيل امين ﷺ سره ډير ښۀ تعلق وو، وائي: يَو ځل جبرئيل امين ﷺ ته وائي: چې ما باندې چرته دَ آسمانونو سيل اوكړه، او دَ جنت سيل راباندې اوكړه!، وائي: جبرئيل امين ﷺ ورته اووئيل: چې دا ډير مزيدار ځائے دے، بيا به تۀ نۀ راكوزيږې، اول ما سره وعده اوكړه چې راكوزيږم به، نو هغۀ ورسره وعده اوكړم، چې زما درسره وعده ده تۀ مې دَ ځان سره بوځه، صرف تماشه كوم بيا به راځم، نو چې كله ئې ادريس ﷺ بوتلو، تماشه ئې وورباندې اوكړه، دننه ئې بوتلو، نو ادريس ﷺ خو وعده كړې وه چې زۀ به بهر راوځمه، او جنت هم ډير مزيدار وو، زړۀ ئې ترې هم نۀ كيدو، چې څۀ چل اوكړم؟ وائي: هغۀ ته

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

(2) [سورة مريم: 57].

وائي: چې راځه چې ځو، نو سوچ ئې اوکړو چې بهر به اوځم او دا پنړې به پهٔ دې جنت کښې پریږدم، نو چې بهر اوځو، نو زهٔ به جبرئیل امین العلیہ السلام ته وایم: تهٔ اودریږه! زما نه دننه پنړې پاتې شوي دي، بیا به راشمه، وعده به هم پوره شي؛ ځکه زهٔ خو به یَو ځل راوتلے یم، نو بیا به پکښې پاتې شم، وائي: ادریس العلیہ السلام ته وائي: ځه! چې بهر کیږو، نو ادریس العلیہ السلام پنړې پریښودې، بهر رااوتل، چې لږ مزل ئې اوکړو، ورته وائي: چې تا سره مې وعده کړې وه چې بهر کیږو به رابهر شوم کنه؟ هغهٔ ورته وائي: آو، چې لږ مخکښې شول، وائي: زما نه خو پنړې پاتې شوي، وائي: جبرئیل امین العلیہ السلام ورته وائي: چې ورشه پنړې راواخله، نو چې دننه لاړو نو بیا نهٔ رابهر کیدو، وائي: جبرئیل امین ورته اووئیل: رابهر شه کنه تا چې وعده کړې وه؟ وائي: ما خو خپله وعده یَو ځل پوره کړې ده، زهٔ رابهر شوے یم، دا خو زهٔ پخپله راغلے یم، تا خو نهٔ یم راوستے.

وائي: ادریس العلیہ السلام پهٔ جنت کښې دے؛ ځکه جنت کښې خو بیا مرګ نشته، نو وائي: هغهٔ پهٔ جنت کښې دے او ژوندے دے، او څلورم آسمان کښې دے، او ادریس العلیہ السلام چې جنت کښې دے نو هغهٔ جنتیانو له جامې ګنډې.

نو دَ هغهٔ خو به هډو سر نهٔ اوزګاریږي دَ جنتیانو دَ لباس نه؛ ځکه دَ یَو یَو جنتي به څومره جامې وي، او بیا جنتیان څهٔ لږ خو نهٔ دي، او ادریس العلیہ السلام یَو دے، بیا خو لږ تیلران نور هم کتل غواړي؟، دازنګې دویم دا: اے ساده خلقو! پهٔ جنت کښې دَ سره مشقت نشته، او بل دا چې: جنت کښې خو به هر څهٔ تیار میلاویږي، او بل دا چې: دا جامې ګنډل آسان کار دے څهٔ؟ (جامې ګنډل خو ګران کار دے او تکلیف دے نو جنت کښې خو به تکلیف نهٔ وي)، دا هسې دې خلقو دَ ځان نه قیصې مشهورې کړې دي.

الله وائي: ﴿وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾،[1] "ما ادریس العلیہ السلام اوچت کړے وو لوئې مقام ته"، الله وائي: ما ورته لویه مرتبه ورکړې وه، نو دا نورې خبرې دروغ دي، پهٔ دې باندې علماؤ ردّ کړے دے: مولانا شبیر احمد عثماني رحمہ اللہ پهٔ "تفسیر عثماني" کښې چې پهٔ اُردو ژبه کښې لیکلے شوے، هغهٔ پهٔ دې ردّ

---

(1) [سورة مریم: 57].

کړے دے، چې دا دَ دروغ واقعه ده.

نو نبي ﷺ فرمائي: پۀ څلورم آسمان کښې دَ ادريس عليه السلام سره ميلاؤ شوم.

"ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ الْخَامِسَةِ".

"بيا مونږه پنځم آسمان ته اوختلو، چې پنځم آسمان ته اوختلو نو دغه طريقه وه: چې تپوسونه به کيدل".

نو چې کله مونږ پنځم آسمان ته اوختو نو:

"فَإِذَا أَنَا بِهَارُونَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَحَّبَ، وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ".

"ناڅاپه زۀ دَ هارون عليه السلام سره ميلاؤ شوم نو هغۀ ما ته پخير راغلې اووئيل او زما دپاره ئې دَ خير دعاء اوکړه".

"ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ السَّادِسَةِ".

"نو بيا شپږم آسمان ته اوختلو"، او چې شپږم آسمان ته اوختلو نو:

"فَإِذَا أَنَا بِمُوسَى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَحَّبَ وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ".

"نو ناڅاپه زۀ دَ موسٰى عليه السلام سره ميلاؤ شوم، نو هغۀ ما ته پخير راغلې اووئيلې او زما دپاره ئې دعاء دَ خير اوغوښتله".

وائي: بيا مونږ دَ شپږم آسمان نه اووم آسمان ته اوختلو:

"فَإِذَا أَنَا بِإِبْرَاهِيمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْنِدًا ظَهْرَهُ إِلَى الْبَيْتِ الْمَعْمُورِ".

"ناڅاپه مونږه دَ ابراهيم عليه السلام سره ميلاؤ شو، چې ابراهيم عليه السلام دَ بيت المعمور شاه ته ډډه لګولې وه".

**بيت المعمور څۀ څيز دې؟**

بيت المعمور دَ اووم آسمان دپاسه يَو کعبه ده، دَ الله پاک يَو کور دے، لکه څنګه چې دنيا کښې بيت الله دے، لکه څنګه چې پۀ دنيا کښې پۀ تمامو ځايونو کښې معزّز ځائے پۀ تمامو جوماتونو کښې معزّز جومات هغۀ دَ الله کور "مسجدِ حرام" دے، او خلق ورته دَ کرد ونواح نه راځي، پۀ آسمانونو کښې دَ اووم (۷) آسمان دپاسه دغه يَو کعبه ده، او دغه دَ بيت الله

په شان ځائے دے، چې هغهٔ الله رب العزة د ملائکو دپاره جوړ کړے دے، هغې کښې ملائک دَ الله عبادت کوي، دغه بیت الـمعمور داسې دے چې روزانه اویا زره (۷۰۰۰) ملائک هغې ته ورننه کیږي او دَ الله عبادت پکښې کوي. او بیا د هغوي نمبر نهٔ راځي، هر وخت دغه ځائے د الله پهٔ عبادت باندې ډک وي.

ابراهیم علیه السلام دغه بیت الـمعمور ته ډډه لګولې وه، او ناست وو، وائي: چې کله ورغلم نو هغهٔ هم ما ته پخیر راغلې اووئیل او زما دپاره ئې دعاء اوغوښتله.

"ثُمَّ ذَهَبَ بِي إِلَى السِّدْرَةِ الْمُنْتَهَى".

"نو بیا دَ اووم آسمان نه مونږه سدرة الـمنتهٰی ته لاړو".

"سِدْرَةِ المنتهٰی" دَ اُوؤ (۷) آسمانونو دپاسه هغهٔ بیره ده: هغهٔ دومره لویه بیره ده. چې منتهٰی ده، معنٰی هغې ته انتهاء کیږي دَ علم دَ مخلوق، نبي ﷺ فرمائي: کله چې ما هغهٔ بیره اوکتله نو:

«وَإِذَا وَرَقُهَا كَآذَانِ الْفِيَلَةِ، وَإِذَا ثَمَرُهَا كَالْقِلَالِ».

"نو ناڅاپه دَ هغې بیرې پاڼې دومره لوئې لوئې وې لکه دَ هاتیان غوږونه، او دَ هغې میوې او بیرې چې وې نو هغهٔ دَ حجر مقام دَ منګوټو پشان وې، لوئې لوئې بیرې ئې کړې وې چې هغهٔ بیره ئې پټه کړې وه".

قرآنِ کریم کښې آیت دے: ﴿إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى﴾.[1]

"کله چې پټه کړه هغې بیرې لره څهٔ لوئي پټول وو".

پهٔ دې آیت باندې علماء کرام ذکر کوي: څهٔ څیز پټه کړه؟ بعضې وائي: چې دغه بیره دَ ملائکو دَ ډیر والي دَ وجې نه پټه وه، ګیر چاپیره ملائکې وې، یا علماء کرام ذکر کوي: او حدیث کښې هم راځي: چې دَ هغې بیرې نه ګیر چاپیره دَ سرو زرو ملخان تاویدل نو هغې سره بالکل تهوله بیره پټه وه.

**نبي ﷺ سره دَ الله تعالى مناجات**

(1) [سورة النجم: 16].

نبي ﷺ فرمائي: دغه ځائے کښې الله تعالى ما سره مناجات شروع کړل:

«فَفَرَضَ عَلَيَّ خَمْسِينَ صَلاَةً فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، فَنَزَلْتُ إِلَى مُوسَى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَا فَرَضَ رَبُّكَ عَلَى أُمَّتِكَ؟ قُلْتُ: خَمْسِينَ صَلاَةً».

"نو په ما او زما په امت باندې الله پنځوس (۵۰) مونځونه فرض کړل، چې تاسو به روزانه پنځوس (۵۰) مونځونه کوئ، وائي: ما ورته اووئيل: صحيح ده، خو چې زۀ راروان شوم، دَ سيدنا موسیٰ علیه السلام خواته چې راغلم نو وائي: ما ته موسیٰ علیه السلام وائي: چې الله درباندې څۀ څيز فرض کړو؟ څۀ حکم ئې درته اوکړو؟ نو ما ورته اووئيل: چې الله وائي: پۀ تا او ستا پۀ امت باندې ما پنځوس (۵۰) مونځونه فرض کړل، روزانه به ئې کوئ".

وائي: موسیٰ علیه السلام ما ته اووئيل: "ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيفَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لاَ يُطِيقُونَ ذَلِكَ، فَإِنِّي قَدْ بَلَوْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَخَبَرْتُهُمْ".[1]

"ورشه! الله تعالى نه سؤال اوکړه چې الله تعالى پۀ دې کښې لږ تخفيف او سپکوالے راولي؛ ځکه ستا امت کورے بيا دَ دې طاقت نشي لرلے، ما ته دَ خپل قوم پته ده، او ما دَ هغوي امتحان اغستلے وو".

پنځوس (۵۰) مونځونه کول ډير ګران کار دے، ستا امت دا نشي کولے، ورشه! الله ته اووايه: چې سپک والے پکښې راشي، ما ته دَ خپل قوم پته ده، دَ بني اسرائيلو ما پۀ هغوي امتحانات کړي وو، بيا ستا قوم دا نشي اداء کولے.

نو نبي ﷺ فرمائي: «فَرَجَعْتُ إِلَى رَبِّي، فَقُلْتُ: يَا رَبِّ، خَفِّفْ عَلَى أُمَّتِي، فَحَطَّ عَنِّي خَمْسًا».[2]

"زۀ خپل ربّ ته واپس شوم او ورته مې اووئيل: اے زما ربّه! زما دَ امت نه پۀ دې کښې لږ غوندې سپکوالے راوله، لږ ترې نه کم کړه، نو پنځۀ (۵) مونځونه الله کم کړل".

نو پنځۀ څلويښت (۴۵) شول، بيا راغلم، الله دې پۀ موسیٰ علیه السلام باندې رحم اوکړي، چې کله

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

(2) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

دَ موسیٰ علیه السلام خواته راورسیدم نو موسیٰ علیه السلام ما ته وائي: چې څنګه چل اوشو؟ نو ما ورته اووئیل: چې پنځهٔ ئې راته کم کړل، وائي: ما ته وائي: چې بیا ورشه! نبي ﷺ فرمائي: زهٔ بیا لاړم بیا مې الله تعالیٰ ته اووئیل: چې یا الله! پهٔ دې کښې تخفیف راوله، وائي: الله دَ هغې نه پنځهٔ مونځونه نور هم کم کړل، نو څلویښت (٤٠) پاتې شول، بیا راغلم موسیٰ علیه السلام راته وائي: چې بیا ورشه! دا ډیر دي، دا نشي کولے، وائي: زهٔ به تلم نو الله به پنځهٔ، پنځهٔ مونځونه کمول، او چې موسیٰ علیه السلام خواته به راغلم نو ما به وئیل: بس دے، نو موسیٰ علیه السلام به وئیل: چې شابه ورشه!، دا ډیر ګران کار دے، بیا به موسیٰ علیه السلام واپس کړم، هر ځل به الله پنځهٔ، پنځهٔ کمول تردې پورې چې کله پنځهٔ مونځونه پاتې شول نو دَ موسیٰ علیه السلام خوا ته راغلم، نو موسیٰ علیه السلام ما ته وائي: چې ورشه! او الله ته اووایه: چې پهٔ دې کښې درته هم تخفیف راولي، ستا امت دَ دې وس نهٔ لري، وائي: ما ورته اووئیل:

«قَدْ رَجَعْتُ إِلَى رَبِّي حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ».

"چې ښا! زهٔ بیا بیا دَ الله دربار ته لاړم، او راغلم، نوره ما له دَ الله تعالیٰ نه حیاء راځي چې ورته اووایم: چې دَ دې نه ئې هم راته کم کړه، نور ورته نشم وئیلے".

نو نبي ﷺ وائي: الله ما ته اووئیل:

"يَا مُحَمَّدُ، إِنَّهُنَّ خَمْسُ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، لِكُلِّ صَلَاةٍ عَشْرٌ، فَذَلِكَ خَمْسُونَ صَلَاةً".(1)

"اے پیغمبره! دا پنځهٔ مونځونه واخله، څوک چې دا پنځهٔ (٥) مونځونه پابندۍ سره کوي نو زهٔ به هغهٔ ته دَ پنځوستو (٥٠) مونځونو اجر ورکوم".

**دَ ګناه اراده**

او الله ماته دا هم اوفرمائیل: "وَمَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كُتِبَتْ لَهُ حَسَنَةً، فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ لَهُ عَشْرًا، وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا لَمْ تُكْتَبْ شَيْئًا، فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ سَيِّئَةً وَاحِدَةً".

"او هغهٔ څوک چې دَ نیکۍ اراده ئې اوکړه ستا پهٔ امت کښې، کهٔ نیکي ئې کړې هم نهٔ ده خو دَ دهٔ دپاره به یَو نیکي میلاؤ شي، او کله چې دوي دَ نیکۍ اراده اوکړه او بیا هغهٔ کار اوکړي نو

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات، برقم: (162).

الله به ورته دَ هغې يوې نيکئ بدله يَو پهٔ لس باندې ورکړي او چې کله ستا امت دَ يَو ګناه اراده اوکړه، او ګناه ئې اوکړه نو صرف يَو بدي او يَو ګناه به ورته اوليکم".

قرآنِ کريم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾.[1]

"چا چې يَو نيک عمل اوکړو دَ يَو نيک عمل پهٔ ځائے به ورته يَو پهٔ لس بدلې ورکړم".

نو پنځوَ له چې پهٔ لسو کښې ضرب ورکړې نو پنځوس شول، چې پنځهٔ وخته مونځونه پابندئ سره کوي نو الله تعالى به تا له دَ پنځوستو مونځونو اجر درکوي، نو دَ هغې وخت نه پهٔ دې امت باندې پنځهٔ مونځونه فرض شول.

دا دَ نبي ﷺ دَ معراج واقعه ده، دا بالکل صحيح روايت دَ "صحيح مسلم" دے.

**دَ معراج واقعه پهٔ يَو بل روايت سره**

پهٔ بعضې رواياتو کښې څهٔ کمے او زياتے شته، څهٔ کمزوري او ضعيف روايات پکښې هم شته، خو پهٔ هغې باندې کلام شته، يَو روايت دے چې پهٔ دې باندې کلام شته، دَ امام بيهقي رحمه الله نه ابن کثير رحمه الله نقل کړے دے: "چې نبي ﷺ فرمائي: چې زهٔ روان اوم، پهٔ براق چې کله کينبناستم، ما ته يَو آواز اوشو، دَ ښي طرف نه ماته آواز اوشو، چې اے محمد! لږ غوندې انتظار اوکړه، دَ يَوې خبرې تپوس درنه کوم، ما جواب نهٔ ورکولو، بيا آواز اوشو: اے محمد! لږ غوندې اِنتظار اوکړه تپوس درنه کوم، وائي: ما جواب ورنهٔ کړو، او پهٔ مخه ترې نه لاړم، چې لږ غوندې نور هم مخکښې لاړم نو وائي: بيا يَو زنانه وه، ماته مخې له راغله، چې مَتې ئې وهلې وې، نهايته حسينه وه، نهايته خائسته وه، ما ته مخې له راغله، وائي: چې:

"يَا مُحَمَّدُ! انْظُرْنِي أَسْأَلْكَ".[2]

"اے محمد! لږ غوندې انتظار ماته اوکړه: زهٔ ستا نه دَ يَوې خبرې تپوس کوم".

وائي: هغې ته هم اونهٔ دريدم او پهٔ مخه ترې نه لاړم.

---

(1) [سورة الأنعام: 160].

(2) أخرجه البيهقي في "دلائل النبوة"، برقم: (390/2).

کله چې بیت المقدس ته اورسیدم، نو چې دوه (۲) رکعته مونځ مې اوکړو، بیا جبرئیل امین ﷺ ما ته دوه (۲) لوښي زاوړل، یَو لوښے دَ پیو وو، او بل لوښے دَ شرابو وو، وائي: ما ته ئې اووئیل: چې دَ دې نه اوڅښکه، وائي: دَ هغې نه دَ پیو هغۀ لوښي نه ما اوڅښکل او دَ شرابو هغه لوښے مې پریخودو، وائي: چې کله مې دَ شرابو لوښے پریخودو نو جبرئیل امین ﷺ ما ته وائي: کۀ چرته تا شراب څښکلے وے نو ستا ټول امتیان به شرابیان وے، خو چونکه تا پۀ اوڅښکل نو ټهیک ده چې بعضې خلق به شراب څښکي خو ټول به شرابیان نۀ وي.

نبي ﷺ وائي: بیا ماته جبرئیل امین ﷺ اووئیل: چې لار کښې خو تا ته څۀ شے مخې ته نۀ دے راغلے؟ ما ورته اووئیل: چې آو! لار کښې ماته آوازونه اوشول، دَ ښي طرف نه آواز اوشو چې تپوس کوم لږ اودریږه، نو ما جواب ورنۀ کړو، کڼ طرف نه آواز اوشو ما جواب ورنۀ کړو، یَو حسینه او خائسته زنانه ما ته مخې له راغله، دَ کالو نه ډکه وه، ما له ئې آواز راکړو، لیکن ما هغې له جواب ورنۀ کړو، وائي: ما ته جبرئیل امین ﷺ اووئیل: دا دَ ښي طرف نه چې تا ته آواز شوے وو نو دا یهودیت وو، کۀ چرې تۀ اودریدلے وې او تا دَ هغې خبرو له غوږ کیخودلے وو نو ستا امت به یهودیان شوي وے، خو ښۀ ده چې نۀ ئې اودریدلے، او دا کڼ طرف نه ئې چې تاله آواز درکړو دا نصرانیت وو، دا نصارٰی وو، کۀ چرې تۀ اودریدلے وې، او دَ دې خبرې دې اوریدلے وے او دَ دې سره دې سؤال جواب کړے وے نو ستا امت به ټول نصارٰی شوے وے، او دا حسینه او جمیله زنانه چې مَتې ئې وهلې وې، ځان ئې سمبال کړے وو، تا ته ئې چې آواز کولو: چې اودریږه، نو دا دنیا وه، کۀ چرې تا دَ دې خبره منلے وے، نو ستا دَ امت ټول خلق به دنیا پسې شوي وے، نو دا دنیا وه؛ ځکه دنیا ټوله دهوکه دهوکه ده، الله فرمائي:

﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾.[1]

"نۀ دے ژوند دَ دنیا مګر څښکه دَ دهوکې ده".

یَو څو ورځې ژوند دے، یَو څو ورځې مزه ده، بیا به هیڅ هم نشته، لکه دَ ناوې پشان چې

(1) [سورۀ آل عمران: 185].

يَو څو ورځې خائسته وي بيا هيڅ هم نهٔ وي، دغسې دنيا ده تا ته به ډير حسين شکل ښکاري، خو چې تهٔ پرې دهوکه شوې نو بيا هيڅ هم نشته، نو کهٔ چرې تهٔ دې خائسته زنانه طرف ته اودريدلے وے ميلان دې کړے وے دَ هغې سؤال جواب دې اوريدلے وے ستا امت به ټول پهٔ دنيا کښې مبتلاء وے. دا روايت امام بيهقي پهٔ "دلائل النبوة" کښې ذکر کړے دے، او دَ امام بيهقي ؒ نه بيا ابن کثير ؒ نقل کړے دے پخپل تفسير "تفسير ابن کثير" کښې.

بيا نبي ﷺ فرمائي: چې دَ هغې ځائے نه مونږ روان شو، نو بره آسمانونو ته مونږه اورسيدو، ړومبي آسمان کښې چې ما اوکتل نو سيّدنا آدم ؑ زما سره ميلاؤ شو، چې آدم ؑ ميلاؤ شو نو چې ما اوکتل دَ هغهٔ ښي طرف ته هم دَ خپل اولاد روحونه دي او ګڅ طرف ته هم دَ اولاد روحونه وو؛ ځکه دا انسانان ټول دَ هغهٔ اولاد دے، نو چې کله به آدم ؑ ښي طرف ته اوکتل نو ډير خوشحاله به شو، وائي: دا ښهٔ روحونه دي، او عليين ته اورسَوئ، هغې ځائے ته ئې اورَسوئ کوم ځائے کښې چې دَ ښيکانو خلقو روحونه دي، او کله چې به ئې ګڅ طرف ته اوکتل وائي: دا پليت او خبيث روحونه دي، دا سِجّين ته، دَ الله جيل ته اورَسوئ، کوم ځائے کښې چې دَ بدکاره خلقو روحونه جمع کيږي، هلته ئې بوځئ، وائي: ما تپوس اوکړو: چې دا څوک دے؟ وائي: ماته وائي: چې دا آدم ؑ دے، او دا ښي طرف ته روحونه دَ نيکانو مومنانو دي، او دا ګڅ طرف ته روحونه دَ فاجرانو بدکاره خلقو دي، دَ ګنانګارو خلقو روحونه دي، وائي: آدم ؑ زما دپاره دعاء اوغوښتله او ما ته ئې پخير راغلې اووئيل.

نو دَ هغې ځائے نه لږ غوندې نور مخکښې شو، يَو درستخوان لګيدلے دے، يَو درستخوان پروت دے، چې پهٔ هغې باندې غوښې غوړيدلي دي، يَو درستخوان چې پهٔ هغې باندې مزيداره غوښه پرته ده، هيڅ څوک ئې هم خوا له هم نهٔ راځي، او هيڅ څوک ئې هم نهٔ خوري، او بل طرف ته يَو درستخوان دے چې هغهٔ دَ بدبويه او ګنده غوښو ډک دے، دا خلق راځي او دَ هغې نه خوري، پهٔ هغې ګنده غوښه باندې اخښتي دي، وائي: ما تپوس اوکړو: "يَا جِبْرِيلَ مَنْ هَؤُلَاءِ؟".[1]

---

(1) أخرجه البيهقي في "دلائل النبوة"، برقم: (390/2).

"اے جبرئیل امین ﷺ! دا څوک دي؟".

وائي: جبرئيل امين ﷺ ما ته وائي: چې دا تا ته کوم کسان ښکاري چې په دې مرداره باندې ارم دي، خوري ئې نو دا ستا په امت کښې هغه خلق دي: چې حلال نه خوري او حرام خوري، چې حلالو ته خوا ته نه ورځي، او حرامو پسې منډې وهي، دا ستا دَ امت هغه خلق دے.

نبي ﷺ فرمائي: چې دَ هغه ځائے نه لږ مخکښې شو، نو داسې خلق ماته مخې ته راغلل چې دَ هغوي دومره لوئي لوئي خيټې وې، لکه دَ غټو کوټو هومره، نبي ﷺ فرمائي: چې کله به يَو کس راپاسيدو نو چرته به پاسيدلے شو بيا به رااوغورځيدو، نو بيا به ئې په زوررونو باندې ځان نيغ کړو، نو بيا به اوغورځيدو، وائي: ما تپوس اوکړو: چې "يَا جِبْرِيلُ مَنْ هَؤُلَاءِ؟".[1]

"جبرئيل امين ﷺ! دا څوک دي؟ چې په دې دومره لوئي عذاب کښې مبتلاء دي".

وائي: جبرئيل ﷺ ماته اووئيل: دا ستا دَ امت هغه کسان دي چې دوي په دنيا کښې سود خوړو.

**دَ سود خور سزا**

قرآنِ کريم کښې الله فرمائي:

﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ﴾.[2]

"کوم کسان چې دنيا کښې دَ سود مال خوري، نو چې کله دَ قيامت ورځ شي نو دَ قيامت په ميدان کښې به دوي داسې پاسيږي لکه څنګه چې يَو سړي باندې پيريان وي، نه به پاسيږي دوي دَ خپلو قبرونو نه مګر داسې به پاسيږي چې هغې سړي باندې ليونتوب او پيريان راغلي دي".

لکه څنګه چې يَو سړي باندې پيريان وي، او هغه پاسي نو کله يَو طرف ته درز خوري، کله بل طرف ته درز خوري، بے اختياره درزونه خوري، دَ ځان دَ حال نه خبر نه دے، الله وائي: سود کونکي خلق دَ قيامت په ورځ به دَ هغوي داسې حال وي لکه څنګه چې دَ پيرياني سړي حالت وي.

نو جبرئيل امين ﷺ وائي: دا هغه سود کونکي خلق وو، چې خيټې به ئې دومره لوئي

(1) أخرجه البيهقي في "دلائل النبوة"، برقم: (390/2).

(2) [سورة البقرة: 275].

وي؛ ژبې لکه څومره چې کوټې وي، دَ دغې حالت نه دې الله تعالى مونږه او تاسو پهٔ آمان کړي (امين)، د دې حالت نه به پهٔ آمان کيږې خو کهٔ سود پريږدې، او کهٔ کوي سود او وائي: چې 'امين' نو دا هسې خبره ده.

بيا نبي ﷺ فرمائي: لږ غونډې دَ هغې ځائے نه اخوا لاړو، چې کله اخوا لاړو نو يَو قوم ته راغلو چې دَ هغوي دومره غټې شونډې وې لکه دَ اوښانو پشان غټې غټې شونډې ئې وې، نبي ﷺ فرمائي: دَ هغوي خُلهٔ به کولاؤ کړے شوه او يَو غټه کټه (حجر) به دَ دوي پهٔ خُلو کښې وراوغورځولے شوه، او لاندې به ترې نه اووته، دا دَ هغوي سزا وه، ما تپوس اوکړو:

"يَا جِبْرِيلَ مَنْ هَؤُلَاءِ؟".[1]

"چې اے جبرئيل! دا څوک دي؟ چې دوي ته پهٔ دې دومره غټې کټې سره سزا ورکولے شي؟".

وائي: ماته جبرئيل امين ؈ اووئيل:

"هَؤُلَاءِ مِنْ أُمَّتِكَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا...".

"دا ستا دَ امت هغهٔ کسان دي چې هغوي دَ يتيمانانو مال پهٔ دنيا کښې خوړلو".

قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾.[2]

"يقينًا هغهٔ کسان چې هغوي دَ يتيمانانو مال خوري پهٔ ظلم او زياتي باندې پهٔ دهوکه باندې ئې خوري، يقينًا دوي پخپلو خېټو کښې اُور اچوي زر دے چې دننه به شي لمبي وهونکي جهنم ته".

نو نبي ﷺ فرمائي: "ما يَو سړے اوليدو، چې پهٔ خېټه کښې ئې دننه اُور بليدو، او دَ اُور هغهٔ لمبې دَ هغهٔ دَ خُلې نه دَ هغهٔ دَ سترګو نه راوتلې، ما تپوس اوکړو: دا څوک دي؟ ما ته اووئيلے شو: چې دوي به دَ يتيم مال خوړو".

بيا نبي ﷺ فرمائي: "چې لږ دَ هغې ځائے نه مخکښې لاړو، ناڅاپه چې ما اوکتل نو څهٔ زنانه دي

(1) أخرجه البيهقي في "دلائل النبوة"، برقم: (390/2).

(2) [سورة النساء: 10].

چې هغوي دَ خپلو سينو نه رازوړندې شوي دي، او عذاب ورله ورکولے شي، ما تپوس اوکړو: چې اے جبرئيل! دې زنانو له دا سزا ولې ورکولے شي؟ دوي ولې دَ سينو نه زوړندې دي؟ وائي: جبرئيل امين عليه السلام ماته اووئيل: چې دا ستا پهٔ امت کښې هغهٔ زنانه دي چې دَ دوي کار زناء وه، دوي به دنيا کښې زناگانې کولې، نو دوي نن دَ خپلو سينو نه رازوړندې دي، پهٔ دې عذاب کښې پرتې دي.

بل حديث کښې راځي: چې نبي ﷺ فرمائي: زهٔ پهٔ يو تنّور باندې راغلم، دَ تنور پهٔ شکل باندې يو ځائے جوړ وو، چې ښکته نه کولاؤ وو، او بره نه ئې خُلهٔ تنګه وه، نبي ﷺ فرمائي: چې پهٔ هغې کښې اُور بليدو، پهٔ هغې کښې نارينه او زنانه ګډوډ پراتهٔ وو، هغوي دَ جهنم پهٔ هغې اُور کښې سوزيدل، دومره تيز اُور بليدو چې هغې اُور به دَ ځان سره دوي رااوچت کړل، او دې خلقو به چغې وهلې او فريادونه به ئې کول، وائي: ما تپوس اوکړو: چې دې خلقو له دا عذاب ولې ميلاويږي؟ وائي: جبرئيل امين عليه السلام راته وائي: چې دا ستا پهٔ امت کښې هغهٔ نارينه او زنانه دي چې دوي به پهٔ دنيا کښې زناګانې کړې وې، نن دَ هغوي دا سزا ده.

دنيا کښې ئې دَ يو بل نه پرده نهٔ وه کړې دَ يو بل نه ئې حياء نهٔ وه کړې، دَ الله تعالی نه ئې يره نهٔ وه کړې؛ ځکه الله تعالی دَ جهنم اُور کښې ګډوډ غورځولي دي، او ګډوډ دَ جهنم اُور کښې پراتهٔ دي، دا ئې سزا ده، نبي ﷺ فرمائي: ما چې کله اوکتل نو دَ سينو نه رازوړندې وې، وائي: ما اووئيل: چې دا ولې؟ وائي: دا زناء کارې زنانه وې.

نبي ﷺ وائي: چې دَ هغې نه لږ مخکښې لاړم چې ما اوکتل نو ناځاپه څهٔ کسان دي چې دَ هغوي دَ اړخونو نه غوښې لرې کولے شي، او هغوي دپاره واپس نورې کولے شي او هغوي ته پهٔ خُلهٔ کښې ورکولے شي: چې دا خوره!، پهٔ دې عذاب کښې مبتلاء دي، او ورته وئيلے شي: چې دا غوښې داسې اوخوره لکه څنګه دې چې پهٔ دنيا کښې دَ مُسلمان ورور غوښې خوړې، نبي ﷺ فرمائي: ما تپوس اوکړو: چې دا څوک دي؟ چې پهٔ دې عذاب کښې مبتلاء دي، وائي: ماته جبرئيل امين عليه السلام اووئيل: چې دا ستا پهٔ امت کښې هغهٔ چغلي کونکي خلق دي، چې هغوي به دَ مسلمانانو چغلي کوله، او دا هغهٔ خلق دي چې پهٔ خلقو باندې به ئې بدنامې لګولې، او دا هغهٔ

کسان دي: چې دَ مسلمانانو غیبتونه ئې کول؛ ځکه دَ مسلمان ورور غیبت کول دومره لوَیه گناه ده لکه دَ مسلمان غوښې خوړل، مونږه او تاسو خو پرې گپ کړموو، او بعضې خلق وائي: دا خبره کوم خو الله دې غیبت کښې نۀ راولي، کوي غیبت او الله دې غیبت کښې نۀ راولي عجیبه سړے ئې! چې تۀ غیبت کوې نو ځنگه به دې پکښې نۀ راولي؟ او بعضې جاهلان وائي: دا به درته زۀ دَ هغۀ مخکښې هم اووایم، مقصد ئې دا وي: چې دا صفت پکښې شته دے، غیبت خو وائي دیته: چې سړي کښې نقصان موجود وي، او تۀ دَ هغې بد وائې، نو هغې ته غیبت وائي، کۀ ورته وائي: چې غیبت مۀ کوه، وائي: دَ څۀ غیبت؟ زۀ به ئې درته دَ هغه پۀ مخکښې هم اووایم، نو هم دغې ته غیبت وائي، او کۀ یَو نقصان پکښې نشته، او تۀ وائې: چې دے داسې دے، نو هغه خو بهتان دے، هغۀ خو دَ غیبت نه لویه گناه ده، غیبت دیته وائي: چې مسلمان کښې یَو نقصان موجود دے او تۀ خلقو ته وائې.

**جائز غیبت**

هاں! ناکاره بادشاه دے دَ هغۀ غیبت اوکړه، بدعتي سړے دے چې دَ هغۀ نه بدعات خورېږي دَ هغۀ غیبت اوکړه، یَو داسې سړے دے چې دَ هغۀ نه نور خلق خرابیږي دَ هغۀ غیبت اوکړه، پاتې شو عام خلق دَ هغوي غیبت کول ناروا دے.

نبي ﷺ فرمائي: "چا چې پۀ مسلمان باندې یَو پرده واچوله الله به پۀ هغۀ باندې اویا (۷۰) پردې واچوي، او چې دَ یَو مسلمان حاجت دې پوره کړو، الله به ستا اویا (۷۰) حاجتونه پوره کړي"، مونږ وایُو: زمونږ هغۀ دې نۀ پوره کیږي، خو دَ بل سره امداد نۀ کوو، مونږ وایُو: الله دې زمونږ نه شل (۲۰) کرته پرده اوچته کړي خو چې بل مسلمان بے عزته کړو، چې تۀ دَ بل بے عزتي خوښوې، الله به تا بے عزته کوي، او چې دَ بل عزت کوې نو الله به تا ته عزت درکوي.

نو جبرئیل امین علیه السلام نبي ﷺ ته فرمائي: دا هغۀ خلق دي ستا پۀ امت کښې چې دوي به دنیا کښې دَ خلقو غیبتونه کول، پۀ خلقو به ئې الزامونه لگول، پۀ خلقو باندې به ئې بدنامي لگولې؛ دَ معراج دَ واقعې یَو څو حالات ما ستاسو مخکښې ذکر کړل، پۀ دې ● ې ډیر اوږد بحث دے؛ ځکه

بعضې خلق دَ معراج نه انکار کوي، دَ هغوي جوابونه دَ وخت دَ کمي دَ وجې نه پاتې شول. بعضې خلق وائي: نبي ﷺ پۀ خوب کښې تلے وو، څوک وائي: صرف روح ئې تلے وو، ما درته صرف دومره اووئيل: چې نبي ﷺ پۀ ويخه باندې تلے وو، او روح ئې هم تلے وو، دا معجزه وه دَ نبي ﷺ: چې دَ شپې پۀ لږه غونډې حصه کښې الله تعالیٰ دَ مسجدِ حرام نه روان کړو تر مسجدِ اقصیٰ پورې لاړو، بيا دَ مسجدِ اقصیٰ نه ئې روان کړو بره دَ آسمانونو سيل ئې ورباندې اوکړو، او چې راغلے نو بيا هم لا شپه پاتې وه، چې دا مزل پۀ کال کښې هم نۀ ختميږي، او چې راغلے نو بيا هم شپه پاتې وه، تردې پورې چې نبي ﷺ دَ کومې بسترې نه پاسيدلے وو، هغۀ هم له يخه شوې نۀ وه، هغۀ حرارت پکښې هغۀ شان وو، امِّ هانئ فرمائي: دَ ماسخوتن مونځ ئې مونږ سره اوکړو، مونږه اودۀ شو، او پيغمبر ﷺ هم اودۀ شو، چې سحر شو، نبي ﷺ مونږ هم مونځ له پاسَولو، او پخپله هم پاسيدو، بيا راغلے وو، او پخپل کټ کښې اودۀ وو، دا معجزه وه دَ رسول الله ﷺ او دَ دې بيان الله سورة بني اسرائيل کښې کوي، الله رب العزة دې مونږ او تاسو له دَ صحيح عمل کولو توفيق رانصيب کړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه نوؤلسمه

## "په مدينه منوّره کښې دَ اسلام ابتداء "

بتاريخ: 15-07-2022

مقام: جلسیٔ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه نوؤلسمه

## "پۀ مدينه منوّره کښې دَ اسلام ابتداء"

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

حاضرينو عزتمندو مسلمانانو رونړوا دَ رسول الله ﷺ سيرتِ مبارکه شروع وو، دَ سيرت څۀ حصه مخکښې بيان شوې وه، دَ نبي ﷺ دَ پيدائښ نه واخلې دَ نبوّت تر لسم کال پورې، دَ هغې څۀ مختصر نقشه ذکر شوې وه.

### پۀ مدينه منوّره کښې دَ اسلام ابتداء

نننۍ بيان کښې دَ نبي ﷺ دَ يوؤلسم، دولسم او ديارلسم کال سيرت بيانوؤ. پۀ دې کلونو کښې غټ کار دا شوے وو: چې مدينې منوّرې ته اسلام راورسيدو. تاسو ته دا هم واضحه کوؤ: چې نن خو مدينه منوّره دَ صحابو ﷺ او دَ ديندارو خلقو يو مرکز دے، او ښخوا وو. ابتداءً دې مدينې ته اسلام څنګه راورسيدو؟ پۀ څۀ طريقه راورسيدو؟ نبي ﷺ خو مکه کښې وو او دَ مکې کافر خو دَ نبي ﷺ سخت خلاف وو. پۀ مدينه منوّره کښې دوه ډلې وې، دا دَ دغه ځائې خلق وو، او دا ډيرې

---

(1) [سورة الأحزاب: 21].

لوئې قبيلې وې په مدينه منوّره کښې، لوئي خاندانونه وو. يَو ته به ئې اوس وئيلو او دويم ته به ئې خزرج وئيلو. اوس او خزرج دواړه دَ يَو بل ډير سخت دشمنان هم وو او کافر هم وو، او دوي بت پرست هم وو، مشرکان وو، اهلِ کتاب نهٔ وو.

پهٔ دې مدينه کښې يهوديان هم اوسيدل، او هغوي هم دوه ډلې وې: (۱) يَو: بنو نضير، او (۲) بله: بنو قريظه. دا يهوديان چې وو نو دوي لږ وو خپله کښې ئې يَواځې زندګي نهٔ شوه تيرولے، اکثر څوک پښتنې دَ اوس سره ملګري وو او څوک پښتنې دَ خزرج سره ملګري وو. دَ هغوي پهٔ ملګرتيا کښې به ئې ژوند تيريدو. نو دَ اوس او دَ خزرج پهٔ مينځ کښې دشمني هم وه نو کله به دَ يهودو هم دَ اوس او دَ خزرج سره اختلاف راغے؛ ځکه چې کله يَو ځائے کښې څوک پاتې کيږي نو خامخا اختلاف راځي. نو اوس او خزرج خو ډيرې غټې ډلې وې او دا يهود خو لږ غوندې خلق وو، نو دوي کله دَ هغوي مقابله کولے شوه. نو دې يهوديانو به اوس او خزرج ته وئيل (چې دا کافر وو): چې زمونږه پهٔ کتاب کښې ئې ليکلي دي: چې آخري نبي به راځي، او دَ هغهٔ وخت نزدې شوے دے، نو کله چې دِغهٔ نبي راشي مونږه ټول به دَ هغهٔ ملګري کيږو او پهٔ هغهٔ باندې به ايمان راوړو، او ستاسو مشرکانو او دَ دې کافرانو سره به جنګيږو او تاسو بيا کله هم پهٔ مونږه باندې زوروَر کيدے نهٔ شئ. دَ دې اهلِ کتابو دا خبره دَ دې کافرانو (اوس او خزرج) پهٔ دماغو کښې پرته وه، خو هغه وخت کښې ئې خو منله نهٔ.

**دَ خزرج دَ قبيلې څهٔ خلق حج ته تلل**

چونکه دا حج دَ نبي ﷺ دَ بعثت نه مخکښې هم وو، دَا دَ ابراهيم عليه السلام دَ زمانې نه شروع وو، بلکه دَ هغې نه هم مخکښې شروع وو. نو دَ حج موسم چې راغے نو دَ حزرج دَ قبيلې څهٔ خلق حج ته بيت الله ته، مکې مکرّمې ته لاړل. دا تقريبًا دَ نبوّت يَوؤلسيم کال وو، هجرت خو لا شوے نهٔ دے، دَ نبوّت خبره ځکه کوؤ. نو دوي چې لاړل او نبي ﷺ ئې اوليدو نو دَ دوي پهٔ زړهٔ کښې هغه خبره راغله، چې يهوديانو به مونږ ته دا خبره کوله چې آخرنے پيغمبر به راځي او دَ هغهٔ وخت را نزدې دے او مونږه به هغهٔ سره ملګري کيږو، او مونږ به پرې ايمان راوړو او بيا به تاسو سره

جنګیږو. دوي چې نبي ﷺ اولیدو نو ډارک پوهه شول چې زمونږ پۀ خیال هغه نبي دا دے. نو دا خزرج قبیلې والا راغلل او نبي ﷺ سره ئې ملاقات اوکړو. نبي ﷺ ورته دَ ایمان دعوت ورکړو، قرآن ئې ورته اولوستو نو دوي پۀ خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چې هغه پیغمبر خو دا دے خو هسې نۀ چې دا یهود راشي او هغوي پرې زمونږ نه مخکښې ایمان راوړي نو راځئ! دَ دې یهودو نه پرې مونږه مخکښې ایمان راوړو نو دا یهود به را ته بیا نۀ شي تینګیدے.

**دَ خزرج دَ خلقو ایمان راوړل**

نو نبي ﷺ چې دعوت ورکړو نو هغې خبرو پۀ دوي باندې اثر اوکړو او دوي نبي ﷺ ته اووئیل: چې مونږ ته کلمه اووایه، مونږ درباندې ایمان راوړو او ستا ملګري کیږو، دا شپږ (٦) کسان حج ته راغلي وو: (١) اسٔعد بن زراره، (٢) عوف بن الحارث، (٣) رافع بن مالک بن عجلان، (٤) قطبه بن عامر، (٥) عقبه بن عامر، او (٦) جابر بن عبد الله بن رئاب ﷺ. دا هغه مشهور جابر ﷺ نۀ دے بلکه دا بل دے دَ مدینې دے. دا شپږ (٦) صحابه ﷺ اولنې هغه خلق وو چې دَ مدینې منورې نه مکې ته حج له راغلي وو، او هلته ورته الله ایمان نصیب کړے وو، دوي چې مدینې منورې ته لاړل نو هلته به دَ خلقو سره کیښناستل او دَ نبي ﷺ صفتونه به ئې خلقو ته کول، چې داسې انسان وو، یره! ما لیدلے وو، ډیر قیمتي سړے وو، ډیر غوره انسان وو، ډیر خوش اخلاقه وو. نو دا مذاکره هم پۀ خلقو کښې پوره اثر کوي. نو دَ نورو کسانو پۀ زړۀ کښې دَ ایمان او دَ نبي ﷺ محبت الله پیدا کولو، نو دولسم کال دَ نبوّت باندې چې کله دَ حج موسم راغے نو دغه کسان هم راغلل، پۀ دې کښې دا یو (جابر بن عبد الله بن رئاب ﷺ) کس نۀ وو شریک شوے. او پنځۀ هغه زاړۀ مسلمانان شول او ځان سره ئې اووۀ (٧) کسان نور هم راوستل، نو دولسو (١٢) له تعداد اورسیدو. نو پۀ هغه نورو ملګرو کښې: (١) یَو: "معاذ بن حارث" دا دَ عوف بن حارث ﷺ رور وو، (٢) ذکوان بن عبدِ قیس، (٣) عباده بن صامت، (٤) یزید بن ثعلبه، (٥) عباس بن عباده بن نضله، (٦) ابو الهیثم مالک بن تیهان، او (٧) عویم بن ساعده ﷺ دا ملګري ئې دَ ځان سره راوستل. او نبي ﷺ ته وائي: چې دوي ته کلمه اووایه، مِنٰی کښې نبي ﷺ دَ عقبه سره پۀ خوا کښې ئې دوي کیښنول، او دَ دوي نه ئې بیعت واغستو چې دَ

يَو الله توحيد به منئ، دَ الله سره به شريک نهٔ جوړوئ، غلا به نهٔ کوئ، زِنا به نهٔ کوئ، اولاد به نهٔ وژنئ، قتل به نهٔ کوئ، پهٔ يَو بل به بدنامي نهٔ لګوئ... دا بيعتونه ئې ترې واغستل او دا کسان مسلمانان شول. چونکه اول شپږ وو اوس دولس (۱۲) کسان شول.[1]

**مصعب بن عمير او عبد الله بن ام مکتوم ﷺ دَ دعوت دپاره ليږل**

نبي ﷺ اوفرمائيل: چې دوي خو ايله راغلل، ما ورته کلمه اوونئيله او ايمان ئې راوړو، اوس دوي له تعليم ورکول غواړي نو دوي خو لاړل، کال بعد به بيا راځي نو دوي له داسې يَو کس پکار دے چې دوي سره هلته کښې لاړ شي او دوي له هلته کښې درس کوي او دوي ته دين ښائي. نو نبي ﷺ دَ هغوي سره دوه صحابه کرام ﷺ اوليږل: يَو (۱) عبد الله ابن ام مکتوم ﷺ دے، خو دے خو پهٔ سترګو ړوند وو نو معذوره وو. (۲) بل ئې ورسره مصعب بن عمير ﷺ اوليږلو. دوي دواړو ته ئې اوونئيل: چې تاسو به لاړ شئ او دوي ته به هلته کښې دَ قرآن تعليم ورکوئ، قرآن به ورته ښايئ. اوس کله چې دوي دواړه لاړل، نو مدينه خو پردے ځائے وو، دَ دوي پکښې څهٔ نهٔ وو، او دوي غريبانان هم نوي نوي مسلمانان شوي وو، دومره تصرُّف او دومره اختيار ئې هم نشته، خو اسعد بن زراره ﷺ دَ ملګرو سره مشوره اوکړه: وائي: زما دا کور ښهٔ دے، او زما پهٔ کور کښې به را جمع کيږو او مصعب بن عمير ﷺ به موںږ ته قرآن وائي. (اللهُ اکبر!!! څهٔ عجيبه منظر به ووا!!).

مصعب بن عمير ﷺ هغوي ته دَ قرآن درس شروع کړو. قرآن ډير انقلابي کتاب دے، او دَ اسلام دعوت به ئې ورکولو، او چونکه ابتدائي دور وو نو مونځ به ئې هم ورله پهٔ هغه کور کښې جمعي سره ورکولو. دوي به راتلل او بيا به دَ هغه ځائے نه تلل، مصعب بن عمير ﷺ ئې استاذ هم وو او امام ئې هم شو.

**دَ أسَيد بن حضير ﷺ دَ مصعب بن عمير ﷺ خوا ته راتلل**

يَوه ورځ مصعب بن عمير ﷺ دوي ته دَ اسلام دعوت ورکوي، دَ قرآن درس کوي، خلق

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (304/1).

راجمع دي، پهٔ دې کښې دَ مديني يَو سردار دے "اسيد بن حضير ﷺ" (دَ دې ټولو سره مونږ ځکه رضِيَ اللّهُ عَنْهُ وايُو؛ چې دې ټولو ته بيا الله رب العزة ايمان نصيب کړے وو). نو دا اُسيد بن حضير لا دغه وخته پورې پهٔ هغوي کښې مسلمان شوے نهٔ وو، وائي: مړه! دَ دې مکّې نه يَو سړے راغلے دے، څهٔ ليونے غوندې دے، ټول خلق ئې گمراه کړل، نوې نوې مسئلې ئې ورته شروع کړي دي. توره ئې راواغسته او وائي: نن به ترې دا مدينه خالي کړمه. را روان شو چې راغے مصعب بن عمير ﷺ دَ قرآن درس کوي، خلقو ته دَ اسلام تعليم ورکوي، او دے ورته اودريدو او مصعب بن عمير ﷺ ته وائي: تهٔ دَ مکّې نه راغلے ئې، دلته زمونږه پهٔ مدينه کښې زمونږه خلقو ته دين بيانوې، ولې مونږه درته بے دينه ښکارو؟ مونږه درته کافران ښکارو؟ زمونږه زنانه دې بے دينه کړې، زمونږه ماشومان دې بے دينه کړل، تهٔ دلته لګيا ئې؟ يا څه کَني سر درنه کټ کوم، پاسه شابه! څه. مصعب بن عمير ﷺ ورته وائي: زما يَو خبره واوره! بيا چې تهٔ هر څهٔ کوې نو اوکړه!، دے ورته وائي: اووايه! تهٔ څهٔ وائې؟ وائي: زهٔ خو هسې هم ميلمه يم خو صرف دومره وايم: چې تهٔ کيښنه! زهٔ چې دا کومه خبره کوم نو دا واوره! کهٔ دې خوښه وه نو اوئې منه او کهٔ دې نهٔ وه خوښه نو مهٔ ئې منه، خو تهٔ ئې خو واوره کنه!، تا پهٔ خپله اوريدلې نهٔ ده او دَ بل چا نه دې خبره اوريدلې ده او ما پسې را روان ئې؟ نو زما خبره واوره! کهٔ دې خوښه نهٔ شوه نو مهٔ ئې منه، او بيا به زهٔ لاړ شم چې تهٔ وائې: چې څه!. اسيد بن حضير ورته وائي: دا دې هم ښهٔ خبره اوکړه، څه! شابه! تهٔ لګيا شه او زهٔ درته غوږ کيږدم. مصعب بن عمير ﷺ دَ اسلام دعوت شروع کړو، او دَ قرآنِ عظيم تلاوت ئې دې ملګرو ته شروع کړو.

اسيد بن حضير ﷺ توره راغستې ده او پهٔ دې خيال راغلے دے چې دے به وژنم، هغهٔ چې کله قرآن واوريدو نو قرآن خو يَو ډير نا آشنا کلام دے، بے اختياره ئې پهٔ خُلهٔ دا ټکے راغے:

"مَا أَحْسَنَ هَذَا الْكَلَامَ وَأَجْمَلَهُ!".[1]

"ښومره خائسته کلام دے!"، دومره خائسته کلام خو ما چرته نهٔ دے اوريدلے، دومره

---

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (436/1).

مزیدار کلام دَ دې نه مخکښې ما چرته اوریدلے نۀ دے، اے مصعبه! داسې بهترین دین تۀ بیانوې چې دا دین مخکښې ما چرته نۀ دے اوریدلے، زۀ هم غوارم، چې پۀ دې دین کښې داخل شم نو ما ته چل اوښایه چې زه به پۀ دې دین کښې څنګه شاملیږم؟ مصعب بن عمیر ﷺ ورته وائي: غسل اوکړه، کپړې واغونده، خوشبوئي اولګوه او واپس راشه!. دے لاړو غسل ئې اوکړل، کپړې ئې بدلې کړې خوشبوئي ئې اولګوله، واپس راغے مصعب ﷺ ورته اول کلمه دَ شهادت وائي چې وایه:

"أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ".(1)

کلمه ئې ورته اووئیله او بیا ئې ورته دَ مونځ طریقه اوښودله، چې پۀ دې طریقه باندې به مونځ کوې، هغه خو عربي وو، الفاظ ئې ډیر زر یاد شول، او ورته وائي: صبا نه به راځې او مونږ سره به مونځ کښې شریکیږې، أُسید بن حضیر ﷺ ایمان راوړو، مسلمان شو، او دوي سره ئې مونځ هم اوکړو.

## دَ سعد بن معاذ ﷺ دَ مصعب بن عمیر ﷺ سره راتلل

اوس أُسید بن حضیر دوي ته وائي: چې هلکه! ما باندې خو مو کار اوکړو، زۀ مو مسلمان کړمه، خو اوس یَو نا آشنا کار کوؤ: وائي: دلته دَ مدینې یَو سردار دے، چې هغه زما نه هم دَ پاسه دے، زۀ ځم او هغه درله رالیږم، چې هغه مو هم مسلمان کړو نو خلق به ډلې ډلې راځي او مسلمانان کیږي به.

أُسید بن حضیر ﷺ لاړو، او دا بل کس سعد بن معاذ ﷺ دے، دے هم ډیر سخت دَ مسلمانانو خلاف وو. سعد بن معاذ ﷺ ورته وائي: أُسیده! تا څۀ چل اوکړو؟ وائي: زۀ خو لاړم، ما خو هغۀ کښې څۀ غلطي اونۀ مونده، خبرې مې ورله هم واوریدې (دا ورته نۀ وائي: چې زۀ مسلمان شوے یم، وائي: هسې نۀ چې ړومبئ شروع پۀ ما اوکړي). وائي: ما خو دَ هغۀ خبرې واوریدې، ما خو څۀ عیب پۀ هغۀ کښې معلوم نۀ کړو، څۀ نقصان مې پکښې معلوم نۀ کړو، او سړے خائسته خبرې کوي، زۀ خو پرې څۀ پوهه نۀ شوم. سعد بن معاذ ﷺ پۀ غصه کښې راغے او توره ئې را واغسته، وائي: دومره غټ سړے ئې او تۀ اوسه پورې پۀ دې هم نۀ پوهیږې چې ذے ښۀ دے او کۀ ښۀ نۀ دے؟ زۀ به لاړ شم او

(1) انظر: "سیرة ابن هشام": (436/1).

زۀ به دَ دۀ اوس خوښ شم.

سعد بن معاذ ﷺ راغے، مصعب بن عمیر ﷺ بیا ناست دے او دَ قرآنِ کریم درس کوي او دَ اسلام تعلیم ورکوي، کله چې سعد بن معاذ ﷺ راغے نو ملګري ورته وائي: چې سعد راغے او دے خو ډیر ناکاره دے، الله دې خیر اوکړي. دے چې را دننه شو نو اول خو اسعد بن زرارہ ﷺ ته غصه شو چې تۀ زمونږ دَ قبیلې سرے ئې او دَ بل ځائے نه دې سړے راوستے دے او دلته دې ډیره کړے دے او ټولو خلقو له دې پرې عقیدې خرابې کړې!، دا دې څۀ چل کړے دے؟ هغۀ ته ئې ردّې بدې اوویلې. او بیا مصعب بن عمیر ﷺ ته وائي: چې دا تا څۀ ګډې وډې شروع کړي دي؟ تۀ مونږ ته دین بیانوې؟ مصعب بن عمیر ﷺ هغه ته وائي: چې زۀ یَو خبره اوکړم؟ وائي: اووایه!، چې تۀ څۀ وائې؟ وائي: صرف دومره وایم: چې زۀ خو درسره جنګ نۀ کوم، او نۀ درسره شور کوم، کیېنه! دا خبره واوره! یَو دوه منټه به تا سره دا خبره اوکړم کومه چې دوي ته کوم، کۀ دې خوښه شوه نو قبوله به ئې کړې او کۀ دې خوښه نۀ وه نو چې بیا تۀ زمونږ سره څۀ کوې نو هغه اوکړه!، مونږ خو ستا نه تخښتو نۀ، بس وژنه مو، مړۀ مو کړه، مونږ درته ولاړ یُو، کۀ شړې مو اومو شړه!.

سعد وائي: یره! دا هم ښۀ خبره ده، چې واورم چې دے څۀ وائي؟ نو سعد ﷺ ورته اوویل: ډیره دَ انصاف خبره دې اوکړه، وایه؟ مصعب بن عمیر ﷺ ورته اول دَ اسلام محاسن بیان کړل، دَ اسلام فائدې ئې ورته بیانې کړې، دَ اسلام دعوت ئې ورکړو، او بیا ئې دَ قرآنِ عظیم ورته شروع کړو. او کله ئې چې دَ قرآن تلاوت شروع کړو هغه خو عربیان وو، صرف تلاوت هم هغوي له کافي وو؛ ځکه هغوي پۀ معنٰی باندې پوهیدل. کله چې دَ قرآنِ کریم تلاوت شروع کړو نو دَ سعد ﷺ رنګ بدلیدو... آخر دے وائي: ما ته طریقه اوښایۀ، زۀ هم دا دین قبلوم نو پۀ کومه طریقه به دې دین کښې وردننه کیږو؟ چل را ته اوښایه؟ مصعب ﷺ هغۀ ته هم طریقه اوښودله چې لاړ شه او غسل اوکړه، کپړې واچوه او راشه چې کلمه درته اووایم. دے پۀ منډه منډه لاړو، غسل ئې اوکړو، کپړې ئې واچولې او راغے، کلمه ئې اوویله، مسلمان شو.

## دَ سعد بن معاذ قوم ﷺ له دَ ایمان دعوت ورکول

او چې کله ئې کلمه اووئیله او مسلمان شو نو واپس قوم ته لاړو او خپل قوم ئې مخاطب کړو او قوم ته ئې اووئیل: چې زۀ تاسو کښې څنګه سړے یم؟ وائي: تۀ پۀ مونږ کښې ډیر بهتر سړے ئې، او ډیر اوښیار سړے ئې، ډیر قابل سړے ئې. دے ورته وائي: کۀ زۀ درته یَو مشوره درکړم نو تاسو ئې منئ؟ ورته وائي: تا خو چې مونږ له کله هم مشورې راکړي دي نو هغې کښې مونږه چرته نقصان نۀ دے کړے، بالکل ئې منو. دا خو دَ قوم سردار وو، نو دے ورته وائي: چې ما نن دَ اسلام داسې خبرې واوریدې چې ما پۀ ټوله زندګئ کښې نۀ وې اوریدلې، او ما نن دَ داسې یَو کلام تلاوت واوریدو چې دا ما چرته پۀ دنیا کښې لیدلے نۀ وو... وائي: زما ټولو ته دا مشوره ده: چې دَ ماښام نه مخکښې مخکښې ټول لاړ شئ او کلمه اووایئ، ایمان راوړئ.

بس خلقو ټولو کورونو ته منډه کړه او هر یَو لامبي او منډې وهي، یَو وائي: ما ته کلمه اووایه، بل وائي: ما ته کلمه اووایه، چې ماښام کیدو نو دَ قبیلې بني عبد الاشهل (عبد الاشهل دغې مدینه منوّره کښې مشر وَ) یَو کس هم نۀ وو پاتې شوے، نۀ سړے، نۀ زنانه، ټول پۀ ټوله راغلل او مسلمانان شول، پۀ دې طریقه باندې مدینه منوّره کښې دین خوریدو. هاں! صرف یَو سړے پکښې پاتې شوے وو، چې دَ هغۀ نوم وو: "عَمرو بن ثابت". او دَ هغۀ لقب وو: "اُصَیرم". نو دے دغه وخت کښې دَ اسلام نه پاتې شوے وو خو بیا روستو دَ جنګِ اُحد پۀ دور کښې مسلمان شوے دے، نو دۀ بیا روستو ایمان راوړے دے، نوره ټوله قبیله پۀ یَو ځل باندې دَ سعد بن معاذ ﷺ پۀ لاس مسلمانه شوه.

بهر حال پۀ بني عبد الاشهل قبیله کښې دا یَو سړے هغه وخت مسلمان شوے نۀ وو خو دَ دۀ واقعه هم نا آشنا ده، دے بیا پۀ غزوه اُحد کښې مسلمان شو، او چې خبر شو چې دَ اُحد جنګ شروع دے، کلمه دَ شهادت ئې اووئیله او توره ئې غاړې ته واچوله او دَ اُحد جهاد ته لاړو او چې لاړو نو لږ وخت بعد بیا دے شهید شو. دَ دې وجې نه علماؤ لیکلي دي: چې نبي ﷺ هغۀ له پۀ دنیا کښې دَ جنتي کیدو زیرے ورکړے وو. وائي: ابو هریره ﷺ به کله کله صحابو ﷺ ته وئیل: چې ما ته هغه کس اوښایئ، هغه صحابي دَ رسول الله ﷺ را ته اوښایئ: چې هغه مسلمان شو او زندګئ

کښې ئې يَو مونځ نهٔ وو کړے او ډارک جنت ته تلے دے؟ صحابو ﷺ وئيل: دا به لا څنګه سړے وي چې مسلمان وي او مونځ ئې نهٔ وي کړے او بيا به لا جنت ته هم تلے وي؟ ابو هريره ﷺ به ورته وئيل: چې دا اُصيرم ﷺ وو، چې دا ئې لقب وو، خپل نوم ئې عَمرو بن ثابت ﷺ وو. دا هغه سړے وو چې کلمه ئې اووئيله او دَ جهاد دور شروع وو، ډارک ميدانِ جهاد ته لاړو، دَ مونځ وخت پکښې لا نهٔ وو راغلے چې دے شهيد شو. نو مسلمان شوے دے خو يَو مونځ ئې هم نهٔ دے کړے، ډارک جنت ته تلے دے. نو دے هم بيا روستو مسلمان شوے دے. نو دې قبيلې ټولو پهٔ ټوله باندې ايمان راوړو او مسلمانان شول.(1)

## دَ جُمعې دَ مونځ ابتداء

بيا چونکه مدينه منوّره کښې اسعد بن زراره ﷺ هغوي به دې خلقو له مونځ هم ورکولو او رو رو ملګري سېوا کيدل، تر دې پورې چې دَ جُمعې مونځ ئې ورله هم شروع کړو، هغه ورځو کښې لا جُمعه نهٔ وه، يهودو به پهٔ هفته کښې يَو ورځ راجمع کيدل، يهود به دَ خالي پهٔ ورځ راجمع کيدل. دا دَ هغوي يَو دَ تعظيم ورځ وه. نصارٰى به پهٔ هفته کښې يَو ورځ راجمع کيدل او هغوي ځان له دَ اتوار ورځ خوښه کړې وه. هغوي به دَ اتوار پهٔ ورځ باندې را جمع کيدل. نو دې صحابوٴ ﷺ مشوره اوکړه او دوي ځان له ورځ منتخب کړه، دَ خالي پهٔ ورځ به راجمع شول، اول به ئې خطبه اووئيله، بيا به ئې ورته مونځ اوکړو. دا دَ جُمعې مونځ دَ هغې وخت نه شروع وو. دغې اسعد بن زراره ﷺ به ورته دَ جُمعې مونځ ورکولو، پهٔ دې طريقه مسلمانان سېوا کيدل.

ديارلسم کال دَ نبوت چې کله راغے، چې دا دَ مکّې آخرنے کال دے، بيا بل کال نبي ﷺ مدينې منوّرې ته هجرت کړے دے. پهٔ ديارلسم (۱۳) کال مصعب بن عمير ﷺ روان شو او هغه ټول ملګري چې دَ ځان سره ئې تيار کړي وو هغه ئې دَ نبي ﷺ سره ټول بيعت ته بوتلل چې راځئ! ايمان خو مو راوړے دے چې دَ رسول الله ﷺ سره ملاقات اوکړئ او بيعت هم دَ رسول الله ﷺ سره اوکړئ. نو تقريبًا بيا څهٔ د پاسه اويا کسان جوړ شوي دي. بيا پهٔ ديارلسم کال باندې دوي لاړل، او

(1) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (316/1).

نبي ﷺ سره هغوي هغه ځائے کښې بيعت اوکړو، او بعضې علماؤ ليکلي دي: چې چونکه نور کسان ورسره هم لا ړل نو پنځهٔ اويا (۷۵) خو هغه مسلمانان وو او چې نور ورسره تلي دي نو دَ ځلور سوؤ نه هم تعداد سېوا کيږي نو دوي خو ايمان دَ مخکښې نه راوړے وو، خو بيعت ئې دَ نبي ﷺ سره اوکړو. علماؤ دَ هغوي پچتر (۷۵) صحابؤ ﷺ نومونه هم ليکلي دي چې کومو دَ نبي ﷺ سره پهٔ دې دريم کال باندې بيعت کړے دے، خو کهٔ زهٔ هغه بيانوم نو پهٔ هغې به ډير زيات وخت اولګي نو چې دا پنځهٔ اويا (۷۵) صحابهٔ کرام ﷺ دوي دَ نبي ﷺ سره بيعت اوکړو.

نو رو رو پهٔ مدينه منوّره کښې دَ مسلمانانو کثرت نور هم سېوا شو، پهٔ دې کښې اکثر خلق دَ مدينې هغه مسلمانان شوي دي تر دې پورې چې دَ مدينې منوّرې لوئي لوئي سرداران هغه هم مسلمانان شول.

## دَ عَمرو بن الجموح ﷺ واقعه

دَ مدينې پهٔ سردارانو کښې يَو کس دے، نوم ئې "عَمرو بن جموح" دے، دے دَ بني سلمه قبيلې سردار وو، دَ دهٔ دَ خاندان ټول کشران مسلمانان شول او دے نهٔ مسلمان کيدو، کله کله بوډاګان پهٔ هغې خپلو زړو خبرو ډير کلک وي. دے ډير کلک وو، دَ دهٔ ځوي دے هغه هم مسلمان دے، معاذ بن عمرو بن الجموح ﷺ نوم ئې دے، ورېرونه ئې هم مسلمانان شول خو دے ډير کلک وو نهٔ مسلمان کيدو. دهٔ يَو بُت جوړ کړے وو او دَ هغې بُت به ئې ډير تعظيم کولو. دَ لرګي نه ئې بُت جوړ کړے وو او دَ شپې او دَ ورځې به ئې وينځلو او صفا کولو به ئې، او منختې او نذرانې به ئې ورته پيش کولې. دې ځوي او ورارهٔ ئې او نورو ځوانانو مشوره اوکړه چې دے پهٔ چل باندې مسلمان کړي، وائي: دے به هله مسلمانيږي چې دَ دهٔ دَ دې زړهٔ نه دَ بُت تعظيم ختم شي. نو يَو شپه راغلل او دهٔ چې کوم بُت جوړ کړے وو نو هغه ئې واغستو او پټ ئې کړو او لا ړل او يَو کندې ته ئې اوغورځولو. دے اوس راوږے دے سحر کښې، او خپل بُت پسې ګرځي چې خدائے مې چا روک کړے دے، هغې پسې ګرځيدو خو بُت نهٔ وو. ګرځيدو ګرځيدو، نو چرته چا ليدلے وو، وائي: فلانئ کنده کښې پروت دے. دے چې ورغے نو کندګئ کښې پروت دے، کنده هم

دے پهٔ ګندګئ باندې، دهٔ هغه را واغستو او ښهٔ صفا ئې اووينځلو او ډير زيات خفه وو، چې زما دَ خدائے ډيره غټه بے عزتي اوشوه، کاش، چې دا سړے ما ته معلوم وے!!!، ما به ورسره داسې کړے وے، داسې کړے وے. حالانکه خپل ځوي او ورارهٔ ئې دا شے کړے وو، خو غرېئې خو نهٔ کولو چې دا کار مونږه کړے دے.

يَو شپه تيره شوه، دوي راغلل او بيا ئې هغه بُت اوچت کړو او هغه ئې ترې اوغورځولو، بيا ورپسې دے ګرځيدو، بيا ئې دَ ګندَګئ نه را اوچت کړو، دهٔ ډيرې بدې ردې اووئيلې، صفا ئې کړو او اوئې وينځلو، او بيا ئې ورله چوکيداري کوله، او چې کله کور ته تلو نو توره ئې راوړه او دې بُت ته ئې غاړې ته زوَړنده کړه، وائي: کيدے شي چې دے به تا ټوټې کړے وے خو توره به درسره نهٔ وه؛ ځکه درنه بچ پاتې شوے دے، نو دا توره مې درله دَ دې دپاره راوړه چې کهٔ بيا دپاره دې څوک بے عزتي کوي نو پهٔ دې توره به ئې وهې. توره ئې ورله غاړې ته واچوله.

نو دا کسان چې راغلل او اوئې کتل چې هغهٔ خو ورله نن غاړې ته توره هم اچولې ده او نور ئې هم ښهٔ مزيدار کړے دے او صفا کړے ئې دے نو توره ئې ترې اوچته کړه او غاړې ته ئې ترې کيخوده او بُت ئې بيا اوچت کړو. او چې اوچت ئې کړو نو يَو مُردار سپے پروت وو هغه ئې را واغستو او يَوه رسئ ئې را واغسته، نو دا بُت او هغه سپے ئې دواړه پهٔ يَو رسئ باندې اوتړل او يَو شاړ کوهے وو هغې کښې ګندونه پراتهٔ وو هغې کښې ئې اوغورځولو، سپے او بُت دواړه اوس کوهي کښې يَو ځائے پراتهٔ دي. دے چې سحر راپاسيدو، توره پرته ده، او بُت نشته، دے ګرځي راګرځي چې زما بُت چا پټ کړے دے.... آخر چا ورته اووئيل: چې هغې فلانکي کوهي کښې پروت دے، دے چې راغے اوس دغه ځائے کښې الله دهٔ له هدايت نصيب کړو، دَ دهٔ سوچ راغے چې دا څنګه اِلٰه دے چې زهٔ ئې را اوچتوم او خلق ئې رانه پټوي او دے ځان نهٔ شي خلاصولے نو ما له به څهٔ فائده راکړي؟ نو دماغو ئې کار شروع کړو او دَ کوهي پهٔ غاړه اودريدو، او چې لاندې ئې اوکتل نو يَو رسئ باندې بُت او سپے دواړه تړلے شوي دي او يَو ګنده کوهي کښې پراتهٔ دي.

## دَ عمرو بن الجموح ﷺ اشعار

نو په دغه موقع عَمرو بن الجموح ﷺ څهٔ اشعار وئيلي دي، علماؤ هغه نقل کړي دي، هغه اشعار دا دي:

وَاللهِ لَوْ كُنْتَ إِلٰهًا لَمْ تَكُنْ أَنْتَ وَكَلْبٌ وَسْطَ بِئْرٍ فِي قَرَنْ

"زما دې په الله تعالٰی قسم وي، اے بُته! که چرته تهٔ اِله وے او تهٔ حاجت روا وے نو تهٔ او دا سپے دواړه دَ کوهي په مينځ کښې په يَو رسئ تړلي به نهٔ وئ پراتهٔ (تا خو به دَ دې ګند نه ځان بچ کړے وے!)".

أُفٍّ لِمَلْقَاكَ إِلٰهًا مُسْتَدَنْ الْآنَ فَتَّشْنَاكَ عَنْ سُوءِ الْغَبَنْ

"هلاکت وي دَ هغه چا دپاره چې هغه تا ته اِله وائي، او ستا خدمتونه کوي (لکه دَ منجورانو، شپه او ورځ ستا خدمتونه کوي، او تا صفاء کوي او ستا تعظيم کوي نو هغه انسان دې تباه او برباد شي)، نن مونږه ستا معلومات اوکړل، نن مونږ ته معلومه شوه چې تهٔ کم عقل ئې او تهٔ بے وقوفه ئې او تهٔ اِله نهٔ ئې".

الْحَمْدُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ ذِي الْمِنَنْ الْوَاهِبِ الرَّزَّاقِ دَيَّانِ الدِّيَنْ

"حمدونه دي الله لره هغه الله چې هغه ډير اوچت دے او ډير دَ لويو لويو احساناتو خاوند دے، هغه الله چې بخښونکے دے (چې خلقو له بے عِوضه اشياء وربخښي، هنسې مُفته کښې ئې ورکوي)، رزق ورکونکے ذات دے، او دَ دينونو بدلې خلقو له ورکوي".

هُوَ الَّذِي أَنْقَذَنِي مِنْ قَبْلِ أَنْ أَكُونَ فِي ظُلْمَةِ قَبْرٍ مُرْتَهَنْ

"دا الله دے هغه ذات چې زهٔ ئې خلاص کړم مخکښې دَ دې نه چې شمه زهٔ په تيارو دَ قبر کښې ګانړه او را بند (دَ هلاکت او دَ مرګ نه مخکښې مخکښې ئې ما له ايمان نصيب کړو او هلاکت نه ئې بچ کړم)".

"بِأَحْمَدَ الْمَهْدِيِّ النَّبِيِّ الْمُرْتَهِنْ".[1]

(1) انظر: "الروض الأنف": (86/4)، و"سيرة ابن هشام": (453/1).

"دَ احمد ﷺ دَ وجې نه، چې هدايت والا دے، پيغمبر دے او ګانړه کيخودونکے دے".

او نورو علماؤ دَ هغهٔ دا اشعار هم ذکر کړي دي:

أَتُـوبُ إِلَـى اللهِ مِمَّا مَـضَـى — وَأَسْتَنْقِذُ اللهَ مِنْ نَارِهِ
وَأُثْنِي عَـلَـيْـهِ بِنَعْمَائِهِ — إِلٰهَ الْحَرَامِ وَأَسْتَارِهِ
فَسُبْحَانَهُ عَـدَدَ الْخَـاطِـئِينَ — وَقَطْرَ السَّمَاءِ وَمِدْرَارِهِ
هَدَانِي وَقَدْ كُـنْـتُ فِي ظُلْمَةٍ — حَلِيفَ مَنَاةٍ وَأَحْجَارِهِ
وَأَنْقَذَنِي بَعْدَ شَيْبِ الْقَذَالِ — مِنْ شَيْنِ ذَاكَ وَمِنْ عَارِهِ
فَقَدْ كِدْتُ أَهْلِكُ فِي ظُلْمَةٍ — تَدَارَكَ ذَاكَ بِمِقْدَارِهِ
فَحَمْدًا وَشُكْرًا لَهُ مَا بَقِيتُ — إِلٰهُ الْأَنَامِ وَجَبَّارُهُ
أُرِيـدُ بِذَلِكَ إِذَا قُـلْـتُـهُ — مُجَاوَرَةَ اللهِ فِي دَارِهِ[1]

دا شعرونه به ئې وئيل، او مکمل دَ شرک نه ئې توبه اوويسته، او دے الله پهٔ دې مسلمان کړو چې دَ هغې بُت بے عزتي ئې اوليده. دا دَ دې مدينې منوّرې هغه ابتدائي دور وو، نو خبره مې دا کوله چې پهٔ دريم (۳) ځل اويا (۷۰) کسان راغلي دي او دَ نبي ﷺ سره ئې بيعت کړے دے.

**بيعت**

صرف دا واورئ! چې بيعت څهٔ شے دے؟ بيعت دا دَ بيع نه ماخوذ دے. بيع وائي: خرڅولو ته. دا خو لغوي معنیٰ ده. اصطلاح دَ شريعت کښې بيعت وئيلے کيږي: چې دَ الله دَ رضاء دپاره خپل ځان او خپل مال الله باندې خرڅ کړې او دَ دې پهٔ بدله کښې به دَ الله نه جنت غواړې. لکه ته چې پهٔ چا باندې څهٔ شے خرڅ کړې نو ستا اختيار پکښې بيا نهٔ وي.

نو مؤمنان به راغلل او نبي ﷺ ته به ئې وئيل: چې مونږه تا سره بيعت کوؤ، تا سره وعده کوؤ چې مونږ نفس الله لره ورکړو، کله چې الله زمونږ نه نفس غواړي نو منع به نهٔ وي، کهٔ مال غواړي نو منع به نهٔ وي، پهٔ دې چې الله به مونږ له جنت راکوي. دَ دې وجې نه چې کله دا بيعت اوشو نو

(1) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني، برقم: (228).

عبد الله بن رواحه ﷺ يَو خبره اوکړه:

"رَبِحَ الْبَيْعُ لاَ نُقِيْلُ وَلاَ نَسْتَقِيْلُ".[1]

اے دَ الله نبي! "په دې سوډا کښې مونږه ډیره ګټه اوکړه (بدن خو هسې هم خاورې کیږي، مال خو هسې هم ختمیږي، نو ډیره لویه ګټه مو اوکړه؛ ځکه چې الله به مونږ له جنت راکوي)، نۀ مونږه پۀ دې پښیمانه یُو او کۀ بل څوک پښیمانه کیږي نو بیا هم مونږ دا سودا واپس نۀ ورکوؤ". یعني پۀ یَو طریقه باندې هم مونږه دَ دې سودا واپسئ ته تیار نۀ یُو، مونږه پۀ دې باندې کلک یُو.

**غزوه خندق پۀ موقع دَ نبي ﷺ شعر وئیل**

او دغه وجه وه چې کله غزوه خندق وو نو نبي ﷺ به یَو شعر وئیلو:

اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلاَّ عَيْشُ الآخِرَهْ، فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالمُهَاجِرَهْ[2]

"یا الله! نور هیڅ ژوند نشته مګر صرف دَ آخرت ژوند دے (دَ دنیا به څۀ ژوند وي! کله یَو شان او کله بل شان، اصل ژوند خو دَ آخرت دے)، الله! انصارو او مهاجرینو ته بخښنه اوکړه".

او صحابه کرامو ﷺ به دَ نبي ﷺ دَ تسلئ دپاره یَو تکے وئیلو:

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا عَلَى الجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدَا[3]

"مونږ هغه خلقو یُو چې مونږه دَ محمد رسول الله ﷺ سره بیعت کړے دے (مونږ خپل ځان خرڅ کړے دے مونږ خپل مال خرڅ کړے دے)، او مونږه چې تر څو پورې ژوندي یُو نو مونږه به پۀ جهاد کښې یُو". یا به غازیان شو فتح به اومومو او یا به شهیدان کیږو خو کور ته دَ تلو والا نۀ یُو. نو صحابه کرامو ﷺ به دا تکے وئیلو:

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا عَلَى الجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدَا[4]

---

(1) انظر: "السيرة الحلبية": (22/2).

(2) أخرجه البخاري، برقم: (2834)، و برقم: (6414).

(3) أخرجه البخاري، برقم: (2834)، و برقم: (6414).

(4) أخرجه البخاري، برقم: (2834)، و برقم: (6414).

او نبي ﷺ به دا وئيل:

اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الآخِرَهْ فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالمُهَاجِرَهْ[1]

"الله! (كهٔ زما ملګري شهيدان شي پروا نشته)؛ ځکه دَ دنيا به څهٔ ژوند وي، الله! لويه خبره دَ آخرت مغفرت دے، زما صحابوٴ ﷺ ته بخښنه اوکړه"، چې جنت ورته ميلاؤ شي، دا لوئي مقام دے.

نو دا هغه ابتدائي دور وو چې مدينې منورې ته پهٔ دې طريقه باندې اسلام لاړو، کهٔ ژوند وي نو ان شاء الله بله جُمعه کښې به بيا دا وايُو: چې بيا وروستو نبي ﷺ هم لاړو، هغه بيا اولنے کال دے دَ نبي ﷺ مدينې منورې ته، دَ هغې وضاحت به بيا کوؤ.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(1) أخرجه البخاري، برقم: (2834)، و برقم: (6414).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه شلمه

## "دَ رسول الله ﷺ مديني منوّرې ته هجرت "

بتاريخ: 2022-07-22

مقام: جلسۍ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سیرة النبي ﷺ حصه شلمه

## "دَ رسول الله ﷺ مدینې منوّرې ته هجرت"

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

حاضرینو عزتمندو مسلمانانو رونړو! په مخکښې جُمعه کښې مونږه دا بیان کړے وو چې مدینې منوّرې کښې دَ اسلام ابتداء څنګه شوې وه؟ په څهٔ طریقه باندې مدینې منوّرې ته اسلام را اورسیدو؟ دَ هغې وضاحت شوے وو.

### دَ هجرت واقعه

نن جُمعه کښې دَ رسول الله ﷺ دَ هجرت واقعه مدینې منوّرې ته هغه ذکر کوؤ. مخکښې مونږه وئیلي وو: چې کفارو به مسلمانانو ته قسم ما قسم تکلیفونه رسول، په دې وجه مسلمانان انتهائي پریشانه شول دَ کافرانو وهلو، ټکولو او بے عزتونه نه. رسول الله ﷺ چې څنګه دَ نبوّت په ابتداء کښې ښائسته خوبونه لیدل نو دغه شان دَ هجرت په ابتداء کښې هم الله رب العزة به نبي ﷺ ته ښائسته ښائسته ځایونه ښودل چې دا ستا او ستا دَ امت دَ هجرت ځایونه دي. علماء کرام ذکر کوي: چې

(1) [سورة الأحزاب: 21].

نبي ﷺ ته نوم نۀ وو ښودلے شوے. لیکن نبي ﷺ ته به پۀ خوب کښې داسې علامې ښودلے کیدې چې هغې کښې به کجورې ډیرې وې. چې دا ستا دَ هجرت ځایونه دي. نبي ﷺ به پۀ خپل ذهن کښې وئیل: کیدے شي چې دَ حِجر مقام وي، دارنګې نورو ځایونو باندې به ئې سوچونه کول، چې هلته هم کجورې ډیرې دي. آخر دَ نبي ﷺ پۀ دې کښې ډیر تردُّد او شک وو نو دَ وحي پۀ ذریعه نبي ﷺ ته الله رب العزة متعین کړو چې ستا دَ هجرتِ ځائے "مدینه منوّرة" ده. او تۀ مدینې ته لاړشه.[1]

چونکه نبي ﷺ به کوشش کولو چې ضعیف خلق، کمزوري خلق او دَ چا چې دَ هجرت وس کیږي چې هغه مخکښې اولیږي نو پۀ دې وجه نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته دَ مدینې منوّرې ته دَ هجرت کولو حکم اوکړو: چې مدینې ته لاړشئ. کله چې صحابه کرام ﷺ مدینې ته روان شول نو دا خو ابتدائي دور دے چې دَ مکې نه مدینې ته هجرت کول وو. او دا هجرت کول او تلل مدینې ته دا هم څۀ آسان کار نۀ وو؛ ځکه چې دَ کفارو زور وو، او دَ هغوي حکومت وو، طاقت ئې وو او دَ مسلمانانو خو دومره وس نۀ وو چې هغوي پۀ خپل اختیار باندې هجرت کړے وے نو هغوي دَ کفارو نه ډیر پریشانه وو.

## دَ هجرت پۀ کولو باندې مسلمانانو ته تکلیفونه رسیدل

دَ دې وجې نه علماؤ لیکلي دي: چې یَو مسلمان به هجرت کولو نو پۀ دې هجرت کولو به هم هغوي ته ډیر سخت تکلیف میلاویدو. کافرانو دا نۀ غوښتل چې دوي لاړشي، او دوي پۀ بل ځائے کښې چرته پۀ آرام سره ژوند تیر کړي او دَ خپل ربّ عبادت اوکړي. هغوي به وئیل: چې پریږده چې دوي دلته کښې پۀ دې تکلیف کښې وي، نو کله خو به دوي دَ خپل دین نه توبه اوباسي او دَ دین نه به را واپس شي.

## دَ امام محمد بن اسحاق رحمه الله قول

امام محمد بن اسحاق رحمه الله لیکلي دي: چې کله بیعت دَ عقبه اوشو نو دَ هغې دَ تکمیل نه بعد نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته دَ هجرت حکم اوکړو. او چې کله صحابه کرامو ﷺ ته دَ هجرت

(1) انظر: "سیرة المصطفی": (321/1).

باره کښې اجازت میلاؤ شو نو په هغې کښې دَ ټولو نه اول مهاجر دَ نبي ﷺ رضاعي رور دے چې دَ هغهٔ نوم "ابو سلمه بن عبد الاسد" دے. دا دَ بنو مخزوم قبیلې وو، او دا هغه کس دے چې دَ دهٔ او دَ نبي ﷺ په مینځ کښې دَ رضاعت رشته وه، او دَ دهٔ بي بي ام سلمه رضی الله عنها دَ هغهٔ دَ وفات نه بعد بیا دَ نبي ﷺ په نکاح کښې راغلې ده، او هغه بیا ام المؤمنین رضی الله عنها کرځیدلې ده.

ابو سلمه بن عبد الاسد المخزومي رضی الله عنه اراده اوکړه چې کلے پریږدم او ځمه مدینې ته هجرت کوم، بي بي هم مسلمانه وه، سره دَ خپلې بي بي او سره دَ خپلو بچو تیار شول، سامانونه ئې اوتړل او لږ ساعت پس روانیږي او مدینې ته ځي...[1]

## دَ ابو سلمه عبد الاسد المخزومي رضی الله عنه په هجرت باندې قریش خبریدل

نو دے په روانیدو دے او دې کښې کافران خبر شو، قریش خبر شول نو قریشو دا نهٔ غوښتل چې دوي دې هجرت اوکړي، او دوي دې په آرام ژوند تیر کړي نو قریش راغلل او دهٔ ته وائي: چې هجرت به نهٔ کوې. دے ورته وائي: زهٔ ځمه.... نو آخر کښې دهٔ ته وائي: چې تهٔ ځې نو تهٔ لاړشه؛ ځکه تهٔ دَ خپل اختیار خاوند ئې او دَ کور والا رشته داران ئې راغلل، بنو مخزوم قبیلې والا، او هغوي ورته وائي: چې ستا دا ښځه خو زمونږ خور او لور ده، دا به دَ ځان سره نهٔ بوځې. هغه ئې دَ لاس نه اونیوله، خاوند له ورته وائي: تهٔ ځه او ښځه به دې دلته کښې وي، دا نهٔ شي بوتلے. امّ سلمه رضی الله عنها ئې تړې حصاره کړه، او په زوره ئې حصاره کړه، واړهٔ بچي ئې وو نو دَ خاوند دَ طرف خپلوان ئې راغلل (دے خو مسلمان وو او نور خو ټول کافر وو)، او دَ زنانه طرف دې خپلوانو ته وائي: چې دا ستاسو لور خور ده، تاسو به ئې بوځئ، دا ماشومان به مونږه بوځو، دا نهٔ ابو سلمه دَ ځان سره بوتلے شي او نهٔ ئې مور دَ ځان سره بوتلے شي. نو ابو سلمه رضی الله عنه یَواځې پاتې شو، بچې ئې تړې یَو چا بوتلل او کور والا ئې خپلوانو بوتله او ابو سلمه رضی الله عنه ته وائي: کهٔ تهٔ ځې نو ځه او کهٔ نهٔ ځې نو مهٔ ځه، تا سره زمونږ هډو څهٔ کار نشته دے. هغوي خو په دین باندې مئین خلق وو، ابو سلمه رضی الله عنه اووئیل: چې زهٔ به یَواځې ځم خو زهٔ به ځم، زهٔ دَ الله دین نهٔ پریږدم. ابو سلمه رضی الله عنه

(1) انظر: "سیرة المصطفی": (1/321-322).

هغه یِک یَواځې مدینې منوّرې ته روان شو.

ام سلمه ؓ وائي: چې سحر به شو نو زهٔ به ابطح (دا پهٔ مکه کښې یَو ځائے دے، یَو کارِژنه زمکه ده) ته دَ تولو خلقو نه یَواځې راغلم او دَ سحر نه تر ماښامه پورې به ما تولو ورځ پهٔ ژړا تیره کړه؛ ولې چې مسلمانه هم وه او دَ خپل خاوند سره ئي ډیره مینه هم وه. نو دَ یَو زنانه نه چې بچي هم جُدا شي او خاوند ئي هم جُدا شي نو دا ډیره گرانه ده. ام سلمه ؓ وائي: ما به دَ سحر نه تر ماښامه پورې توله ورځ پهٔ ابطح مقام کښې پهٔ ژړا باندې تیره کړه. ماښام به بیا دَ مجبورئ نه خپلوانو کره راغلم، شپه به مې تیره کړه، دَ خلقو خبرې را باندې نهٔ لگیدې سحر به مې بیا توله ورځ پهٔ ژړا تیروله، حتّٰی چې یَو کال مکمل پهٔ دې کښې تیر شو چې ابو سلمه ؓ مدینې ته لاړے او ام سلمه ؓ خپلوانو راوستله او بچي ئي دَ خاوند خپلوانو بوتلل، تول دَ یَو بل نه جُدا شو.

**دَ یَو کس پهٔ ام سلمه ؓ رحم راتلل**

ام سلمه ؓ وائي: یَو کال چې کله تیر شو دَ هغې نه بعد زمونږ دَ ترونو پهٔ ځامنو کښې یَو سړے وو، چې دَ هغهٔ زما پهٔ حال باندې ډیر رحم راغے چې ما به شپه او ورځ ژړل، وائي: هغه راغے او بنو مغیره ته وائي: چې ظالمانو! دا غریبه دَ خاوند نه او دَ بچو نه تاسو جُدا کړې ده، کال اوشو، دا تاسو دَ خپل دین نه وانهٔ ړوله، هغه هم دغه شان پهٔ خپل دین باندې کلکه ده او دَ شپې او دَ ورځې دا ژاړي نو کم از کم پهٔ دې باندې رحم اوکړئ او دې سره خو نور ظلم او زیاتے مهٔ کوئ، دا چې چرته خوشحاله وي هلته کښې ئي پریږدوئ. نو هغوي ما له اجازت راکړو کهٔ تهٔ دَ خپل خاوند خوا ته ځې نو تلے شې زمونږه تا ته اجازت دے. بل طرف ته دَ خاوند هغه خپلوان بنو الاسد هغوي را ولگیدل او هغوي اووئیل: چې دوي دې زنانه ته اجازت ورکړو نو مونږ به ورله دا بچي ورکړو، هغوي ورله بچي راولیږل چې دا بچي دې واخله، کهٔ دلته اوسیږې او کهٔ دَ خاوند خوا ته ځې. نو هغې اووئیل: چې زما خو دَ پخوا نه دَ هجرت آرمان وو نو زهٔ دلته څهٔ کوم؟[1]

**دَ ام سلمه ؓ یَواځې هجرت کول**

دَ ورو ماشومانو بچو سره ئي اوښ تیار کړو او ام سلمه یِک یَواځې مدینې منوّرې ته روانه

(1) انظر: "سیرة المصطفٰی": (322/1).

شوه. څوک چې تلي دي هغوي دا مزل ليدلے دے چې دَ مکې او مدينې په مابين کښې څومره لويه فاصله ده؟ اوس خو روډونه دي، او ډير سهولتونه دي، هغه زمانه کښې هيڅ قسم سهولت نۀ وو، دَ اوښانو او اسونو او دَ غرونو پيدل سفرې وې، په لاره کښې به شپې راتلې.

نو دا ام سليم ﷺ دَ ورو ورو بچو سره د مدينې منورې په طرف روانه شوه، څوک غمخوار داسې نۀ وو چې دَ دې سره ملګرے شوے وو، په هغې وخت کښې يَو کس ذے روستو ورته بيا الله ايمان نصيب کړے دے چې هغه "عثمان بن طلحه ﷺ" دے، دے بيا الله دَ صلح حديبيه په کال مسلمان کړو او دۀ بيا مدينې منورې ته هجرت هم کړے وو او بيا دے دَ سيدنا عمر فاروق ﷺ په دور کښې شهيد شوے دے. نو عثمان بن طلحه چې لا هغه وخت کښې مسلمان نۀ وو، کافر وو، ام سلمه ﷺ وائي: چې زۀ ئې اوليدم نو ما ته وائي: چې چرته روانه ئې؟ وائي: ما ورته اووئيل: دَ خپل خاوند خوا ته مدينې ته ځم. وائي: ما ته وائي: چې يَواځې روانه ئې؟ وائي: ما ورته اووئيل: چې بالکل يَواځې روانه يم، دا ماشومان بچي را سره دي، نور څوک را سره نشته دے، دا زنانه هغۀ ته وائي:

"لَا وَاللّٰهِ إِلَّا اللّٰهَ وَبُنَيَّ هَذَا".[1]

"قسم په الله دے! هيڅ څوک را سره ملګري نشته، يَواځې الله زما ملګرے دے او دا وارۀ وارۀ بچي زما ملګري دي".

**دَ يَو کافر دَ ام سلمه ﷺ مدينې منورې ته رسول**

ام سلمه ﷺ وائي: دَ هغه کافر په ما باندې رحم راغے، هغۀ چې دا واوريدل نو اوښ ئې راوستو او دَ مُهار نه ئې اونيولو او اوښ ئې کينښنولو او ما ته وائي: چې دې اوښ ته اوخيژه او خپل بچي هم دې ته اوخيژوه. وائي: زۀ اوښ ته اوختم او ما خپل ماشومان هم ځان سره کينښنول، په خپله ئې دا ټول مزل پيدل اوکړو، لاندې به ئې دَ اوښ مُهار نيولے وو او پياده روان وو، او زۀ په اوښ باندې سوره اوم، بچي مې هم په اوښ باندې سوارۀ وو. کله چې به لار کښې دَ دمې ځائے راغے نو دۀ به اوښ کينښنولو او بيا به دَ اوښ نه لرې لاړو چې دلته راکوز شئ!. مونږ به را کوز

---

(1) انظر: "الروض الأنف": (103/4)، و"سيرة ابن هشام": (469/1).

شو، دمه به مو اوکړه. يعني دومره حياء ناک چې لار کښې ئې چرته دَ غلط کار اراده هم نۀ ده کړې، دَ اوښ نه به لرې لاړو او ما ته به ئې اووئيل: چې دا بچي هم راکوز کړه او تۀ هم راکوزه شه او دمه اوکړئ. نو مونږه به دمه اوکړه. وائي: چې کله به بيا واپس تلو نو ما ته به ئې اووئيل: چې اوس بيا اوخيژئ، چې مونږ به اوښ ته اوختو نو بيا به دے راغے او دَ اوښ مُهار به ئې اونيولو او روان به شو.

وائي: پۀ دې طريقه باندې تر مدينې منوّرې پورې عثمان بن طلحه ﷺ (چې هغې وخت کښې لا کافر وو) مونږ ئې اورسولو او چې مونږه ئې را اورسولو او کله چې دَ قباء هغه ځايونه پۀ نظر راغلل (قباء پۀ مدينه منوّره کښې يَو ځائے دے او هلته کښې هم جومات جوړ دے، چې هغې ته مسجد قباء وائي. حديث کښې راځي: هغې کښې دوه رکعته مونځ کول دَ عمرې برابر ثواب لري) نو وائي: ما ته ئې اووئيل: چې دا هغه کلے دے چې پۀ دې کښې ستا خاوند مقيم دے، ځه! دَ الله پۀ خير او برکت سره دې خپل خاوند خوا ته لاړه شه. دا زنانه وائي: چې زما دې پۀ الله باندې قسم وي چې دَ عثمان بن طلحه ﷺ نه زيات عزتمند انسان ما ليدلے نۀ وو، چرته غلطه خبره او غلط حرکت ئې نۀ وو کړے چې هغه وخت لا کافر وو. زۀ ئې مدينې منوّرې ته را اورسولم.[1]

نو اول مهاجر دغه ابو سلمه ﷺ وو، بيا دَ هغۀ بي بي او دَ هغۀ اولاد راغے او بيا وروسته عامر بن ربيعه ﷺ، سره دَ خپلې بي بي نه، چې دَ بي بي نوم ئې "ليلٰى بنتِ ابي حثمه (ﷺ)" وو. هغه راغله او دواړو ښځې او خاوند هجرت اوکړو.

بيا ابو احمد بن جحش ﷺ او دَ هغۀ رور عبد الله بن حجش ﷺ، سره دَ خپل اهل وعيال نه دوي هجرت اوکړو. داسې خلق به رو رو پټ راتلل، سحر به يَو سړے وو، ماښام به نۀ وو، خلقو به وئيل: هغه جوړې تلے دے.

## دَ عُتبه او دَ ابو جهل حال

عتبه او ابو جهل دواړه کافران وو، او دَ مسلمانانو سخت دشمنان وو، دا دواړه ولاړ وو او دا

---

(1) انظر: "عيون الأثر": (173/1).

منظر به ئې کتلو چې يَو يَو کور به خالي کيدو او يَو يَو کورنۍ به روزانه دَ مکې نه دَ مدينې طرف تله، وائي: دې عتبه دَ زړهٔ نه يَو اسويلے اوکړو او يَو شعر ئې اووئيلو:

وكُلّ دَارٍ وَإِنْ طَالَتْ سَلاَمَتُهَا     يَوْمًا سَتُدْرِكُهَا النَّكْبَاءُ وَالْحُوبُ[1]

"هر يَو کور کهٔ ډيره زمانه روغ پاتې شي خو يَو ورځ به پهٔ هغې باندې دَ غم او دَ ماتم حالت راځي".

وائي: ډيره زمانه داسې وه چې مکه يَو خائسته ښار وو، خائسته کلے وو خو نن مکه رو رو خالي کيږي، او خلق ترې روان دي!!!. او بيا ئې اسويلے اوکړو: چې دَ مکې ډير خائسته ژوند وو!، خلق به وزته دَ بل ځائے نه راتلل خو زمونږه دا ورارهٔ (محمد ﷺ) دا ټول کار دَ دهٔ دَ لاسهٔ نه خراب شو. چې دے را پيدا شوے دے نو خلقو کښې ئې اختلافات را پيدا کړل، نن خلق بچي پريږدي، ښځې پريږدي، خپلوان پريږدي او دَ دهٔ سره منډې وهي، او هجرت کوي، وائي: دا ټول شرپسند پهٔ مونږ کښې دے دے (نعوذ بالله!).[2]

دَ هغې نه بعد رو رو نور صحابه کرام ﷺ مهاجر کيدل، دَ هغې نه بعد بيا عکاشه بن محصن، عقبه بن وهب، شجاع بن وهب، اربد بن جميره، منقذ بن نباته، سعيد بن رقيش، محرز بن نضله، يزيد بن رقيش، قيس بن جابر، عَمرو بن محصن، مالک بن عَمرو، صفوان بن عَمرو، ثقيف بن عَمرو، ربيعه بن اکثم، زبير بن عبيد، تمام بن عبيد، سنجره بن عبيده او محمد بن عبد الله بن جحش ﷺ. دا ټول صحابه ﷺ مهاجرين شول.[3]

## مُهاجرې زنانه

پهٔ زنانو کښې زينب بنت جحش، ام حبيبه بنت جحش، جذامه بنت جندل، ام قيس بنت محصن، ام حبيب بنت ثمامه، آمنه بنت رقيش، سنجره بنت تميم او حمنه بنت جحش ﷺ، دې زنانو ﷺ هجرت اوکړو، رو رو مدينې ته خلق روان وو. تر دې چې سيدنا عمر ﷺ هم دې ته

---

(1) انظر: "الروض الأنف": (105/4).

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (323/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق مخرّجا: (278/1).

(3) انظر: "سيرة المصطفى": (323/1).

مجبوره شو چې مکه پرېږدي او هجرت اوکړي.[1]

## دَ عیاش بن ابي ربیعه ﷛ هجرت کول او ورسره دَ ابو جهل چل کول

عیاش بن ابي ربیعه ﷛ هم هجرت اوکړو، عیاش بن ابي ربیعه ﷛ چې کله مدینې ته لاړو، دا صحابي دے. ابو جهل بن هشام او حارث بن هشام دا دواړه رونړه دي، او دا حارث بن هشام بیا روستو مسلمان شوے هم دے. نو دا دواړه رونړه مدینې منوّرې ته لاړل عیاش بن ابي ربیعه ﷛ پسې، او چل ئې ورسره اوکړو، وائي: اے عیاشه! تهٔ دلته راغلے ئې، مدینې ته راغلے ئې او مونړه تا پسې څکه راغلو چې ستا پهٔ مور مو زړهٔ خفه شو، وائي: ستا مور دا قسم خوړلے دے چې پهٔ خدائے مې دې قسم وي! چې چرته به سر اونهٔ وینځم، چرته به دَ غرمو نه سورې ته نهٔ شم، خوراک څښکاک به اونهٔ کړم تر څو پورې چې مې خپل څوي عیاش بن ابي ربیعه ﷛ لیدلے نهٔ وي. نو مور دې دَ لوږې او تندې نه ځان وژني، دومره خفه ده نو دومره لاړشه هغه به رضاء کړې بیا به راځې. نو عیاش بن ابي ربیعه ﷛ چې دا واوریدل زړهٔ کښې دېر خفه شو، دے واپس راغے او چې راغے او دَ ملکرو نه ئې څنګه را جُدا کړو، لاس ئې ورله اوتړل او قسم ما قسم سزاګانې ئې ورله ورکولې. عیاش ﷛ ته وائي: دَ دې اسلام نه به اوړې، دا دین به پرېږدې. عیاش ﷛ بالکل پهٔ خپل دین باندې کلک وو، هغې زمانه کښې به نبي ﷺ دَ صبا پهٔ مونځ کښې قنوتِ نازله لوستلو، او نبي ﷺ به دا دعاء کوله:

«اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ».[2]

الله! دا غریبانان مسلمانان چې دَ کافرانو پهٔ قبضه کښې دي او نهٔ ئې پرېږدي او سزاګانې هم ورکوي، "الله ولید بن ولید ته نجات ورکړه، خلاص ئې کړه، سلمه بن هشام دَ کافرو دَ لاس نه را خلاص کړه، عیاش بن ابي ربیعه دے هم دَ کافرو دَ لاسونو نه خلاص کړه". نبي ﷺ به دَ دوي دپاره دعاء کانې کولې.

بهر حال صحابه کرامو ﷡ به ورځ پهٔ ورځ هجرت کولو، محدّثینو او مؤرِّخینو دَ هغوي هغه

(1) انظر: "سیرة المصطفى": (323/1).

(2) انظر: "شرح الزرقاني على المواهب": (415/10)، "عیون الأثر" لمحمد بن محمد فتح الدین: (202/1).

نومونه هم ليکلي دي خو کۀ هغه بيانوؤ نو ډير وخت به پرې اولګي.

آخر دا چې په مکه کښې يو څو کسان پاتې شول، نور ټول مهاجر شول، يو محمد رسول الله ﷺ پاتې شو، يو ابو بکر صديق رضي الله عنه پاتې شو او يو علي رضي الله عنه پاتې شو او نور هغه کمزوري خلق وو چې دَ هغوي دَ هجرت وس نۀ کيدو، څوک پرې زورور وو، چې ګورے! دَ کور نه اونۀ ځئ، دَ هجرت لار ورته نۀ کيده، نو هغوي دَ مجبورئ نه پاتې وو. ابو بکر رضي الله عنه څو څو ځله نبي ﷺ ته وئيلي وو: چې اے دَ الله رسوله! څه چې ځو! نبي ﷺ ورته اووئيل: ما ته لا حکم نۀ دے شوے چې زۀ په خپله لاړ شم. او ابو بکر رضي الله عنه ته ئې اووئيل: چې تۀ څه مۀ، دواړه به يو ځائے ځو.

نو نبي ﷺ، ابو بکر صديق رضي الله عنه او علي رضي الله عنه دوي په مکه کښې پاتې شول.

**په دار الندوه کښې دَ کافرانو راجمع کيدل**

کافران په دار الندوه کښې راجمع شول او مشوره ئې اوکړه. دار الندوه دا يو ځائے وو چې دَ نبي ﷺ په نيکونو کښې يو نيکۀ تير شوے وو قُصئ بن کلاب، قصئ بن کلاب دا ځائے جوړ کړے وو، په هغې کښې به مشورې کيدې. نو په دې کښې دوي راغونډ شول، او مشوره ئې شروع کړه: چې يره! دا خلق ورځ په ورځ باندې هجرت کوي او دا ټوله مکه به شاړه شي، او دا ټول نقصان دَ دې نبي (ﷺ) دَ لاس نه جوړ شوے دے، چې دے دې خلقو ته دا مسئلې کوي نو خلق ئې ټول بے دينه کړل، دَ دۀ خلاف يو مشوره کوؤ چې دَ دۀ سره څۀ اوکړو؟ يو څو غټ کافران دي چې هغوي را جمع شوي دي: عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه، ابو سفيان بن حربَ، طعيمه بن عدي، جبير بن مطعم، حارث بن عامر، نضر بن حارث، ابو البختري بن هشام، زمعه بن الاسود، حکيم بن حزام، ابو جهل بن هشام، نبيه بن حجاج، منبّه بن حجاج او اميه بن خلف. داسې غټ غټ کافران را جمع شول، دا ئې مشران وو، دوي راغونډ شول.

چې کله دوي په دار الندوه کښې کيښناستل نو په دې کښې يو بابا راغے، نا آشنا سړے دے، چا نۀ پيژندو، نو دوي هغې بابا ته په خير راغلې اووئيلې، سلام کلام اوشو، دوي هغې بابا ته وائي: چې بابا! تۀ څه! او زمونږه څۀ خاص خبره ده، مونږه خپله خبره کوؤ (دا بابا شيطان دے،

انساني شکل کښې راغے). دے ورته وائي: بچو! زۀ خبر شوے یم چې تاسو څۀ مشوره کوئ؟ نو زۀ هم دَ دغې مشورې پۀ خیال راغلے یم، چې زۀ هم تاسو سره پۀ دغه مشوره کښې ځان شریک کړم. دوي ورته اووئیل: چې تۀ دَ کوم ځائے نه راغلے ئې؟ نو دے ورته وائي: چې زۀ خو دَ نجد نه راغلے یم. دوي ورته وائي: کېښنه! باباګان خو ډېر اوښیاران وي مونږ له به هم څۀ مشوره راکړې. بابا ئې هم ځان سره کېښنولو، چې پۀ اصل کښې دا شیطان وو.

(۱) **اوله مشوره:** مشورې شروع شوې نو یَو پکښې دا اووئیل: چې یره! دَ دې نبي (ﷺ) نه خلاصیدے نۀ شو، بس دَ خلاصي طریقه به ئې دا وي: چې اوئې نیسئ او کوټه کښې ئې بند کړئ نو تر څو چې ئې توبه ایستلې نۀ ده نو دَ هغې وخته پورې به ئې دَ کوټې نه نۀ راخلاصَوئ، دا دَ دۀ جیل دے چې توبه ئې اوویسته نو را خلاص به ئې کړئ، ټولو اووئیل: چې دا خبره صحیح ده. چې شیطان له کله مشوره راغله نو شیطان وائي: دا بالکل غلطه ده؛ ځکه تاسو به ئې کوټه کښې بند کړئ، دَ هغۀ خاندان ښۀ تکړه خلق دي، هغوي به ئې درنه بیا آزاد کړي، نو بیا به تاسو دَ دۀ سره څۀ اوکړئ؟ او بل دا چې دومره اوږد ئې څوک بندولے شي؟ تاسو به ئې میاشت بند کړئ، کال به ئې بند کړئ نو دومره اوږد به ئې څوک بندَوي؟ دوي اووئیل: یره! دا خبره خو هم صحیح ده.

(۲) **دویمه مشوره:** بیا ئې مشوره شروع کړه: نو پۀ دویم ځل ئې مشوره پۀ دې باندې راغله چې یره! دَ دې مکې نه به ئې اوباسئ، پرېږدئ چې هر خوا ځي، نو مکه خو به ترې خلاصه کړو، مکه کښې به را ته خلق نۀ خرابېږي، خلق به نۀ ګمراه کېږي (نعوذ بالله! مسلمان ته به ئې ګمراه وئیلو). وائي: دَ کلي نه به ئې اوباسو نو خلاص به شو ترې نه، ټولو اووئیل: چې دا صحیح ده. خو چې کله دَ شیطان خوا ته دا رائې راغله نو دا بابا ورته وائي: چې نا! نا! دا خبره بالکل غلطه ده، وائي: ولې غلطه ده؟ وائي: دا خو تاسو دَ مکې والا زورَور یئ، دَ مکې نه به ئې اوباسئ نو بل ملک ته به لاړ شي، بل کلي ته به لاړ شي پۀ هغې کلي کښې به دے دعوت شروع کړي او تاسو ته پته ده چې پۀ خُلۀ کښې ئې خو ډېر اثر دے نو هلته به ځان سره ملګري تیار کړي، ملګري به جمع کړي او دومره لښکر به جوړ کړي چې مکې والا به ئې بیا مقابله نۀ شي کولے، نو ګورے!

خبردار! چې بل ځلي ته ئې پرې نۀ ایږدئ، بل چرته درنه لاړ نۀ شي. دوي اوونیل: یره! بابا خو ډیر اوښیار دے!، دَ دۀ دا خبره هم صحیح ده. نو دا مشوره ئې هم کینسل کړه.

**(۳) دریمه مشوره:** دا دریمه مشوره دَ نبي ﷺ خپل ترۀ ابو جهل لعین پیش کړه، دا دَ رسول الله ﷺ سخت دشمن وو. دۀ پکښې اوونیل: چې زما رائې دا ده: چې دے مۀ قید کوئ، مۀ ئې جلا وطن کوئ، زما رائې دا ده: چې دَ دۀ بغیر دَ مرګ نه بل علاج نشته، وژنو ئې، خو کۀ زۀ ئې مړ کوم نو ما له دشمني جوړیږي، کۀ بل سړے ئې مړ کوي نو هغۀ له دشمني جوړیږي نو راځئ! دَ مکې دا ټول سرداران دا به یَو شو او پۀ شریکه باندې به دَ هر خاندان نه یَو یَو سړے واخلو، ټول به پرې پۀ یَو ځل باندې حمله اوکړو (هغې وخت کښې دَ تورو جنګ وو)، پۀ تورو به پرې یَو ځل ګزارونه اوکړو نو وارث به ئې دَ چا چا نه بدل اخلي؟! ځکه یَو خوا ټوله مکه ده او بل خوا دَ دۀ خاندان، نو دَ ټولو نه خو بدل اغستے نۀ شي نو مجبوره به شي دیته چې مونږ له دیت راکړئ، نو خومره دیت چې غواړي نو ورله به ئې کړو او دَ دې نبي نه به ځان خلاص کړو. ټولو چې دا مشوره اوکړه او چې کله شیطان له دا رائې راغله نو هغه وزته وائې: دې ځوان چې کومه خبره اوکړه، دا صحیح مشوره ده، بس دَ دې نه بله مۀ کوئ. دَ شیطان ورسره پۀ دې مشوره باندې اتفاق راغلے او مشوره ئې دا اوکړه چې: خلق لا مۀ خبروئ، بس تیار راجمع شوي یئ او ځئ چې تیار دَ نبي (ﷺ) کوخې له ځو او پۀ نبي (ﷺ) باندې حمله کوؤ.

**دَ رسول الله ﷺ دَ هجرت ابتداء**

الله رب العزة خپل نبي ﷺ له وحي راولیږله: چې نبي! ستا خلاف خلق یَو ځائے شوي دي، او تۀ به نن شپه کښې هجرت کوې او تۀ به دَ مکې نه ځې. دا دَ نبي ﷺ دَ هجرت ابتداء وه.

حدیث کښې راځي: سیده عائشه رضي الله عنها وائي: نبي ﷺ مونږ کره کله هم غرمه کښې نۀ وو راغلے، روزانه به دَ ابو بکر صدیق رضي الله عنه ملاقات ته راتلو، دواړه پۀ یَو بل باندې ډیر مئین وو، سحر به هم راتلو او ماښکر به هم راتلو خو غرمه کښې چرته هم دَ الله نبي ﷺ نۀ وو راغلے، پۀ دې

ځل نبي ﷺ غرمه کښې راغے او وائي: مونږ وئيل: چې دَ الله نبي ﷺ چرته دا وخت راغلے نهٔ دے، څهٔ چل به وي؛ چې راغے نو ابو بکر صديق ﷺ ته ئې اووئيل: چې يا ابا بکر! څهٔ مشورې له راغلے يم او دا ماشومان او دَ کور دا خلق دَ کور نه اوباسه، تا سره پټه يَو خبره کوم. ابو بکر صديق ﷺ ورته وائي: چې يا رسول الله! دلته خو نور څوک نشته دے، دا زما لونړه ذي او زما پهٔ دوي باندې اعتماد دے چې دوي دَ کور خبره بهر نهٔ کوي، وايه؟ وائي: صحيح ده. نبي ﷺ ورته اووئيل: چې ما ته ربّ دَ هجرت حکم کړے دے، ابو بکر تهٔ تيار ئې او کهٔ نهٔ؟ ابو بکر ﷺ ورته وائي: چې يا رسول الله! زهٔ خو دَ دوؤ مياشتو نه پهٔ دې انتظار يم چې کله به دَ ربّ حکم راځي، دوه اوښې مې ساتلي دي، او ښې مې څرېې کړې دي، چې کومه اوښه ستا خوښه وي نو هغه تهٔ واخله او بله به زهٔ واخلم او دواړه به سوارهٔ شو او ځو به. نبي ﷺ ورته وائي: صحيح ده، خو اوښه به هسې نهٔ راکوې، پيسې به درکوم. وائي: مشوره اوشوه.

عائشه ﷺ وائي: ما او اسماء دواړو به نبي ﷺ او ابو بکر صديق ﷺ ته توخه تياروله. اسماء بنت ابي بکر ﷺ دا دَ عائشې ﷺ بله خور وه، دَ ابو بکر ﷺ لور وه، دَ عائشې ﷺ نه مشره وه. وائي: نور څهٔ شے به نهٔ وو چې کله به مونږه دَ خوراک، څښکاک سامان تيار کړو... ځوانئ چونکه دَ تکليف زمانه وه، کارونه به ډير وو، کمزورياني به وې، سرو او ښځو به اکثر دا مَلاکاني تړلې، کمربند به ئې ترې تاؤ کړے وو نو يَو پټه به ئې جوړه کړې وه چې مَلا به ئې پرې تړله؛ چې دا درد نهٔ کوي. وائي: چې بل څهٔ شے نهٔ مِلاويدو نو اسماء خپل دَ مَلا کمربند را کولاؤ کړو او هغه ئې پهٔ مينځ دوه ټوټې کړو او پهٔ يَو ټوټه ئې هغې کوډي ته خُلهٔ اوتړله چې کوم کښې مونږ دَ خوراک، څښکاک سامان اچولے وو او پهٔ بله کپړه به مو هغه مشکيزې ته خُلهٔ اوتړله چې هغې کښې اوبهٔ پرتې وې. دا سامان مو تيار کړو.

نبي ﷺ لاړو، علي ﷺ ته وائي: چې علي! نن به تهٔ زما پهٔ کټ کښې اودهٔ کيږې، زما پهٔ بستره کښې به اودهٔ کيږې، علي ﷺ راغے او دَ نبي ﷺ پهٔ کټ او بستره کښې اودهٔ شو، کافران دَ شپې دَ

نبي ﷺ دَ کور مخې ته ولاړ دي او چې نبي ﷺ راوتو نو حديث کښې راځي: دَ سورة يٰسٓ دا ابتدائي آيتونه ئې وئيل تر دې آيت پورې:

﴿وَجَعَلْنَا مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ﴾.(1)

نو نبي ﷺ دا آيتونه لوستل او را روان دے او دَ دې کافرو طرف ته ئې شګې اوغورځولې، دَ کافرانو پۀ مخه نبي ﷺ تيريدو او دې کافرانو نۀ ليدو، الله رب العزة ورله دا سترګې بل خوا واړولې، پۀ نبي ﷺ باندې هډو پوهه نۀ شول.

اختصار دا دے: چې کله دواړه روان شول نو پۀ دې کښې دَ ابو بکر ﷺ ځوي (عبد الله بن ابي بکر) دا ډير اوښيار وو، نو دے ورسره هم روان شو، نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ دواړه غارِ ثور ته لاړل، چې غارِ ثور ته کله لاړل نو درې (۳) شپې او درې (۳) ورځې دوي پۀ غارِ ثور کښې وو. دلته به دَ مکې خلقو پۀ خپل مينځ کښې مشورې کولې چې دوي کوم خوا لاړل؟ دوي وروستو تلي هم دي، پل ئې معلومولو چې کله غار ته اورسيدل حديث کښې راځي: جولاګے راغے او دَ دې غار پۀ خُلۀ کښې جال جوړ کړو او کونترې اګۍ اچولې وې، نو دوي اووئيل: چې دې غار کښې شته نۀ، او کۀ وے نو دا جال به روان شوے وے، نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ دواړه پۀ غار کښې ناست دي. ابو بکر ﷺ وائي: کافران ګرځيدل، دا خپې به ئې مونږه ليدلې، وائي: ما نبي ﷺ ته اووئيل: کۀ لږ ئې لاندې اوکتل نو مونږ به اووينې!، وائي: نبي ﷺ ما ته اوفرمائيل:

«مَا ظَنُّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ بِاثْنَيْنِ اللهُ ثَالِثُهُمَا».(2)

"پۀ هغه دوؤ کسانو ستا څۀ ګمان دے چې دريم ورسره الله ملګرے دے؟". الله به زمونږه حفاظت کوي.

کافرانو دوي اونۀ ليدل او واپس لاړل. عبد الله بن ابي بکر به دَ شپې راغے او دوي سره به ئې توله شپه تيره کړه؛ ځکه چې دَ مکې حالات به ئې راوړل چې فلانکے کافر دا وائي، فلانکے

(1) [سورة يس: 9].

(2) أخرجه البخاري في كتاب أصحاب النبي ﷺ، باب مناقب المهاجرين وفضلهم، برقم: (3653).

کافر دا واﺋي، او بیا به سحر وختي (دَ شپې آخرئ حصه) کښې اووتو، سحر به مکّې ته رسیدلے وو، چې دَ مکې خلق پرې پوهه نهٔ شي چې دهٔ دا شپه پهٔ کوم ځائے کښې تیره کړه. داسې سړے وو، ماښخوتن نا وخته به دَ کور نه را اووتو غارِ ثور ته به راغے او بیا به ئې غارِ ثور کښې هغوي سره ټوله مذاکره اوکړه، فلانکے کافر دا واﺋي، فلانکے کافر دا واﺋي نو دَ هغوي حال به ئې هم ورته را اورسولو او دَ نبي ﷺ او دَ ابو بکر رضی الله عنه حال به ئې هم معلوم کړو بیا به شپه شپه کښې لاړو نو چې دَ سحر بانګونه به ئې وئیل نو هغهٔ به هلته ناست وو.

دَ ابو بکر رضی الله عنه یَو غلام دے دَ هغهٔ ښاروي به ئې څرول، اوښان به ئې څرول، ګډې او بیزې به ئې څرولې نو هغه غلام ئې پوهه کړے وو (هغه هم ډیر اوښیار وو): چې تهٔ به دَ څرولو پهٔ خیال خپل ښاروي کله کله دې خوا راولې چې مونږ له پهٔ غار کښې خوراک، څښکاک میلاویږي. نو هغه به ماښام کښې او سحر کښې ښارَوي اخوا بوتلل، دوي له به ئې تازه پئ اولوشل، چې څوک به نهٔ وو نو هغه پئ به ئې دوي له ورکړل. درې ورځې دوي هلته کښې تیرې کړې. درې ورځې بعد بیا نبي ﷺ او ابو بکر رضی الله عنه دواړه دَ مدینې پهٔ طرف باندې روان شوي دي.

کله چې دوي دَ مدینې پهٔ طرف تلل نو هغه زمانه کښې یَو کافر وو، دوي ته لار نهٔ وه معلومه، کهٔ پهٔ مشهوره لار باندې تلل نو بیا خطره وه، چې کافران را ته مخکښې چرته لار اونهٔ نیسي. نو هغه وخت کښې یَو کس وو: "عبد الله بن اریقط"، دے ئې دَ رهبرئ پهٔ طور دَ ځان سره ملګرے کړو چې تهٔ به مونږ ته لار ښائې، او هغهٔ له ئې پیسې ورکړې چې دا به ستا تنخوا وي. دا عبد الله بن اریقط کافر وو، مشرک وو، لیکن دَ نبي ﷺ او دَ ابو بکر رضی الله عنه پهٔ دهٔ باندې پوره اعتماد وو، چې دے به زمونږه خلاف جاسوسي نهٔ کوي، او داسې سړے هم وو چې دَ ابو بکر صدیق رضی الله عنه او دَ نبي ﷺ ئې ډیر خیال ساتلے وو، روغ رمټ ئې تر دَ مدینې پورې رسولي وو.

تر دې ځائے پورې واقعه راغله، بیا چې نبي ﷺ مدینې منوّرې ته دننه کیدو، هغه کیفیت او هغه حالت هغه به را روانه جُمعه کښې ذکر کوؤ.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه يوويشتمه

## "دَ نبي ﷺ مديني منوّرې ته دَ هجرت كولو پۀ وخت كښې پۀ لاره كښې نا آشنا نا آشنا حالات راتلل"

بتاريخ: 29-07-2022

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه يوويشتمه

## "دَ نبي ﷺ مديني منوّرې ته دَ هجرت كولو په وخت كښې په لاره كښې نا آشنا نا آشنا حالات راتلل "

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُو اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا﴾.(1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! په تيره جُمعه كښې دَ رسول الله ﷺ دَ هجرت بيان شروع وو، چې نبي ﷺ مديني منوّرې ته هجرت څنګه كړے وو؟ په غارِ ثور كښې څو ورځې هغوي تيرې كړې وې؟ او بيا دَ هغې ځائے نه مديني منوّرې ته له څنګه تلے وو؟ نو مونږه وئيلي وو: چې دَ الله پيغمبر ﷺ دَ كور نه را اووتو نو ابو بكر صديق ﷺ او نبي ﷺ دواړه په غارِ ثور كښې درې (۳) ورځې او درې (۳) شپې حصار وو، عامر بن فهيرة ﷺ دَ ابو بكر ﷺ غلام وو، هغهٔ به دَ ابو بكر صديق ﷺ ګډې بيزې څرولې، نو هغهٔ به مازيګر كښې ګډې بيزې دېخوا راوستې په دې خيال باندې چې زهٔ ئې څروم، دوي له به ئې دَ هغې نه پئ اولوشل او پئ به ئې وركړل. او دَ ابو بكر ﷺ ځوي وو، هغهٔ به دَ شپې دوي خوا ته راتلو او دَ شپې په آخر حصه كښې به اووتو او دَ

(1) [سورة الأحزاب: 21].

بانګونو په وخت کښې به په مکه کښې ناست وو، دَ مکې دَ خلقو حالات به ئې دوي له راوړل.

درې (۳) ورځې او درې (۳) شپې چې تيرې شوې نو دَ هغې نه بعد نبي ﷺ ابو بکر ؓ ته اووئيل: اوس دَ دې غار نه اوځو، دَ خلقو هغه ډير زور کيښناستو.

## نبي ﷺ ته دَ يَو کافر دَ مدينې لار ښودل

نو يَو کس دے "عبد الله بن اريقط"، دَ هغهٔ سره ئې خبره اوکړه. دے کافر وو خو ډير امانت دار سړے وو، دهوکه مار نهٔ وو، او دهٔ ته ئې وئيلي وو: چې يَو خو هغه مشهوره لار ده نو دا خو مونږ ته هم معلومه ده، پهٔ داسې لار به مونږه بوځې چې هغې باندې داسې ډير څوک نهٔ وي؛ چې دَ دې کافرو نه بچ شو. دهٔ ته لارې معلومې وې، نو دے راغے، دوه اوښان شول: يَو دَ نبي ﷺ او دَ ابو بکر ؓ او يَو ورسره دے هم ملګرے شو نو دَ دهٔ اوښ شو. دوي پهٔ دوؤ اوښانو باندې روان شو او کومه چې مشهوره لار نهٔ وه نو پهٔ هغې لار روان شول. پهٔ يَو اوښه باندې نبي ﷺ سوړ شو او پهٔ بله اوښه باندې ابو بکر صديق ؓ او دَ هغهٔ آزاد شده غلام (عامر بن فهيره ؓ)، دَ خدمت دپاره ئې دا ځان سره روان کړو او روستو ئې ورپسې عبد الله بن اريقط هم کيښنولو؛ ځکه دهٔ ته لار معلومه وه چې دے به را ته لاره ښائي. او بعضې علماء وائي: چې پهٔ يَو اوښه باندې نبي ﷺ او روستو ورپسې ابو بکر صديق ؓ کيښيناستو، او پهٔ دې دويمه اوښه باندې عبد الله بن ابي بکر (دَ ابو بکر ؓ ځوي)، عامر بن فهيره ؓ او هغه بل کس (عبد الله بن اريقط) کيښناستل. روان شول. يا دريمه اوښه ورسره هم وه او پهٔ هغې باندې عبد الله بن اريقط (دا کافر) کيښناستو.

## پهٔ لاره کښې نا آشنا نا آشنا حالات راتلل

دوي چې روان شول نو پهٔ دې لاره کښې نا آشنا نا آشنا حالات راغلل، چې نن زهٔ ستاسو مخکښې دَ هغې تذکره کوم:

کله چې دوي پهٔ دې لاره باندې تلل نو پهٔ دغې وخت کښې ابو بکر صديق ؓ ځان له ئې پيسې جمع کړې وې او پهٔ هغې باندې به ابو بکر صديق ؓ غلامان اغستل او آزادول به ئې؛ دَ

دې دپاره چې زما ثواب کيږي. چاليس هزار (۴۰۰۰۰) درهم هغه زمانه کښې أبو بکر صديق ﷺ دَ غلامانو پۀ اغستلو او خرڅولو لګولي وو. پۀ هغې کښې پنځۀ زره (۵۰۰۰) درهمه پاتې وو، نور پينتيس (۳۵۰۰۰) هزار درهم ئې لګولي وو. نو ابو بکر صديق ﷺ دا پنځۀ زره (۵۰۰۰) درهم را واغستل او وائي: پۀ دې باندې به ما او نبي ﷺ پۀ لاره کښې خرچه کوؤ. عجيبه صحابه ﷺ وو هغوي ته دَ دې نه سيوا ګټه نۀ ښکاريده. نو هغه خپلې پيسې ابو بکر صديق ﷺ راغستې دي او پۀ لاره کښې هغه پۀ نبي ﷺ باندې خرچ کوي.

**يَو نا آشنا حالت، واقعه دَ ام معبد ﷺ**

بهر حال چې دوي را روان شول نو پۀ لاره کښې يَو خيمه مخې له راغله چې دَ هغې خيمې پۀ خوا تيريدل نو دا خيمه دَ يَوې زنانه وه، خاوند ئې پۀ دې موقع چرته څاروي بوتلي وو، هغه نۀ وو. ام معبد ﷺ (چې روستو ورته بيا الله ايمان هم نصيب کړے دے)، دا دَ هغې خيمه وه. پخواني خلق به داسې وو چې چرته پۀ شاړو کښې به ئې تامبو اوتړلو او څاروي به ئې څرول. دَ دې ام معبد ﷺ دَ خيمې پۀ خوا چې نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ تيريدل نو دا ډيره شريفه او مهمان نوازه زنانه وه، مشهوره وه نو دغه ځائے ته چې اورسيدل نو نبي ﷺ دې ملګرو ته اووئيل: چې لږ حصار شئ کۀ دلته څۀ شے ميلاويږي چې ځان له ئې را واخلو، هغې ته ئې اووئيل: چې څۀ غوښه به ميلاؤ شي او کۀ نۀ؟ پۀ پيسو به ئې ترې اغسته، وائي: نشته دے. وائي: کجورې به ميلاؤ شي؟ وائي: کجورې هم نشته، هيڅ شے نشته دے.

نو دې خوا چې نبي ﷺ اوکتل نو دَ دې خيمې پۀ ګټ کښې يَو چيلۍ ولاړه وه، نبي ﷺ ورته وائي: دا ولې ولاړه ده؟ وائي: خاوند مې نور څاروي څرولو له بوتلي دي خو دا بيماره شوې وه، انتهائي ټپه ده، نو تلے نۀ شي نو دا دَ مجبورۍ نه پۀ دې کور کښې ولاړه ده. نو نبي ﷺ ورته وائي: دا پيۍ نۀ کوي؟ هغه زنانه ورته وائي: مړه کيږي او تۀ وائې: چې پيۍ نۀ کوي!!!، هغه بالکل ختمه ده، اوچه چيلۍ ده. نبي ﷺ ورته وائي: دَ دې نه مونږ له لږ پيۍ نۀ را کوې؟ نو هغه زنانه حيرانه شوه چې دې

کښې پرۀ چرته دي، دا خو اوچه ده، ګټ پرۀ پکښې نشته دے. نبي ﷺ ورته وائي: کۀ مونږ ترې څان له پرۀ اولوشو نو ستا به اجازت وي؟ نو هغه زنانه نوره حيرانه شوه وائي: زۀ درته وايم: چې پرۀ پکښې نشته دے او تۀ وائي: چې مونږ ترې څان له پرۀ لوَشو!، نو څه! اولوشه ترې نه کنه. شته پکښې نۀ نو تۀ به ئې ترې څۀ اولوَشې؟ نبي ﷺ اووئيل: چې صرف تۀ اجازت اوکړه نوره تۀ بے غمه شه؟ حديث پاک کښې راځي: چې نبي ﷺ راغے خو چې څنګه ئې دَ هغې غُلانزې ته لاس نزدې کړو، وائي: بسمِ اللهِ الرحمٰنِ الرحيم، نو دَ هغه چيلۍ غُلانزه يک دم دَ پيو نه ډکه شوه. نبي ﷺ اووئيل: ورشۍ! لوښے راوړۍ!. او چې لوښے ئې راوړو نو دومره لوښے چې تقريبًا پۀ هغې باندې پۀ يَو ځل اتۀ (۸) يا لس (۱۰) کسان مړيدل. داسې يَو لوښے ئې ورله راوړو او نبي ﷺ ورته کيښناستو او پرۀ ترې لَشي، لوښے ئې ډک کړو. او چې لوښے ئې کله ډک کړو نو نبي ﷺ ام معبد ﷺ ته وائي: چې تا خو به هم څۀ نۀ وي خوړلي؟ شابه! دَ دې نه پرۀ اوڅکه، نو هغې زنانه باندې ئې اول اوڅکل بيا نبي ﷺ سره چې کوم ملګري وو ابو بکر ﷺ او دَ هغۀ څوي او غلام دَ هغۀ او هغه کافر پۀ دې ټولو ئې اوڅکل. دَ الله نبي ﷺ پۀ خپله هم اوڅکل ښۀ موړ شو. وائي: ورشه! او بل لوښے راوړه، نو دَ هغې نه ئې ورله غټ يَو بل لوښے راوړو، نبي ﷺ ورته بيا کيښناستو او بيا ئې ترې پرۀ لوَشَلْ، هغه لوښے ترې هم ډک شو. چې ډک شو نبي ﷺ ورته وائي: چې مونږ درنه ځو او دا لوښے سمبال کړه دا ستاسو پرۀ شول.

هغه زنانه چې اوکتل چې داسې انسان خو ما چرته پۀ دنيا کښې نۀ وو ليدلے، وائي: يا رسول الله! زۀ هم درسره بيعت کوم، زۀ هم پۀ تا ايمان راوړم. هغه هم مسلمانه شوه. خاوند ئې ګډې، بيزې ځرولو ته بوتلې وې، چې کله ئې خاوند راغے نو اوئې کتل (ګډې بيزې خو دَ هغۀ سره وې، پۀ کور کښې خو دَ پيو ګډه، بيزه نۀ وه) نو لوښے دَ پيو نه ډک دے. هغه خاوند دې زنانه ته وائي: چې دا پرۀ درله چا درکړي دي؟ دا دومره پرۀ دَ کوم ځائے نه راغلل؟ پۀ کور کښې خو دَ پيو ګډه، بيزه هم پاتې نۀ وه، چې تا به دَ هغې نه لوَشلے وے؟ نو امِّ معبد ﷺ ورته وائي: چې سړيه! څۀ نا آشنا قصه شوې ده، نن پۀ دې لاره داسې يَو مبارَک انسان تيريدو، زما دې پۀ الله قسم وي! کۀ چرته هم زما سترګو

داسې انسان ليدلے وي، هغهٔ چې دَ دې چيلۍ غُلانزې ته ګوتې کړې نو دَ دې غُلانز ډکه شوه. ابو معبد ته ښځې دا ټوله قصه اوکړه.

**دَ ابو معبد ﷺ ايمان راوړل**

دَ ابو معبد ﷺ پهٔ زړهٔ کښې هم يَو مينه او محبت پيدا شو. وائي: ګډې او بيزې تهٔ سمبالَوه او زهٔ دغه دے چې لا رم، دَ دې سړي ملاقات ته زهٔ هم ځم. دے روان شو (الله اکبر!)، خو دے ښځې ته وائي: چې ما ته ئې داسې نخښنه او پته اوښايه چې زهٔ به چا چا پسې ګرځم او څوک به کورم. دا زنانه ورته دَ نبي ﷺ هغه حليه بيانَوي: چې داسې يَو خائسته انسان وو، نهٔ ډير دنګ وو او نهٔ ډير مندرے وو، نهٔ ډير خرب وو، نهٔ ډير نرے وو، سترګې ئې داسې وې... او ګيره ئې داسې وه، لباس ئې داسې وو، دَ نبي ﷺ دا هيئت ئې چې ورته څنګه بيان کړو نو ابو معبد ﷺ خپلې بي بي ته وائي: ښځې! دا خو جوړې دَ قريشو هغه نوجوان دے چې دے ځان ته پيغمبر وائي، را روان شو او چې راغے نو دَ نبي ﷺ خوا ته راغے او دهٔ هم پهٔ نبي ﷺ باندې ايمان راوړو، دے هم بيا مسلمان شوے دے. او شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي ؒ هغه اشعار را نقل کړي دي، چې دے پهٔ دې لاره تلو نو دهٔ به غيبي اشعار اوريدل او انسان دَ شعرونو وئيلو والا به چرته پهٔ نظر نهٔ راتلو، دَ هغې نه هم پهٔ دهٔ پوره اثر شوے وو. پهٔ هغې کښې ډير اشعار دي خو يَو څو شعرونه پکښې دا دي:

جَزَى اللهُ رَبُّ النَّاسِ خَيْرَ جَزَائِهِ ۔۔۔ رَفِيقَيْنِ حَلاَّ خَيْمَتَيْ أُمِّ مَعْبَدِ

"هغه الله چې دَ ټولو خلقو مالک دے هغه دې دَ خير بدله ورکړي (بهترينه بدله دې ورکړي) هغه دوؤ دوستانو ته (هغه دوؤ ملګرو ته) چې دَ امِّ معبد پهٔ خيمه کښې ميلمانهٔ وو او دغه خيمې ته ورغلي وو".

هُمَا نَزَلاَهَا بِالْهُدَى فَاهْتَدَتْ بِهِ ۔۔۔ فَقَدْ فَازَ مَنْ أَمْسَى رَفِيقَ مُحَمَّدِ

"دي دواړو ملګرو (ابو بکر ﷺ او دَ الله پيغمبر ﷺ) دَ امِّ معبد خيمې ته ځان سره هدايت يوړو (رنړا ئې يوړه)، نو امِّ معبد هدايت دَ دوي نه قبول کړو، هغه ئې حاصل کړو نو ايمان ئې

راورو)، پهٔ تحقیق سره کامیاب دے هغه څوک چې هغهٔ دَ رسول الله ﷺ سره ملګرے شوے دے"، څوک چې دَ دې پیغمبر ﷺ ملګرے شي نو هغه کامیاب شي.

لِيَهْنَ أَبَا بَكْرٍ سَعَادَةَ جَدِّهِ بِصُحْبَتِهِ مَنْ يُسْعِدِ اللهُ يَسْعَدِ[1]

"مبارک دې شي دَ ابو بکر دپاره دَ هغهٔ دَ کوشش او دَ هغهٔ دَ محنت دې نیک بختي؛ ځکه چې دے دَ هغه چا ملګرے دے چې څوک الله نیک بخته کوي نو دَ دهٔ ملګرے ئې کړي او نیک بخته ئې کړي". او داسې شروع ئې اوکړه، شعرونه ئې وئیل.

دهٔ چې دا شعرونه واوریدل نو دَ دهٔ پهٔ زړهٔ کښې نوره مینه هم پیدا شوه، او نور ئې محبت سبوا شو نو دے هم راغے او پهٔ نبي ﷺ ئې ایمان راورو.

نو ابو معبد هم مسلمان شو. نو هجرت کښې دا یَو نا آشنا واقعه مخې ته راغله.

**دویم نا آشنا حالت: واقعه دَ سراقه بن مالک بن جعشم**

بله نا آشنا قصه داسې اوشوه، کله چې نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ هجرت کوي، نو کافرانو خو دوي اونهٔ موندل، چې دوي پهٔ کوم طرف لاړل؟ نو کافرانو اعلان اوکړو، کیر چاپیره ئې اشتهارات خوارهٔ کړل: چې انعام مقرر دے هغه چا لره چې چا یا دَ الله پیغمبر ﷺ ژوندے راوستو او یا ئې شهید کړو، یا ئې ابو بکر ﷺ ژوندے راوستو او یا ئې شهید کړو هغوي ته به سل (۱۰۰) اوښان میلاویږي. شابئ! ځان اورَسوئ، چې چا چرته اوموندل نو انعام به درله نقد میلاویږي. چې دَ چا پهٔ زړهٔ کښې لالچ وو نو هر یَو به وئیل: چې زهٔ مخکښې اورسیدے.

دې کښې یَو کس دے "سراقه بن مالک بن جعشم"، دا سراقه بن مالک بن جعشم دا دَ عربو یَو لوئي پهلوان وو، ډیر جنجګو او بهادر انسان حسابیدو او مشهور بد معاش وو. سراقه بن مالک بن جعشم ته چا اووئیل: چې تا ته پته ده؟ داسې یَو اعلان شوے دے، چې نبي (ﷺ) او ابو بکر (ﷺ) مدینې ته هجرت کوي نو کهٔ چرته چا اولیدل مړهٔ ئې کړل او یا ئې ژوندي اونیول نو سل (۱۰۰) اوښان به انعام کښې میلاویږي. سراقه زړهٔ کښې اووئیل: دا اوس موقع ده، دا انعام اغستل غواړي.

---

(1) انظر: "سیرة المصطفی"، طبع: مکتبة عمر فاروق مخرّجا: (1/302 - 304).

چا ورته اووئيل: يره! دَ دې سمندر په غاره څۀ کسان روان وو، جوړې دغه دي؟ سراقه وائي: چې ما زړۀ کښې اووئيل: کۀ زۀ او وايم: چې دا دي نو هسې نۀ چې بل څوک را نه مخکښې شي، او دا انعام را نه هغه اوګټي نو وائي: هغوي ته مې اووئيل: چې هغه بل څوک دي، هغه ما ليدلي دي، هغه نۀ دي؛ دَ دې دپاره مې ورته دا اووئيل: چې دَ دوي نه دي خطاء کړم او دا انعام زۀ اوګټم.

وائي: دَ دوي نه لږ غوندې ساعت پس غلے غوندې پاسيدم چې کور ته څم. وائي: وينزې ته مې سوال جواب اوکړو: چې شابه! اس باندې زين واچوه او اس باندې سامان برابر کړه او دَ هغه فلانکئ ډيرئ ويخ ته ئې راوله، فناه ځائے وو، چې دې خلقو زۀ ليدم نۀ، هغې ته ئې راوله او زۀ کور ته غلے غوندې لا ړم، توره مې را واخسته او غشي مې را واغستل او واپس راغلم. وينزې ما له هغه اس هغه ځائے ته رارسولے وو. او يک يَواځې زۀ په خپل اس باندې سور شوم. اوس چرته دَ اوښانو او چرته دَ اس دَ دې چرته کيږي، هغوي په اوښانو روان دي او دے وريسې په اس روان شو. وائي: چې دَ سمندر په غاره باندې لا ړم نو مخکښې کورم نبي ﷺ دے او ابو بکر رضي الله عنه دے او دا نور کسان (دا غلام او خادم ئې او بل کافر کوم چې ورته لا ره ښائي) ورسره دي. ابو بکر رضي الله عنه چې شاه طرف ته اوکتل نو ابو بکر رضي الله عنه نبي ﷺ ته وائي: چې يا رسول الله! هغه دے سراقه بن مالک را روان دے، توره په لاس دے، غشي ورسره دي، اوس به څۀ کوؤ؟ مونږ خو ټش تور يُو، څۀ را سره شته هم نۀ. وائي: نبي ﷺ ابو بکر رضي الله عنه ته اووئيل: چې پروا مۀ کوه:

﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا﴾.[1]

اے ابو بکر! مۀ خفه کيږه! "مۀ غمژن کيږه! يقينًا الله تعالٰى زمونږ ملګرے دے"، الله به زمونږ امداد کوي. دَ سره ورته ګوره مۀ.

وائي: په دې کښې نبي ﷺ خيرې اوکړې، دوه (٢) قسمه الفاظ په احاديثو کښې راځي: يَو قسم الفاظ راځي: چې:

«اللّٰهُمَّ اصْرِعْهُ».[1]

---

(1) [سورة التوبة: 40].

"یا الله! دَ دې اس نه ئې را اوغورځوه".

او یَو روایت کښې راځي: نبي ﷺ دعاء اوکړه:

«اللهُمَّ اکْفِنَا بِمَا شِئْتَ».[2]

"الله زمونږ دپاره ته کافي شي څنګه چې ستا خوښه وي، په څهٔ شي چې ستا خوښه وي"، دَ دې ظالم نه مونږه خلاص کړه.

ابو بکر صدیق ﷺ وائي او سراقه پهٔ خپله هم وائي: چې کله زهٔ ور نزدې شوم نو پهٔ کلکه زمکه کښې زما اس دَ خپو نه ډوب شو، بس زمکې زما دا اس اونیولو تر سینې پورې اس خخ شو، زوررونه کوي او اس راختلے نهٔ شي، نو وائي: زهٔ پوهه شوم چې دا نور څهٔ نهٔ دي، دا پیغمبر ﷺ خیرې کړې دي، او دا دَ هغې اثر دے. خو وائي: یک دم زما پهٔ زړهٔ کښې راغلل چې دَ دې سړي مقابله کیدے نهٔ شي، او یَو وخت به داسې راځي: چې دے به الله تعالیٰ پهٔ دې ټولو عربو باندې زورَور کوي، داسې یَو زمانه به راځي. وائي: ما ورته اووئیل: چې ستاسو دې پهٔ الله قسم وي چې ستاسو خیرو زما دا اس دلته حصار کړے دے، زما دې پهٔ خپل الله قسم وي چې زهٔ تاسو سره وعده کوم چې زهٔ به بالکل تاسو له تکلیف نهٔ رسوم او تکلیف څهٔ چې زهٔ به مو بچ کوم؛ څکه چې نور خلق ما پسې را روان دي، زهٔ به ورته وایم: چې پهٔ دې لاره باندې زهٔ تلے یم، او ما څوک لیدلي نهٔ دي، خو اوس دَ الله تعالیٰ نه سؤال اوکړئ چې زما اَسْ الله خلاص کړي او ما الله پهٔ خیر واپس کړي؛ څکه چې دا شے خو ما پهٔ اول ځل اولیدو. وائي: پهٔ دې کښې نبي ﷺ دعاء اوکړه، او چې څنګه ئې دعاء اوکړه نو دَ اس خپې را کولاؤ شوې. نو چې را کولاوې شوې نو سراقه پوهه شو چې دا کمال خو پهٔ دې سړي کښې دے چې وختي مې اس انختے وو او چې دهٔ دعاء اوکړه نو را خلاص شو. نو پوهه شو چې دا اوچت انسان دے. نو نبي ﷺ ته وائي: چې زهٔ یَو درخواست کوم کهٔ دا دې را ته منظور کړو دا به ډیره ښهٔ وي؟ وائي: څهٔ؟ سراقه وائي: زما یقین راغے چې هٔ ے به یَو ځل الله پهٔ دې دنیا غالب کوي

(1) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3911).

(2) انظر: "دلائل النبوة" للبيهقي، برقم: (483/2).

او دا تړوله دنیا به دَ دهٔ دَ حکومت دَ لاندې راځي، دَ دهٔ سره څوک مقابله شي کولے چې الله دَ دهٔ داسې غیبي امدادونه کوي؟ وائي: ما ورته اووئیل: چې زما دپاره به یَو خط لیکې چې ما له به امان راکوې، ما ته معافي کوې، کهٔ ستا ملګري زورَور شي چې ما بیا نهٔ وژني؟ نو نبي ﷺ اووئیل: چې هلکه! دا ورله اولیکئ!. د ابو بکر ؓ غلام چې وو عامر بن فهیره ؓ، چې خدمت دپاره ورسره تلے وو، دے کاتب هم وو. هغه زمانه وه چې نهٔ کاغذونه وو، او نهٔ دومره اسباب وو نو وائي: عامره! شابه! دهٔ له څهٔ امان اولیکه!، دَ دهٔ دپاره دَ امن خط اولیکه. نو دَ دهٔ دپاره ئې دَ امن یَو خط اولیکو، او خط ئې پهٔ څهٔ اولیکو؟ نو دَ څرمنې یَو ټکړه ئې را کټ کړه او پهٔ هغې باندې ئې اولیکلو: چې دا دَ دهٔ دپاره امان دے دهٔ ته به څوک څهٔ نهٔ وائي.

**ابو جهل ته دَ سراقه خپله واقعه بیا نول**

یَو ځل ابو جهل ته سراقه هغه خپله قصه پهٔ شعر کښې کوي، وائي:

أَبَا حَكَمٍ وَاللهِ لَوْ كُنْتَ شَاهِدًا لِأَمْرِ جَوَادِي إِذْ تَسِيخُ قَوَائِمُهُ

عَجِبْتَ وَلَمْ تَشْكُكْ بِأَنَّ مُحَمَّدًا نَبِيٌّ وَبُرْهَانٌ فَمَنْ ذَا يُقَاوِمُهُ[1]

"اے ابو حکمه! قسم پهٔ الله! کهٔ چرته تهٔ حاضر وے هغه موقعې ته کله چې زما کره اسْ دَ خلورو وارو خپو نه انختے وو، نو تهٔ به حیرانه شوے وې او تا به شک نهٔ وو کړے چې یقینًا محمد (ﷺ) پیغمبر دے او واضحه دلیل دے نو څوک به دَ دهٔ مقابله اوکړي؟".

ابو حکم دا دَ ابو جهل کُنیه وه، وائي: اے ابو جهله! زما دې پهٔ الله قسم وي! کهٔ چرته هغه موقع کښې تهٔ حاضر وې کله چې زما هغه کره آسْ چې دَ هغې نه چرته اسونو دوړ کتلے نهٔ وو، چرته هغه پساؤ شوے نهٔ وو او هغه دَ خلورو وارو خپو نه اونختو او دَ ځائے نه خوزیدے نهٔ شو، ابو جهله! کهٔ تا دا منظر لیدلے وے نو تا به پهٔ دې یقین کړے وے، ستا زړهٔ کښې به شک هم نهٔ وو پاتې شوے، پهٔ دې خبره به ستا یقین راغلے وے چې محمد (ﷺ) دَ الله نبي (ﷺ) دے، او پوره واضحه دلیل سره نبي دے او هیڅ څوک دَ دهٔ مقابله کولے نهٔ شي؛ ځکه چې نهٔ ئې زما اسْ ته

(1) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني، برقم: (237)، و"دلائل النبوة" للبيهقي: (489/2).

لاس ورړے دے او نۀ ئې پرې ګزار کړے دے او اَس اخته دے نو ابو جهله! تا به ښۀ یقین سره دا خبره منلے وے چې دَ دې نبي (ﷺ) سره مقابله ګرانه ده، خو تۀ خو هغه ځائے کښې نۀ وې.

**دَ نبي ﷺ دَ معجزې تشبیه دَ موسی علیه السلام دَ معجزې سره**

محدِّثین وائي: دَ نبي ﷺ دا معجزه دَ موسٰی علیه السلام دَ معجزې سره مشابه وه؛ دَ موسٰی علیه السلام پۀ زمانه کښې قارون ډیر مالداره وو، پۀ خپل مال به ډیر نازیدو او پۀ خپل ځائست او پۀ خپل طاقت به ډیر نازیدو، دَ موسٰی علیه السلام سره به ئې مقابلې کولې، وئیل به ئې: مره! دے ځان ته پیغمبر وائي او دَ ډوډۍ درک ئې نۀ لګي، خپل کور ئې نشته او دا ئې نشته او زۀ ډیر اوچت سړے یم. نو موسٰی علیه السلام خیرې اوکړې نو الله رب العزة فرمائي:

﴿فَخَسَفْنَا بِهِ وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ﴾.[1]

"مونږه قارون او دَ قارون کور پۀ زمکه کښې خکته اومونډل".

نو قارون تباه او برباد شو، سره دَ مال او دَ خزانو نه غرق شو. نو دَ موسٰی علیه السلام معجزه دا وه: چې دَ هغۀ دَ وجې نه الله رب العزة قارون او دَ هغۀ کور پۀ زمکه منډلے وو، نو دَ رسول الله ﷺ معجزه دا شوه: چې دَ سراقه اَس الله پۀ زمکه کښې خخ کړو، خو پۀ دعاء دَ رسول الله ﷺ بیا را خلاص شو.

**دَ سراقه نورو خلقو لره واپس کول**

سراقه واپس شو، وعده خو ئې کړې وه کنه، نو پۀ لاره کښې به چې ورته څوک هم مخې ته له راغے نو دۀ به ورته وئیل: څۀ کوې؟ وائي: یره! کۀ چرته پۀ قسمت کښې مې دا انعام وي، کۀ دا مې اوکټلو نو ځم کۀ چرته دا پیغمبر (ﷺ) مې اولیدو!. نو سراقه به ورته اووئیل: چې دا علاقه خو ما ټوله اوکتله، دا دے واپس را روان یم، پۀ دې لاره نشته دے. نو هغه به ئې هم واپس کړو. بل به مخې له راغے وائي: ځم کۀ چرته دا انعام ما اوګټلو!، دا پیغمبر شهید کوم، نو هغۀ به ورته اووئیل: چې ظالمه! دا دے اَس مې پۀ منډو منډو ستړے کړو ما خو چرته اونۀ لیدو، راځه! هسې ځان مۀ ستړے کوه، پۀ بله لار تلے دے، پۀ دې لار نشته دے. نو نور کسان الله رب العزة

(1) [سورة القصص: 81].

دَ سراقه پهٔ وجه واپس کړل.

**دریم نا آشنا حالت: دَ بریدة الأسلمي ﷺ واقعه**

نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ ملګري روان شول، بیا روان دي، پهٔ لاره کښې چې مخکښې لاړل نو بریدةُ الْأَسْلمي ﷺ ورله مخې ته را اورسیدو. بُریدة الاسلمي دا بل صحابي دے، دې ټولو ته بیا الله رب العزة ایمان نصیب کړے دے. دے هم دَ دې اعلان نه خبر شوے وو: چې سل اوښان میلاوېږي چې چا دے شهید کړو او یا ئې ژوندے اونیولو. نو دهٔ دَ ځان سره نور کسان هم ملګري کړل، اویا (۷۰) کسان ئې ځان سره واغستل، وائي: راځئ! مونږه اویا (۷۰) کسان یُو، دے به زمونږ نه پهٔ کومه لار باندې ځي؟ دَ اویاؤ (۷۰) کسانو ډله ئې تیاره کړه او روان شو چې نبي (ﷺ) او ابو بکر (ﷺ) کهٔ چرته مخې له راغلل نو موقع ده انعام به حاصل کړو، چې کله دوي دَ الله دَ پیغمبر او دَ ابو بکر صدیق ﷺ پهٔ تالاش کښې روان شول نو دوي هم دَ نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ خوا ته اورسیدل. چې کله بُریده وړنزدې شو نو نبي ﷺ ورته آواز کوي:

"مَنْ أَنْتَ؟"

"هلکه تهٔ څوک ئې؟".

نو دے ورته جواب کښې وائي:

"أَنَا بُرَيْدَةُ". "زهٔ بُریده یم".

نو چې کله ئې دا تپوس اوکړو نو ابو بکر صدیق ﷺ وائي: نبي ﷺ ما ته اوکتل او ما ته ئې اووئیل:

"يَا أَبَا بَكْرٍ! بَرُدَ أَمْرُنَا وَصَلُحَ".

"پروا مهٔ کوه! زمونږ کار چې دے هغه یخ شو او برابر شو".

دا نبي ﷺ دَ دې نوم نه دا یَو اثر معلوم کړو، چې دَ بریده معنٰی "يَخْ" ده، دَ "بَرَدَ" نه ماخوذ دے، یَخْ کوتے. معنٰی: زمونږ کار یخ شو، زمونږ کار هغه خائسته شو او برابر شو. بیا ورته نبي ﷺ وائي: تهٔ دَ کومې قبیلې نه ئې؟

نو دے ورته وائي: "مِنْ أَسْلَمَ". "زهٔ دَ اسْلَم قبیلې نه یم".

دَ الله پیغمبر ﷺ بیا ابو بکر ﷺ ته اوکتل او ابو بکر ﷺ ته تفاؤلًا وائي:

"سَلِمْنَا".

"اے ابو بکره! بس مونږ دَ دوي دَ شرّ نه محفوظ شو"، پروا مهٔ کوه! مونږه الله ساتي. بیا ورته دَ الله نبي ﷺ وائي: چې اسلم خاندان کښې دَ کوم خاندان نه ئې؟ نو هغه ورته وائي:

"مِنْ بَنِي سَهْمٍ"

"زهٔ دَ بني سهم قبیلې یم".

نبي ﷺ بریده ته وائي:

"خَرَجَ سَهْمُكَ".

"بریده! بس ستا دَ ایمان غشے راوتلے دے"، تا ته به الله ایمان نصیب کوي.

بس چې څنګه ئې ورته دا اوویل نو دا بریده پیغمبر ﷺ ته وائي:

"فَمَنْ أَنْتَ؟". "تهٔ څوک ئې؟".

نبي ﷺ ورته وائي:

"أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ رَسُولُ اللهِ".

"زهٔ محمد یم، دَ عبد الله ځوي یم او دَ الله رسول یم".

نو بریده ورته وائي: خا! تهٔ دَ الله رسول ئې؟ نو هغهٔ ورته وائي: آو! زهٔ پیغمبر یم. دے ورته وائي: چې تهٔ رسول الله ئې نو زما اعلان واوره:

"أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَأَنَّكَ عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ".[1]

چغه ئې کړه او کلمه ئې اوویله. راغلے دوي پسې دے چې انعام ګټم او دَ الله پیغمبر (ﷺ) وژنم، دهٔ هم دَ ایمان شهادت ورکړو. او هغه اویا (۷۰) ملګري چې کوم ورسره دي هغوي چې اوکتل چې دې مشر ئې ایمان راوړو نو هغوي هم چغې کړې چې: "أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ". پهٔ یَو ځائے باندې اویا (۷۰) کسانو ته الله رب العزة پهٔ دغه ځائے کښې

[1] انظر: "أخلاق النبي ﷺ" لابي الشيخ الأصبهاني: (65/4)، برقم: (788).

ایمان نصیب کړو. ټلې دَ الله دَ پیغمبر (ﷺ) وژلو پسې او هغوي هم مسلمانان شول او هغوي هم دَ الله په نبي ﷺ باندې ایمان راوړو.

## دَ نبي ﷺ ابوبکر ﷺ ته وینا

دَ دې نه پس نبي ﷺ ابو بکر ﷺ ته اوونيل: چې ابو بکر! دَ دې نه پس پروا مۀ کوه، دَ کافرانو نه را خلاص شو، دَ هغوي چې څومره زور وو، دغې ځائے پورې ئې منډې اووهلې چې کوم مونږ ته راورسیدل، هغوي ته الله ایمان نصیب کړو او نور نۀ شي را رسیدے. دلته دَ مکې والا انعامونه مقرر کړي دي، چې څوک به ئې وژني او څوک به ئې ژوندي راولي چې سل سل اوښان ورله ورکړو. دَ مدینې والا په دې انتظار دي چې څوک به مونږ له دَ رسول الله ﷺ دَ راتلو زیرے راوړي چې مونږ ورله انعام ورکړو (اللهُ أکبر کبیراً!).

## دَ مدینې دَ خلقو سحر وختي دَ کور نه راوتل

ان شاء الله را روانه جُمعه کښې به زۀ تاسو ته اووایم: دَ مدینې خلق هغوي به سحر وختي چونکه خبر لګیدلے وو، ټیلیفون په هغه زمانه کښې نۀ وو، داسې نور څۀ مراسل هم نۀ وو، په تلو تلو به وخت لګیدو. نو خبر رسیدلے وو چې رسول الله ﷺ را روان شوے دے نو دَ مدینې خلق به سحر وختي راغلل، دَ کورونو نه به را اووتل، یو اوچت ځائے کښې یو ډیرۍ وه او په هغې ډیرۍ باندې به ولاړ وو، غرمه به شوه، نمر به را ګرم شو، په دې انتظار به وو چې کوم بختور به اول دَ الله نبي ﷺ او ابو بکر ﷺ اووینې!!!. چې رانزدې شوې خو به نۀ وي نو چې نۀ به وو نو بیا به لاړل خپلو کورونو ته. او کله چې به صبا شو نو بیا به سحر وختي راغلل او په دې انتظار به ولاړ وو، تږوله ورځ به تیره شوه چې بیا به را اونۀ رسیدل نو بیا به واپس لاړل. په دغه ځائے کښې حرّه یو مقام دے، دَ دغې حرّې پورې به هغوي راتلل، دا یو اوچت ځائے دے دَ دې نه به دَ لرې پورې اندازه لګیده. نو هغې حرّې کښې به هغوي ولاړ وو.

یوه ورځ داسې اوشوه چې دوي راغلي دي او په دې انتظار دي چې کۀ رسول الله ﷺ راشي نو څومره به ښۀ وي!، نو دَ دوي یقین ختم شو چې نن هم رانغلو، دوي واپس لاړل او چې څنګه واپس

لا رل نو لرۍ وخت تیر شو نو یهودي هلته کښې وو، چغه ئې کړه، چې کله ئې اوکتل چې نبي ﷺ دے او ورسره ملګري دي او دَ لرې نه داسې پرقیرېږي، چغه ئې کړه:

"يَا بَنِي قَيْلَةَ، هَذَا جَدُّكُمْ".[1]

"اے بني قیلوا (دا "قیله" دَ مدینې والؤ یَوه پخوانۍ نیا (دادي) تیره شوې شوه نو دَ انصارو دا نسل دَ هغې نه خوَر شوے وو)، اے دَ قیله ابئ ځامنو! ستاسو هغه نصیب، ستاسو هغه ارمان او ستاسو هغه کوشش او تاسو چې به دَ چا پۀ انتظار کښې توله ورځ ولاړ وئ هغه دے راغے".

چې خنکه دا آواز کیدل وو نو دَ مدینې انصارو صحابؤ ﷺ بے اختیاره منډې وهلې دَ رسول الله ﷺ دَ ملاقات دپاره. ان شاء اللّهُ تعالٰی دَ هغې تذکره به بیا کوؤ، او بیا رسول الله ﷺ دَ چا ځائے ته لاړو؟ او مدینه کښې بیا څنګه پاتې کیدو؟ دَ هغې ذکر به بله جُمعه کښې راشي.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

(1) اُنظر: "سيرة ابن هشام": (492/1)، و"دلائل النبوة" للبيهقي: (503/2).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه دوه ويشتمه

## "پهٔ مدينه منوّره کښې دَهجري کال ابتداء او نبي ﷺ دَچا پهٔ کور کښې پاتي کيدو؟ "

بتاريخ: 2022-08-05

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه دوه ويشتمه

## "په مدينه منوّره کښې دَ هجري کال ابتداء او نبي ﷺ دَ چا په کور کښې پاتې کيدو؟"

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.(1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرتِ مبارکه شروع وو، تر دې ځائے پورې خبره را رسيدلې وه چې رسول الله ﷺ دَ مکې مکرّمې نه مدينې منوّرې ته دَ هجرت په اراده را روان شو، په تيره جُمعه کښې چې دَ مکې نه را روان شو، دَ غارِ ثور نه مدينې ته راتلو نو په دې لاره کښې چې عجائب او واقعات وو نو دَ هغې تذکره مونږ کړې وه.

### اول دَ نبي ﷺ قُباء ته راتلل

کله چې رسول الله ﷺ مدينې منوّرې ته را اورسيدو نو دَ مدينې نه بهر دَ دريؤ (۳) ميلو په فاصله باندې يَو علاقه ده، يَو آبادے دے چې هغې ته "قُباء" وائي. دغه ځائے دَ مدينې څۀ خلق (انصار) اوسيدل، دَ انصارو څۀ خاندانونه هلته کښې آباد وو. په هغې کښې دَ ټولو نه ممتاز خاندان

(1) [سورة الأحزاب: 21].

چې وو، اوچت خاندان چې وو نو هغه دَ عَمرو بن عوف ﷺ خاندان وو، او دَ هغې خاندان سردار چې وو نو "کلثوم بن هدم ﷺ" وو. نبي ﷺ چې مدينې ته راغے نو اول ئې په قُباء کښې پړاؤ اوکړو، دغه کلثوم بن هدم ﷺ دَ دوي په ځائے کښې رسول الله ﷺ پاتې شو. او ابو بکر صديق ﷺ دَ يَو بل صحابي چې خبيب بن اساف ﷺ نوم ئې دے، دَ هغوي ځائے ته لاړو او دَ هغوي سره ميلمه شو.

او چې کله دَ قُباء خلق او دَ مدينې خلق دَ نبي ﷺ نه خبريدل نو ډلې ډلې خلق به راتلل او دَ رسول الله ﷺ خدمت کښې به حاضريدل او ګير چاپيره ډيره زياته خوشحالي وه. نبي ﷺ چې علي ﷺ پريخودے وو په خپله بستره باندې او نبي ﷺ راوتے وو نو علي ﷺ دَ نبي ﷺ دَ هجرت نه پس درې (۳) ورځې هلته حصار وو، کوم امانتونه چې نبي ﷺ ورته حواله کړي وو هغه ئې ټول خپلو خپلو مالکانو ته اورسول او چې څۀ ذمه وارئ وې نو هغه ئې پوره کړې او بيا علي ﷺ را روان شوے دے. دَ الله پيغمبر ﷺ لا په قُباء کښې وو چې علي ﷺ هم را اورسيدو او دَ کلثوم بن هدم ﷺ په ځائے کښې دَ نبي ﷺ سره ميلاؤ شو.

## په قُباء کښې دَ نبي ﷺ اولنې کار

په قُباء کښې دَ ټولو نه اول کار چې نبي ﷺ کړے وو نو هغه دَ مسجد قُباء تعمير وو، دَ هغې بنياد وو. دَ خپل دَ کور نه مخکښې دَ الله دَ کور سوچ وو. او په هغې کښې دَ ټولو نه اول کاڼړے په خپلو لاسونو نبي ﷺ په قباء کښې لګولے وو، قبلې طرف ته ئې کيخودو او صحابو ﷺ ته ئې اوؤئيل: چې دلته به دَ الله دَ عبادت ځائے جوړوؤ، جومات به جوړوؤ. وروسته ابو بکر صديق ﷺ کاڼړے راوړو او بيا وروسته عمر ﷺ راوړو، دَ دې نه بعد بيا صحابه ﷺ شروع شول، هر يَو صحابي دَ خپلې مينې اظهار کوي او جومات جوړوي. کار شروع شو، نبي ﷺ څو ورځې حصار وو بيا نبي ﷺ دَ هلته نه را روان شو مدينې منوّرې ته. او مدينې منوّرې ته چې راتلو نو په لاره کښې دَ جُمعې دَ مونځ ټائم راغے نو رسول الله ﷺ دَ جُمعې مونځ هغه بيا په لاره کښې کړے دے.

## په قباء کښې دَ مونځ فضيلت

دَ مسجد قباء دومره فضيلت دے چې حديث کښې راځي: رسول الله ﷺ به هره ورځ دَ خالي پهٔ ورځ مسجدِ قباء ته تللو، کله پيادل او کله پهٔ سورلئ، درې (۳) ميله مزل به ئې کولو. نو دَ خالي پهٔ ورځ به لاړو او هلته کښې به ئې دوه رکعته نفل کول. دَ مدينې نه به هلته تلو!!!.

او دَ سهل بن حنيف ﷺ روايت دے چې رسول الله ﷺ فرمائي:

«مَنْ تَطَهَّرَ فِي بَيْتِهِ ثُمَّ أَتَى مَسْجِدَ قُبَاءَ، فَصَلَّى فِيهِ صَلَاةً، كَانَ لَهُ كَأَجْرِ عُمْرَةٍ».(1)

"کوم سړے چې خپل کور کښې اودس اوکړي بيا مسجدِ قباء ته روان شي؛ دَ دې دپاره چې هلته دے دوه رکعته مونځ اوکړي نو دهٔ ته پهٔ دې قباء کښې دَ يَو عمرې هومره ثواب ميلاويږي".

اوس هم چې څوک مدينې ته لاړ شي نو مسجد قباء ته خامخا ځي، او پهٔ هغې کښې دوه رکعته مونځ کولو باندې دَ يَو عمرې هومره ثواب ميلاويږي.

**دَ نبي ﷺ مدينې منوّرې ته روانيدل او پهٔ لاره کښې دَ نبي ﷺ دَ جُمعې اولنئ خطبه وئيل**

دا جومات لا برابر نهٔ وو صحابه کرامو ﷺ ته ئې اووئيل: چې دا جومات به جوړوئ. او نبي ﷺ مدينې منوّرې ته را روان شو، پهٔ اوښه مبارکه سور شو، پهٔ لاره کښې محلّه راځي "بني سالم"، بني سالم ته چې نبي ﷺ را اورسيدو نو دَ جُمعې دَ مانځهٔ ټائم وو، هلته دَ الله رسول ﷺ دَ جُمعې مونځ اوکړو او اولنئ خطبه وه چې رسول الله ﷺ دَ جُمعې پهٔ خطبه کښې صحابه کرامو ﷺ ته وئيلې وه، "المنتظم في تاريخ الملوك والأُمم" دَ هغې خطبې څهٔ الفاظ هم زاوړي دي چې رسول الله ﷺ کومه خطبه وئيلې وه دَ هغې خلاصه دا وه، دَ الله نبي ﷺ وئيلي وو:

«الْحَمْدُ للهِ، أَحْمَدُهُ وَأَسْتَعِينُهُ، وَأَسْتَغْفِرُهُ وَأَسْتَهْدِيهِ وَأُومِنُ بِهِ وَلا أَكْفُرُهُ، وَأُعَادِي مَنْ يَكْفُرُهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ لا إِلَهَ إِلا اللهُ وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أَرْسَلَهُ بِالْهُدَى وَالنُّورِ وَالْمَوْعِظَةِ، عَلَى فَتْرَةٍ مِنَ الرُّسُلِ، وَقِلَّةٍ مِنَ الْعِلْمِ، وَضَلالَةٍ مِنَ النَّاسِ، وَانْقِطَاعٍ عَنِ الزَّمَانِ، وَدُنُوٍّ مِنَ السَّاعَةِ، وَقُرْبٍ مِنَ الأَجَلِ، مَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشَدَ، وَمَنْ يَعْصِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ غَوَى وَفَرَّطَ، وَضَلَّ ضَلالا بَعِيدًا، وَأُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللهِ، فَإِنَّهُ خَيْرُ مَا أَوْصَى بِهِ الْمُسْلِمَ الْمُسْلِمُ أَنْ يَحُضَّهُ عَلَى

(1) أخرجه ابن ماجة في كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها، باب ما جاء في الصلاة في مسجد قباء، برقم: (1412).

الْآخِرَةِ، وَأَنْ يَأْمُرَهُ بِتَقْوَى اللهِ، فَاحْذَرُوا مَا حَذَّرَكُمُ اللهُ مِنْ نَفْسِهِ، وَلا أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ نَصِيحَةٌ وَلا أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ ذِكْرًا، وَإِنَّ تَقْوَى اللهِ لِمَنْ عَمِلَ بِهِ عَلَى وَجَلٍ وَمَخَافَةٍ مِنْ رَبِّهِ، عَوْنُ صِدْقٍ عَلَى مَا تَبْغُونَ مِنْ أَمْرِ الْآخِرَةِ، وَمَنْ يُصْلِحِ الَّذِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ مَنْ أَمْرُهُ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ، لا يَنْوِي بِذَلِكَ إِلا وَجْهَ اللهِ يَكُنْ لَهُ ذِكْرًا فِي عَاجِلِ أَمْرِهِ، وَذُخْرًا فِيمَا بَعْدَ الْمَوْتِ حِينَ يَفْتَقِرُ الْمَرْءُ إِلَى مَا قَدَّمَ، وَمَا كَانَ مِنْ سِوَى ذَلِكَ، يَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا، وَيُحَذِّرُكُمُ اللهُ نَفْسَهُ، وَاللهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ. وَالَّذِي صَدَّقَ قَوْلَهُ، وَأَنْجَزَ وَعْدَهُ، لا خُلْفَ لِذَلِكَ، فَإِنَّهُ يَقُولُ: مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِلْعَبِيدِ ﴿الآيَة﴾ فَاتَّقُوا اللهَ فِي عَاجِلِ أَمْرِكُمْ وَآجِلِهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ، فَإِنَّهُ مَنْ يَتَّقِ اللهَ يُكَفِّرْ عَنْ سَيِّئَاتِهِ، وَيُعَظِّمْ لَهُ أَجْرًا، وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا، وَإِنَّ تَقْوَى اللهِ يُوقِي مَقْتَهُ، وَعُقُوبَتَهُ، وَسَخَطَهُ، وَيُبَيِّضُ الْوُجُوهَ، وَيُرْضِي الرَّبَّ، وَيَرْفَعُ الدَّرَجَةَ.

خُذُوا بِحَظِّكُمْ، وَلا تُفَرِّطُوا فِي جَنْبِ اللهِ، قَدْ عَلَّمَكُمُ اللهُ كِتَابَهُ وَنَهَجَ لَكُمْ سَبِيلَهُ، لِيَعْلَمَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلِيَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ. فَأَحْسِنُوا كَمَا أَحْسَنَ اللهُ إِلَيْكُمْ، وَعَادُوا أَعْدَاءَهُ، وَجَاهِدُوا فِي اللهِ حَقَّ جِهَادِهِ، هُوَ اجْتَبَاكُمْ وَسَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ لِيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْ بَيِّنَةٍ، وَيَحْيَا مَنْ حَيَّ عَنْ بَيِّنَةٍ، وَلا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ، فَأَكْثِرُوا ذِكْرَ اللهِ، وَاعْلَمُوا أَنَّهُ خَيْرُ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَاعْمَلُوا لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ، فَإِنَّهُ مَنْ يُصْلِحْ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ يَكْفِهِ اللهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّاسِ، ذَلِكَ بِأَنَّ اللهَ يَقْضِي الْحَقَّ عَلَى النَّاسِ وَلا يَقْضُونَ، وَيَمْلِكُ مِنَ النَّاسِ وَلا يَمْلِكُونَ مِنْهُ، اللهُ أَكْبَرُ وَلا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ». [1]

او دا خطبه "البدايه والنهايه" كښې هم ذكر ده. په پښتو كښې دَ دې لنډ مقصد دا دے:

رسول الله ﷺ اول كښې دَ الله حمد او ثناء اووئيله، دَ الله تعريفونه ئې اوكړل او ترغيب ئې ورکړو: "چې اے خلقو! الله رب العزة خپل پيغمبر په داسې يَو دور كښې راوليږلو، داسې يَو زمانه كښې ئې راوليږلو چې دَ انبياء كرامو عليهم السلام سلسله قطع شوې وه، شپږ سوه (۶۰۰) يا پنځۀ سوه او اويا (۵۷۰) كاله شوي وو چې په دې دومره زمانه كښې څوک پيغمبر نۀ وو راغلے، او داسې زمانه وه چې قيامت پكښې نزدې دے. چا چې دَ الله او دَ الله دَ رسول ﷺ خبره اومنله نو هغه په سمه لار شو

(1) انظر: "المنتظم في تاريخ الملوك والأمم" لأبي الفرج ابن الجوزي: (66/3)، وفي بعض النسخ: (394/2). "البداية والنهاية": (213/3).

او چا چې دَ الله او دَ الله دَ رسول ﷺ خلاف اوکړو نو دے بے لارې شو او ډير لوئي ګمراه شو، دَ حق نه ډير لرې لاړو". او بيا وائي: "اے خلقو! دَ الله رب العزة نه اويريږئ او پهٔ خپل ځان کښې تقوٰی او يره پيدا کړئ".

تقوٰی طرف له دَ الله نبي ﷺ ډير ترغيب ورکړو، آخر کښې وائي: "چې الله رب العزة فرمائي: چې څوک دَ الله نه يريږي نو الله تعالٰی به دَ هغهٔ نه ګناهونه لرې کړي، او لوئي اجر به ورکړي، او چې څوک دَ الله نه اويريږي هغه به الله کامياب کړي، او چې څوک دَ الله نه يريږي دَ الله دَ غُصې نه به بچ شي، دَ الله رب العزة دَ خفګان نه به بچ شي، او دَ الله نه يره کول دَ انسان مخ سپينَوي او روښانه کوي ئې، دَ انسان درجه اوچتوي. اے خلقو! تاسو له ما دَ الله کتاب ښودلے دے او دَ الله لاره مې درته ښودلې ده. الله رب العزة دا پيغمبر دَ دې دپاره رالیږلے دے: چې تابعدار دَ غير تابعدار نه جُدا کړي. اے خلقو! تاسو سره چې الله رب العزة څنګه احسانات کړي دي نو تاسو هم دَ نورو خلقو سره احسانات اوکړئ. الله رب العزة تاسو له نوم منتخب کړے دے "مسلمين"".

بيا دَ الله نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته وائي: "چې اے خلقو! دَ آخرت دپاره تاسو ځان له تياري اوکړئ، کوم انسان چې خپل مينځ کښې او دَ الله مينځ کښې معامله سمه کړه نو الله تعالٰی به دَ هغهٔ او دَ خلقو مينځ کښې ټولې معاملې سمې کړي، او کوم سړي چې دَ الله او خپل مينځ کښې معامله خرابه کړه نو الله رب العزة به دَ هغهٔ ټول معاملات خراب کړي، دَ ټولو خلقو به بدي شي. او خبردار! دَ الله دَ مخلوق دَ يرې چرته دَ الله خلاف اونهٔ کړئ".

دا تاريخي خطبه وه، رسول الله ﷺ وئيلي وه. عربئ کښې اوږده ده ما درته پښتو کښې دَ هغې لنډ مطلب بيان کړو.

قباء نه نبي ﷺ مديني ته راغے، علماء کرام ذکر کوي: نبي ﷺ چې مديني منوّرې ته تلو نو قباء ته چې راغلے وو نو دا دَ ګل ورځ وه، باره ربيع الاول دياړلسم (۱۳) کال (دَ نبي ﷺ دَ نبوّت) وو، علامه محمد بن اسحاق ؒ چې مشهور مؤرِّخ دے دا هغهٔ ليکلي دي. او نور دَ سيرت علماء وائي: چې نبي ﷺ پهٔ اتم تاريخ دَ ربيع الاول دَ قباء نه راغلے دے؛ ځکه دَ زيارت پهٔ ورځ

پهٔ ۲۷ تاریخ دَ صفر المظفر نبي ﷺ دَ مکّې نه را روان شوے، درې (۳) ورځې دَ الله دَ نبي ﷺ پهٔ غارِ ثور کښې وې، او پهٔ یکم ربیع الاول دَ پیر پهٔ ورځ نبي ﷺ دَ غارِ ثور نه مدینې منوّرې ته را روان شو او پهٔ دې لاره لاره چې راتلو نو اتهٔ ورځې لګیدلې وې نو بیا ۸ ربیع الاول وو دَ پیر ورځ وه نبي ﷺ قُباء ته راغلے دے.

**دَ اسلامي تاریخ ابتداء**

زمونږ دا اسلامي تاریخ چې کوم دے دا اوس ۱٤٤٤ هجري ده. دَ محرم میاشت نه نوے کال شروع وو، ۱٤٤٤ هجري شروع شوه. دا اسلامي تاریخ دَ څهٔ وخت نه شروع شو؟ نو مؤرخین لیکي: چې دا تاریخ دَ عمر ﷛ پهٔ دور کښې دَ دې ایجاد شوے دے او دَ دې شروع شوې ده. او وجه دا ده: چې عمر ﷛ ته به خط راغے یا به دهٔ چا له خط لیکلو نو تاریخ به پرې نهٔ وو لیکلے نو پته نهٔ لګیده چې څنګښې کوم خط راغلے دے؟ او روستو کوم خط راغلے دے؟ نو دوي اووئیل: چې یَو تاریخ لیکو چې پهٔ هغې تاریخ مونږ پوهیږو چې دا رومبنے دے او دا روستنے دے، خو دَ تاریخ ابتداء دَ کوم ځائے نه اوکړو؟ نو پهٔ دې مشورې کیدې. امام سرخسي ﷫ لیکلي دي: دَ چا مشوره دا وه: چې دَ نبي ﷺ دَ پیدائش نه به دا تاریخ شروع کړو، چې پهٔ دې ورځ دَ الله نبي ﷺ پیدا شوے دے، دا دَ مسلمانانو عظیم رهبر دے، نو تاریخ ولادت نه به اسلامي تاریخ شروع کړو، دا به لیکو چې خومره ورځې اوشوې، دا به وریسې روان وې. سیدنا عمر ﷛ صحابه کرام را جمع کړل، دَ بعضې صحابوٌ ﷡ رائې دا وه. خو عمر ﷛ اووئیل: چې دا خبره مې خوښه نهٔ ده، ولې؟؛ چې دې کښې مشابهت راځي دَ عیسایانو سره؛ ځکه عیسایانو دَ خپل تاریخ ابتداء دَ عیسٰی ﷷ دَ پیدائش دَ ورځې نه کړې ده، چې پهٔ کومه ورځ عیسٰی ﷷ پیدا شوے وو. نو کهٔ مونږه دَ رسول الله ﷺ دَ پیدائش دَ ورځې نه اسلامي تاریخ شروع کړو نو دَ هغوي سره مشابهت راځي، او مشابهت دَ غیر دینه خلقو سره خوند نهٔ کوي، دا ناجائز دے.

چا پکښې دا اووئیل: چې دَ رسول الله ﷺ دَ وفات دَ ورځې نه به تاریخ شروع کړو، چې

نبي ﷺ پۀ کومه ورځ وفات شوے دے نو مونږه به وايُو چې: دَ دې نه اسلامي تاريخ شروع دے. او قدرتي دا وه، اګر چې دروغ دهٖ خو مشهوره خلقو کښې دا وه: چې نبي ﷺ پۀ باره (۱۲) ربيع الاول وفات دے. دا اختلافي دے، او اتفاقي ده چې پۀ باره (۱۲) ربيع الاول نبي ﷺ وفات دے پۀ لسم کال دَ هجرئ باندې. نو وائي: دَ نبي ﷺ دَ وفات نه به تاريخ شروع کړو، چې پۀ دې تاريخ نبي ﷺ وفات شوے دے او دومره زمانه اوشوه. سيدنا عمر ﷺ ورته وائي: دا مې هم خوښه نۀ ده، ولې؟ دا پۀ اسلام کښې يَو ډيره لويه حادثه وه او دَ غم ورځ وه، نو مونږ دَ خپل تاريخ ابتداء دَ غم دَ ورځې نه نۀ کوؤ (اللهُ أکبر!).

## دَهجرت کال نه دَاسلامي تاريخ ابتداء

نو صحابؤ ﷺ اووئيل: نو څۀ کوؤ؟ نو آخر کښې دَ صحابؤ ﷺ مشوره پۀ دې باندې راغله: چې دَ هجرت نه به شروع اوکړو، نبي ﷺ چې دَ کومې ورځې نه دَ مدينې هجرت کړے دے، بس دَ هجرت نه به شروع اوکړو. اوس کۀ ستاسو خيال وي نو ديته هجري تاريخ وائي، نو دَ هجرت نه به شروع اوکړو؛ ځکه هجرت دَ ټولو فتوحاتو بنياد وو. تر څو چې نبي ﷺ هجرت نۀ وو کړے، يَو ملک نۀ وو فتح شوے، دومره امدادونه نۀ وو. چې هجرت اوشو نو دَ الله امدادونه شروع شول، دَ اسلام غلبه راغله، ملکونه فتح کيدل، دَ اسلام قوّت خلقو اوليدو نو راځئ! دَ هجرت دَ تاريخ نه به ابتداء اوکړو. وائي: ډيره ښۀ ده.

خو تاسو ته ما اووئيل: چې هجرت کښې دوه قوله دي، يَو قول دَ امام محمد بن اسحاق ﷫ وو چې هغۀ وائي: چې ۱۲ ربيع الاول سن ۱۳ هجري باندې نبي ﷺ مدينې ته راغلے وو او نور علماء دَ سيرت وائي: پۀ ۸ اتم ربيع الاول باندې راغلے دے. او زمونږ اسلامي تاريخ دَ محرم نه شروع کيږي. محرم خو پکښې مخکښې دے او باره (۱۲) ربيع الاول خو پکښې روستو راځي، نو دا مخکښې ولې لاړو؟ محرم پسې صفر وي بيا صفر پسې ربيع الاول دے نو دا مياشت يَوه نيمه مخکښې ولې تاريخ شروع شو؟ صحابؤ ﷺ مشوره اوکړه: چې دَ هجرت شروع دَ کومې ورځې نه واچوو؟ نو بيا ئې اتفاق پۀ دې باندې راغے چې دَ نبي ﷺ دَ هجرت اراده دَ محرم دَ مياشت نه وه؛

ځکه ما تاسو له مخکښې تاریخ وئیلے وو چې په عقبه کښې چې صحابو ﷺ دَ نبي ﷺ سره په آخر ځل بیعت کړے وو، په لسم تاریخ دَ ذو الحجې باندې وو، دوي بیا دَ ذو الحجې په آخر آخر کښې واپس راغلل او نبي ﷺ دَ مدینې منوّرې دَ هجرت اراده اوکړه او صحابؤ ﷺ ته ئې هم اووئیل: چې تاسو هجرتونه کوئ. نو دَ هجرت اراده نبي ﷺ په محرم کښې کړې وه نو دَ هغې نه دَ هجرت تاریخ شروع شو. نو نبي ﷺ خو مدینې له په ربیع الاول کښې را رسیدلے دے، لیکن اراده ئې په محرم کښې وه نو دا اوس دَ محرم میاشت ده نو ۱۴۴۴ سال اوشول، دَ نبي ﷺ دَ هغې ارادې اوشول چې کله ئې دَ مدینې منوّرې دَ هجرت اراده کړې وه. دا څوارلس سوه څلور څلویښتم کال دَ هغې شروع شو او صحابه کرامو ﷺ به لیکلو.

خو عجیبه دا ده: چې نبي ﷺ کله مدینې منوّرې له را روان شو نو دَ دهٔ دار الهجرة خو قباء نهٔ وه، قباء خو لا ر کښې راغله، پړاؤ ئې اوکړو، دَ الله نبي ﷺ خو مدینې ته راتلو، دَ مدینې خلق ډیر زیات په نبي ﷺ باندې مئین وو. او تاسو ته ما مخکښې جُمعه کښې وئیلي وو چې هغوي له دا پته لګیدلې وه چې دَ الله نبي ﷺ را روان دے، نو سحر به راغلل او یَو ډیرئ وه هغې ته به ختلي وو، او په دې انتظار به وو چې کله به دَ الله نبي ﷺ را ښکاره کیږي، چې را به نغلو نو واپس به لاړل، دومره انتظارونه ئې کړي وو، کله چې خبر شول چې قُباء له راغلے دے او مدینې ته را روان دے نو په لاره کښې انصار هم ځائے په ځائے ولاړ وو... هغې وخت کښې لا دَ پردې حکم نهٔ وو راغلے، زنانه دَ کوټو سرونو ته ختلې وې او دَ الله دَ نبي ﷺ په انتظار کښې ولاړې وې، ماشومانې ولاړې او هغوي به دَ ډیرې خوشحالئ نه دا شعرونه وئیل:

طَلَعَ الْبَدْرُ عَلَيْنَا مِنْ ثَنِيَّاتِ الْوَدَاعْ
وَجَبَ الشُّكْرُ عَلَيْنَا مَا دَعَا لِلّٰهِ دَاعْ

"مونږ باندې دَ څوارلسمي سپوږمئ را ښکاره شوه دَ هغې ډیرئ دَ وَداع نه ("ثنیات الوداع" یَوه ډیرئ وه، مدینې والؤ چې به میلمه رخصتولو نو تر دَ هغې پورې به ورسره راغلل، نو نبي ﷺ دَ هغه

طرف نه راغے، نو دوي وائي: زمونږ په مدينه باندې دَ ثنيات الوداع دَ طرف نه الله يَو سپوږمئ را ښکاره کړه)، او دَ دې څوارلسمې سپوږمۍ په مونږ باندې دَ الله شکر اوباسل واجب دي (چې دا احسان مونږ باندې الله اوکړو نو واجب دے په مونږ باندې شکر دَ الله) تر څو چې يَو داعي دَ الله موجود وي". نو مونږ به دَ دې نعمت شکريه اداء کوؤ. او بيا وائي:

أَيُّهَا الْمَبْعُوْثُ فِيْنَا جِئْتَ بِالْأَمْرِ الْمُطَاعْ[1]

"اے مبارکه انسانه! چې ته مونږ ته پيغمبر راليږلے شوے ئې تا دَ الله دَ طرف نه مونږ ته داسې حکمونه راوړي دي چې دَ هغې تابعداري په مونږ باندې واجب ده او هغه به مونږ خامخه منو".

نو دا شعرونه به ئې دَ خوشحالئ نه وئيل او دَ الله نبي ﷺ را روان دے.

## دَ نبي ﷺ دَ استقبال دپاره ورې جينکئ اودريدل

بنو نجار ذا دَ نبي ﷺ دَ نيکهٔ دَ طرف نه ماما خيلي وه، بنو نجار ورې ورې ماشوماني دَ نبي ﷺ دَ استقبال دپاره لار کښې اودرولې وې. لکه اوس چې يَو غټ سړے راځي، اکثر خلقو ماشومان ځان سره بوتلي وي، او هغوي له ئې دَ ګلونو اميلونه ورکړي وي، او هغوي ئې هغې غټو خلقو له ورکړي، دَ ملکونو غټ غټ خلق راشي، سرمايه داران راشي نو اکثر په دې لويو خلقو کښې دوي ځان سره ماشومان هم بوځي، بيا هغه ماشوم هغه غټ سړي له تحفه ورکړي، او هغه ئې دَ ځان سره راجوخت کړي، او کله ماشومان شعرونه اووائي. نو دَ نبي ﷺ په استقبال کښې دَ بنو نجار ورې ورې جينکئ ولاړې وې او هغوي به وئيل:

نَحْنُ جَوَارٍ مِنْ بَنِي النَّجَّارْ يَا حَبَّذَا مُحَمَّدٌ مِنْ جَارْ[2]

"مونږ دَ بنو نجار قبيلې جينکئ يُو، واه! څومره دَ خوشحالئ خبره ده چې الله رسول الله ﷺ زمونږه ګاونډي کړو!!!".

خلقو دَ رسول الله ﷺ دَ مرګ بندوبست کولو، دَ کلي نه ئې ايستلو او څوک دَ الله شکر اداء

---

(1) انظر: "الرحيق المختوم" لصفي الرحمن المباركفوري: (156).

(2) انظر: "دلائل النبوة" للبيهقي: (508/2).

کوي چې شکر دے چې الله رسول الله ﷺ زمونږ کاونډي کړو. او دَ ډیرې خوشحالۍ نه به ورو ماشومانو جینکو وئیل:

"جَاءَ نَبِيُّ اللهِ جَاءَ رَسُوْلُ اللهِ".

"اے خلقو! دَ الله نبي راغے، اے خلقو! دَ الله رسول راغے".

نبي ﷺ ته ټول دَ مدینې خلق ولاړ دي، هر یَو سړے دَ الله نه سؤال کوي: یا الله! کۀ زما کور ته راغے نو څومره به ښۀ وي، کۀ زما کاونډي شو نو څومره به ښۀ وي. هر یَو سړے پۀ دې سوچ کښې دے.[1]

**دَ براء بن عازب ﷺ روایت**

براء بن عازب ﷺ وائي: دَ مدینې خلقو له پۀ هیڅ یَو شي دومره خوشحالي نۀ ده رسیدلې او دومره خوشحالي ئې نۀ ده لیدلې کومه خوشحالي چې هغوي دَ نبي ﷺ پۀ راتلو باندې مناؤ کړې وه. دومره خوشحالي پۀ مدینه کښې یَو ځل چا نۀ ده لیدلې څومره چې هغه دَ خوشحالۍ ورځ وه پۀ کومه ورځ چې دَ دواړو جهانو سردار مدینې ته راتلو.[2]

**دَ انس بن مالک ﷺ روایت**

"سنن ابي داود" کښې راځي: دَ انس بن مالک ﷺ روایت دے، وائي: کله چې نبي ﷺ مدینې منوّرې ته راغے، نو دَ حبشو نوجوانانو دَ نبي ﷺ دَ راتلو پۀ خوشحالۍ کښې هغوي دَ خپلې نیزه بازۍ کرتبونه کړي وو، پوره تماشه را جمع شوه، او هغوي نیزه بازي کوله، دَ تورو چلول او دَ غشو ویشتل یَو قسم ترینګ ئې کولو، نبي ﷺ پۀ هغې ډیر خوشحاله شو. دَ حبشو پۀ دې کښې ډیر مهارت وو، نبي ﷺ به اکثر تماشې له ولاړ وو. او پۀ دې به ډیر خوشحالیدو چې دوي به دَ غشو چل یاد کړي، دوي به دَ تورو چل یاد کړي نو کۀ صبا دشمن سره مقابله راځي چې بیا زمونږ ملګري

(1) انظر: "سیرة المصطفٰی": (366/1).

(2) انظر: "صحیح البخاري": (558/1).

قابل وي، او تکره وي.[1]

## دَ ابو ایوب ﷺ دَ کور مخې له دَ نبي ﷺ دَ اوښې کېښناستل

دَ نبي ﷺ دا اوښه را روانه وه، نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائيل: چې زما اوښه به پرېږدئ چې کوم ځائے کښې زما اوښه کېښناسته هغه ځائے کښې به زهٔ ميلمه کېږم، ستاسو به هغې سره کار نهٔ وي؛ ځکه کهٔ يَو سره تلو نو بل به خفه شوے وو او کهٔ بل سره تلو نو بل به خفه شوے وو. نبي ﷺ دَ خپلې اوښې پړے سُست کړو، وائي: چې دا اوښه کوم ځائے له لاړه نو هغه ځائے کښې به يُو. صحابه کرام ﷺ ټول حيران دي، چې دا اوښه به دَ کوم بختور پهٔ کور کښې کېښني. دا کوم ځائے کښې چې مسجدِ نبوي دے دغه ځائے کښې اول اوښه کېښناسته، نبي ﷺ ترې نه را کوز شوے نهٔ وو، چې بيا پاسيده نو دَ ابو ايوب انصاري ﷺ کور وو دَ هغهٔ دَ کور مخې له دا اوښه کېښناسته. ابو ايوب انصاري ﷺ دَ خوشحالئ نه پهٔ جامو کښې نهٔ ځائيږي. نبي ﷺ لږ صبر اوکړو اوښه بيا پاسيده، دَ جومات خوا له راغله. نبي ﷺ ابو ايوب انصاري ﷺ ته وائي: چې دا سامان تهٔ کور ته اوچلوه؛ ځکه زهٔ به ستا پهٔ ځائے کښې يم؛ ځکه دا اوښه دلته دَ الله پهٔ حکم باندې کېښناسته. ابو ايوب انصاري ﷺ خپل کور ته سامان اوچلولو. ابو ايوب انصاري ﷺ وائي: زما کور دوه (۲) چته وو، يَو دَ لاندې چت وو، يَو د پاسه چت وو. وائي: ما وئيل: چې لاندې خو هر قسمه حالت وي، دَ پاسه به پرې ښهٔ مزيداره هواء لګي نو دَ الله پيغمبر له به دا دِويم چت ورکړم نو نبي ﷺ به پهٔ هغې کښې اوسيږي. وائي: نبي ﷺ ما ته اوفرمائيل: چې نا! زهٔ لاندې اوسيږم. نبي ﷺ ته پته وه چې زما به ميلمانهٔ ډير راځي، خلق به مُلاقاتونو له راځي، هر وخت به دَ ابو ايوب ﷺ کور کښې خلق پناه کيږي، بيا به راوځي، بيا به فناه کيږي، بيا به راوځي.. دا به ګرانه شي. نبي ﷺ ورته وائي: ابو ايوبه! تهٔ بره اوسيږه او مونږ به لاندې يُو. ابو ايوب ﷺ ورته وائي: چې تهٔ پهٔ خپله خوښه پاتې کيږې نو زما خوښه ده. ابو ايوب ﷺ وائي: ما له دا هم ضمير اجازت نهٔ را کولو چې زهٔ څنګه

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (1/366، 367).

پهٔ هغې چت اوګرځم چې لاندې ئې رسول الله ﷺ وي، خو هغه دَ الله دَ نبي ﷺ خوښه وه چې زما داسې خوښه ده.

**پهٔ بره چت اوبهٔ اوړيدل**

يَوه واقعه کښې راځي: ابو ايوب ؓ وائي: يَو ځل زمونږ نه پهٔ بره چت اوبهٔ واوړيدې، هغه پرناله لاندې راکوزه شوې وه، وائي: ما زر زر خپل قميض لرې کړو نوره کپړه نهٔ وه او پهٔ هغې مو هغه اوبهٔ اوچولې؛ چې لاندې دَ الله دَ نبي ﷺ کور ته اوبهٔ لاړې نهٔ شي. وائي: بيا را سره نورې جامې هم نهٔ وې، دغسې ورته ناست اوم چې دا اوچې شي. دومره ادب او دومره احترام وو.

**دَ ابو ايوب انصاري ؓ نبي ﷺ له ډوډئ تيارول**

ابو ايوب انصاري ؓ وائي: مونږ به هر وخت دَ الله دَ نبي ﷺ دپاره ډوډئ تياروله او راليږله به مو. يَو ځل ابو ايوب ؓ خپل کور والا ته اووئيل: چې ښهٔ پروګرام اوکړه. وائي: اوګه، پياز، مصالحه هر څهٔ مې پکښې واچول، ښهٔ مزيداره ترکاري مې پخه کړه، نبي ﷺ ته مې چې راوليږله نو (وائي: مونږ به کله هم چې دَ الله نبي ﷺ ته خوراک راوړو نو نبي ﷺ چې به څومره خوړلے شوه نو هغه به ئې اوخوړه، باقي به پاتې شوه، وائي: قسم پهٔ خدائے دے! چې هغه ځائے پسې به مونږه کوتې کرځولې پهٔ کوم ځائے چې به رسول الله ﷺ خپلې ګوتې کيخودې وې، مونږه وئيل: چې دا برکت زمونږ دې خيټې ته لاړ شي، هغه ځائے نه به مونږه خوراک کولو دَ کوم ځائے نه به چې رسول الله ﷺ خوراک کړے وو) نبي ﷺ نهٔ وه خوړلې. مونږ هغه ځائے معلومولو چې نبي ﷺ به پهٔ کوم ځائے باندې ګوتې کيخودې وي هغه ځائے پکښې مونږ پيدا نهٔ کړو، ما سره غم شو، پهٔ منډه منډه راکوز شوم، دَ الله نبي ﷺ ته وايم: چې اے دَ الله نبي! تن خو تاسو ډوډئ نهٔ ده خوړلې، څهٔ چل شوے دے؟ څهٔ غلطې شوې ده؟ څهٔ نقصان شوے دے؟ څهٔ وجه ده؟ وائي: رسول الله ﷺ ما ته وائي: چې نن پکښې تاسو اوګه او پياز اچولي وو، او دا بدبودار شے دے، دا زهٔ نهٔ خورم. وائي: ما اووئيل: چې حرام دي؟ وائي: نا! حرام خو نهٔ دي، تاسو له جائز دي، خوړئ ئې خو ما سره هغه مخلوق راځي چې تاسو سره نهٔ راځي،

ما سره جبرئیل علیه السلام راځي، دَ جبرئیل علیه السلام بد بوئي بدي شي (دَ الله دَ نبي ﷺ به خوشبوئي ډيره خوښه وه، بد بوئي به ئې ډيره بدي شوه) نو جبرئیل علیه السلام بيا خفه وي، نو لِهٰذا زهٔ دا نهٔ خورم. ابو ايوب رضی الله عنه وائي: دَ هغې نه پس بيا ما کور والا ته اووئيل: چې رسول الله ﷺ ته کهٔ هر شے ښځوئ خو اوکه او پياز به پکښې نهٔ اچوئ. چې رسول الله ﷺ کوم شے نهٔ خوري نو هغه مونږ څهٔ له ښځوؤ؟ کهٔ زمونږ ډير هم خوښ وي خو چې رسول الله ﷺ ئې نهٔ خوري نو مونږ پرې څهٔ کوؤ؟

**دَ نبي ﷺ دَ ابو ايوب انصاري رضی الله عنه کره دَ پاتې کيدو وجه**

علماؤ ليکلي دي: چې نبي ﷺ دَ ابو ايوب انصاري رضی الله عنه کور ته ولې راغے؟ دا څهٔ وجه وه؟ د اوښه مامور مِنَ الله وه خو اصل کښې يَو واقعه ښځوا شوې وه:

دَ يمن ټولو بادشاهانو ته به ئې "تُبَّعْ" وئيلو، نو پهٔ دې بادشاهانو کښې يَو بادشاه وو "تبَّعْ"، او دا تبَّع ډير ښهٔ سړے وو، قرآنِ عظيم کښې الله وائي:

﴿أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾.[1]

الله رب العزة دَ تبّع دَ قوم مذمّت بيان کړے دے، خو دَ تبع مذمت الله نهٔ دے بيان کړے، عائشه رضی الله عنها فرمائي: "چې نبي ﷺ فرمائي: چې تبّع ته به کنځلې نهٔ کوئ؛ ځکه چې دا مسلمان وو".

دا تبع چې دے دهٔ دَ ځانِ سره پهٔ يَو زمانه کښې مديني منوّرې ته دَ توراة څلور سوه (۴۰۰) عالمان را روان کړي وو (ښځواني خلق هغوي به دَ علماؤ ډير قدر کولو). نو چې کله دوي مديني منوّرې ته راغلل نو دې علماؤ دَ هغې بادشاه نه تپوس اوکړو: چې کهٔ تهٔ مونږ له اجازت راکوې نو مونږ به پهٔ دې مدينه کښې آباد شو، دلته به پاتې شو؟ هغې بادشاه ورته اووئيل: چې ولې؟ وائي: زمونږ پهٔ توراة کښې ئې ليکلي دي: چې آخري پيغمبر چې راځي نو دَ هغهٔ دار الهجرة به مدينه منوّره وي، نو دا به دَ هغې نبي (ﷺ) دَ هجرت مقام وي، دَ هغهٔ ځائے به وي نو مونږ وايُو: چې مونږ دلته آباد شو، چې کله هغه نبي (ﷺ) راشي نو مونږ چې پهٔ هغهٔ باندې ايمان راوړو. وائي: هاں! د دې د

(1) [سورة الدخان: 37].

وجې نه؟ وائي: آو. وائي: بې غمه شئ هغه خو بادشاه وو، الله ورله مال ورکړے وو، هغې څلور سوه (۴۰۰) علماؤ ته يَو يَو له ځان له پۀ مدينه منوّره کښې کور جوړ کړو. او دا انصار ټول دَ هغې علماؤ پۀ اولاد کښې راتلل. هغوي دلته آباد شول، چې آباد شول نو تُبَّع ورته وائي: چې تاسو وايئ: چې توراة کښې ئې ليکلي دي نو دا يَو کور زۀ جوړوم او دا به دَ هغې نبي (ﷺ) وي چې کوم نبي مدينې ته هجرت کوي، چې کله دے مدينې ته راغے نو دا به دَ هغۀ ځائے وي، پۀ هغې عالمانو کښې يَو عالم وو، هغۀ لهٔ ئې دَ هغې چابيانې ورکړې، چې تۀ به دَ دې نګراني کوې او تۀ پۀ دې کښې اوسيږه، چې کله هغۀ راغے نو بيا به ئې هغۀ له پريږدې، او پۀ دې کښې به بيا هغه نبي (ﷺ) اوسيږي. او يَو خط ئې ورله ورکړو چې دَ مرګ ژوند پته نۀ لګي، کيدے شي چې زۀ نۀ يم، چې هغه نبي (ﷺ) راځي (تاسو وايئ: چې روستو به راځي) نو کۀ زۀ نۀ اوم او تاسو کښې کوم يَو ژوندے وو نو دا زما خط به هغه نبي (ﷺ) له ورکړئ، او کۀ چرته تاسو مړۀ وئ نو چې کله تاسو وفات کيږئ نو دا خط به خپلو وارثانو او خپلو بچو له پريږدئ، او هغوي ته به دا وصيت اوکړئ: چې دا خط چې کله هغه نبي (ﷺ) راشي نو دا خط به زما دَ طرف نه هغې نبي (ﷺ) له ورکړئ.

**دَ تُبَّع بادشاه دَ اسلام اظهار**

پۀ هغه خط کښې هغۀ دَ خپل اسلام اظهار کړے وو. دَ هغه خط مضمون دا وو:

شَهِدْتُ عَلَى أَحْمَدَ أَنَّهُ ... نَبِيٌّ مِّنَ اللهِ بَارِي النَّسَمْ

فَلَوْ مُدَّ عُمْرِي إِلَى عُمْرِهِ ... لَكُنْتُ وَزِيْرًا لَهُ وَابْنُ عَمْ

وَجَاهَدْتُ بِالسَّيْفِ أَعْدَاءَهُ ... وَفَرَّجْتُ عَنْ صَدْرِهِ كُلَّ هَمْ[1]

وائي: "زۀ تبَّع دا ګواهي کوم چې احمد (ﷺ) دَ الله پيغمبر دے، دَ هغې الله چې روحونو پيدا کونکے دے (دے دَ هغۀ حق او سچ پيغمبر دے). او کۀ چرته ما ته دومره عمر ميلاؤ شو چې زۀ هغې وخته پورې ژوندے اوم کوم وخت کښې چې دا نبي (ﷺ) دنيا ته راشي نو زۀ به دَ هغۀ ملګرے او مددګار يم، لکه دَ ترۀ دَ ځوي پۀ شان به ورته کلک ولاړ يم، او دَ وزير پۀ شان به ورسره

(1) انظر: "الروض الأنف": (84/1)، و"السيرة النبوية" لابن كثير: (24/1).

کلک ولاړ یم. او زهٔ به پهٔ توره باندې دَ هغهٔ دشمنانو سرّه جنګ کوم او دَ هغهٔ دَ زړهٔ نه به هر غم او مصیبت لرې کوم".

دا خط ئې لیکلے وو، او پهٔ هغې ئې خپل مهر هم لګولے وو، ابو ایوب انصاري ﷺ دَ هغې عالِم پهٔ اولاد کښې راتلو چې کوم عالم له ئې دا کور حواله کړے وو، او دا خط ئې ورله ورکړے وو. کله چې نبي ﷺ پهٔ هغې کور کښې پاتې شو نو ابو ایوب انصاري ﷺ ورله هغه خط راوړو چې ستا پهٔ نوم خط دا زما بابا ته میلاؤ شوے وو او دا تُبّع بادشاه هغهٔ له ورکړے وو او دا کور ئې ستا دپاره جوړ کړے وو. دَ دې وجې نه بعضې علماؤ دَ سیرَت لیکلي دي: چې نبي ﷺ دَ ابو ایوب انصاري ﷺ کور ته نهٔ دے راغلے، ذا نبي ﷺ پهٔ حقیقت کښې هغې خپل کور ته راغلے دے چې کوم کور تُبّع بادشاه دَ نبي ﷺ دپاره آباد کړے وو، خو حواله کړے ئې دَ ابو ایوب انصاري ﷺ پلارانو او نیکونو ته وو او دَ هغوي نه ابو ایوب انصاري ﷺ ته پاتې وو او ابو ایوب انصاري ﷺ نبي ﷺ ته اووئیل: چې دا خو ستا خپل کور دے.

پهٔ دغه کور کښې بیا نبي ﷺ اوسیدو، او صحابه کرام ﷺ به راتلل. را روانه جُمعه کښې به دا وایُو: چې وفدونه به راتلل دَ رسول الله ﷺ ملاقات له، بیا نبي ﷺ پهٔ مدینه منوّره کښې ابتداءً کوم کوم کارونه کړي دي؟ دَ هغې وضاحت به بله جُمعه کښې راځي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُو اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه درويشتمه

## "په مدينه منوّره کښې دَ يهودو علماؤ

## په نبي ﷺ باندې ايمان راوړل "

بتاريخ: 2022-08-12

مقام: جلسې

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه درویشتمه

## "په مدینه منوره کښې د یهودو علماؤ په نبي ﷺ باندې ایمان راوړل"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا﴾.[1]

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! د رسول الله ﷺ سيرتِ طيبه څۀ حصه مونږه بيان کړې وه. تر دې ځائے پورې خبره بيان شوې وه چې رسول الله ﷺ مدينې ته راتلو نو هغه حالت څنګه وو؟ هغه منظر څنګه وو؟ بيا اول پۀ قُباء کښې څو ورځې پاتې شو، هلته ئې د مسجدِ قباء بنياد کيخودو، او بيا د هغې ځائے نه مدينې منورې ته راغے، پۀ مدينه منوره کښې خلق انتهائي خوشحاله وو، او د هر يَو کس آرمان دا وو: کۀ رسول الله ﷺ ما سره لا ړ و نو دا به ښۀ وي. ليکن د الله نبي ﷺ داسې کولے نۀ شو چې د يَو کس سره تلے وے، چې نور خفه نۀ شي. رسول الله ﷺ ورته اووئيل: چې زما د اوښې مُهار به پريږدوئ چې کوم ځائے کښې اوښه کيښناسته نو هغه ځائے به زما ځائے وي، ديته به الله يَو ځائے اوښائي، دا د الله طرف نه مامور ده. تفصيل مونږ بيان کړے وو، چې اوښه اول کيښناسته پۀ هغه ځائے باندې کوم ځائے کښې نن مسجدِ نبوي آباد

(1) [سورة الأحزاب: 21].

دے، رسول الله ﷺ لا پۀ اوښه ناست وو، لږ ساعت پس اوښه بیا پاسیده او دَ سیدنا ابو ایوب انصاري رضی الله عنه دَ کور مخې ته کیښناسته. ابو ایوب انصاري رضی الله عنه دَ خوشحالئ نه پۀ جامو کښې نۀ ځائیږي. رسول الله ﷺ ورته وائي: ابو ایوبه! دا سامان کور ته یوسه، زۀ به تا سره یم.

او ما تاسو ته تفصیل بیان کړے وو: چې تبّع (بادشاه چې دَ یمن وو) دا کور دَ رسول الله ﷺ دپاره جوړ کړے وو او دا ابو ایوب انصاري رضی الله عنه دَ هغې عالم پۀ اولاد کښې راتلو چې کوم له هغې بادشاه خط ورکړے وو او دا کور ئې ورته حواله کړے وو. هغه خط هم بیا هغۀ نبي ﷺ ته اوښودلو. نبي ﷺ پۀ مدینه کښې دَ ابو ایوب انصاري رضی الله عنه پۀ کور کښې دے، ډلې ډلې خلق راځي او پۀ نبي ﷺ باندې ایمان راوړي.

## دَ یهودو دَ علماؤ ایمان راوړل

پۀ دې کښې یهود چې وو پۀ هغوي کښې چې کوم ښۀ مُلیان وو..... مُلیانو کښې خو ښۀ ډیر کم وي؛ ځکه دوي دَ بغض او دَ حسد ډیرې نمونې وي. پۀ هغوي کښې چې کوم بغضیان وو نو هغوي خو پۀ هغې خپل بغض باندې کلک شول او هغوي به دَ نبي ﷺ سخت خلاف کولو، خو چې کومو مُلیانو کښې بُغض نۀ وو نو هغوي به راتلل او پۀ نبي ﷺ باندې به ئې ایمان راوړو؛ ولې چې هغوي پۀ توراة کښې دَ رسول الله ﷺ کومې نخښې وئیلې وې، کومې علامې ئې ورته معلومې وې نو چې هغه به ئې پۀ نبي ﷺ کښې اولیدې نو پوهه به شول چې دا هغه پیغمبر (ﷺ) دے چې زمونږ پۀ توراة کښې الله رب العزة دَ دۀ ذکر کړے دے. توراة کښې الله رب العزة وئیلي وو: چې آخري نبي (ﷺ) به الله تعالیٰ رالیږي، او پۀ هغۀ به دَ انبیاؤ علیهم السلام سلسله بندیږي، مکّه کښې به پیغمبر وي او مدینې ته به هجرت کوي، او مدینې له به راځي، داسې نخښې ئې دي، داسې نخښې ئې دي..... نو کله چې به هغوي هغه نخښې اولیدې نو چې ضد به پکښې نۀ وو نو ایمان به ئې راوړو.

دَ دې وجې نه پۀ رسول الله ﷺ باندې دَ یهودو ډیرو علماؤ ایمان راوړے وو. ابن عائذ پۀ سند دَ عروه بن زبیر (چې راوي دے) نقل کړي دي: چې دَ یهودو عالمانو کښې دَ تولو نه مخکښې

چې دَ نبي ﷺ پهٔ خدمت کښې حاضر شوے وو نو هغه يَو مُلا وو: "ياسر بن اخطب". دا دَ حُيَيِّ بْنِ اخطب يهودي رور وو. دَ نبي ﷺ ملاقات ته راغے، ټول خلق را رَوان وو، دے پکښې هم راغے، دے وائي: چې ما کله دَ نبي ﷺ خبرې واوريدې نو دَ هغهٔ خبرې ډيرې نا آشنا وې. واپس چې دے کله خپل قوم ته لاړو نو هغې خپل قوم ته وائي:

"أَطِيعُونِي فَإِنَّ هَذَا النَّبِيُّ الَّذِي كُنَّا نَنْتَظِرُ".[1]

اے قومه! "زما خبره اومنئ (زهٔ تلے ووم او ما دَ هغې نبي (ﷺ) ملاقات اوکړو چې کوم ځان ته نبي وائي، زهٔ پهٔ دې خبره پوهه شوم چې) دا هغه نبي (ﷺ) دے چې دَ کوم نبي (ﷺ) مونږه پهٔ انتظار کښې وو". مونږ توراة کښې لوستلي وو چې آخري نبي (ﷺ) به راځي نو دا هم هغه نبي (ﷺ) دے، راځئ! ما سره ملګري شئ چې ايمان پرې راوړو. نو دَ دهٔ رور حُيَيِّ بْنِ اخطب هغهٔ دَ دې خپل رور خلاف شروع کړو، وائي: دے ګډې وډې وائي. او حُيَيِّ بْنِ اخطب دا خلقو يَو مشر ګڼړلے وو نو چې دهٔ خلاف شروع کړو نو هغه خلق هم دَ حُيَيِّ بْنِ اخطب ملګري شول او دَ دې ياسر بن اخطب ﷺ خبره ئې اونهٔ منله، څو دهٔ پهٔ خپله ايمان راوړو.

**دَ سيدنا ابوهريره ﷺ روايت**

سعيد بن مسيّب رحمه الله دَ ابو هريره ﷺ نه نقل کوي: چې کله نبي ﷺ مدينې منوّرې ته راغے نو دَ يهودو دَ درس ځايونه چې وو هغې له به ئې "بيت المِدْراس" وئيلو، پهٔ هغې کښې به يهود جمع شول او پهٔ خپل مينځ کښې به ئې مشوره اوکړه: چې يره! دا پيغمبر (ﷺ) دے او کهٔ نهٔ؟ او دے وائي: چې زهٔ پيغمبر يم نو داسې څهٔ تپوسونه ترې کوؤ چې دِ هغې جواب بغير دَ نبي نه بل چا له نهٔ ورزي، کهٔ چرته جواب ئې اوکړو نو دا نبي (ﷺ) دے، او کهٔ جواب ئې را نهٔ کړو نو دا نبي (ﷺ) نهٔ دے. ډير دَ يهودو علماء داسې وو: چې را به غلل، تپوس به ئې اوکړو، جواب به ورته ميلاؤ شو ضد به پکښې نهٔ وو نو هغوي به اووئيل: چې دا بالکل هغه نبي (ﷺ) دے، نو ايمان بهٔ ئې پرې راوړو. او ډير به پهٔ هغې خپل ضد باندې ټينګ پاتې شول.[2]

(1) انظر: "فتح الباري" لابن حجر، قوله باب كذا: (275/7).
(2) انظر: "فتح الباري" لابن حجر، قوله باب كذا: (275/7).

### دَ عبد الله بن عباس ﷺ روایت

امام بیهقي دَ عبد الله بن عباس ﷺ پهٔ روایت نقل کړي دي: یَو یهودي عالم دَ نبي ﷺ خدمت کښې حاضر شو، نبي ﷺ دَ سورة یوسف تلاوت کولو، چې هغې کښې الله رب العزة دَ یوسف ﷺ تفصیلي واقعه بیان کړې ده، هغه یهودي حیران دے چې دا مضمون خو توراة کښې هم شته، دهٔ نهٔ سبق وئیلے دے، نهٔ ئې تعلیم حاصل کړے دے، نهٔ دَ چا شاګرد پاتې شوے دے نو چې دهٔ ته دا چا اوښودل؟ مونږ خو توراة زده کړے دے، دے خو پهٔ توراة هم نهٔ پوهیږي!!!. نو دے رسول الله ﷺ ته وائي: چې اے محمد! دا را ته اووایه: چې دا تعلیم تا ته چا درکړے دے؟ دا بیان درته چا ښودلے دے؟ نبي ﷺ ورته وائي: ما ته زما الله دَ دې تعلیم راکړے دے، الله را ته دا ښودلي دي.

دا یهودي مُلا ډیر زیات حیران شو. واپس لاړو، او هغوي ته وائي: "اے یهودو! نن ما دَ محمد (ﷺ) دَ خُلې نه قرآن واوریدو چې هغه لوستو، دا کتاب، دا قرآن ما ته داسې معلومیدو چې دا او دَ موسٰی ﷺ کتاب دواړه یَو مسئله بیانوي، یَو خبره کوي، دَ هغې پهٔ شان خبره ده. ما دَ دې نبي (ﷺ) شکل اولیدو، ما دَ دې نبي (ﷺ) شکل او صورت اوکتلو نو ما چې اوکتل نو هغه نخښې او هغه علامې پهٔ دهٔ کښې موجود وې چې کومې پهٔ توراة کښې دَ نبي آخر الزمان (ﷺ) لیکلے شوې دي. زما پهٔ خیال چې دا هغه نبي (ﷺ) دے نو راځئ! چې ایمان پرې راوړو".

کله کله دَ یَو مُلا پهٔ وجه باندې ټول قوم سم شي او کله کله دَ یَو مُلا پهٔ وجه باندې ټول قوم خراب شي؛ ولې چې مُلا ته حق معلوم وي او نهٔ ئې مني نو عوام وائي: چې زمونږ استاذ چې وائي: چې دا خبره صحیح نهٔ ده نو دَ استاذ پهٔ وجه هغه ټول منکر شي. او کله داسې وي چې عالِم دَ حق تابع شي نو دَ هغې عالم دَ وجې نه ډیرو خلقو ته هدایت نصیب شي. نو چې دې مُلا اووئیل: چې دا هغه نبي دے چې توراة کښې دَ دهٔ نخښې او علامې ذکر شوي دي او بالکل هغه ټولې پهٔ دهٔ کښې موجود دي نو دے او قوم ئې ټول پهٔ یَو ورځ مسلمانان شول.[1]

(1) انظر: "سیرة المصطفی": (1/371 - 372).

## دَ ابن صوریا واقعه

ابن اسحاق او بیهقي دَ ابو هریره ﷺ په روایت نقل کړي دي: چې یو ځل نبي ﷺ ابن صوریا (چې دا دَ یهودو عالم وو) سره خبرې کولې، نبي ﷺ ورته وائي: چې ابن صوریا! ما ته اوکوره! ستا دې په الله قسم وي! رشتیا رشتیا به وائې! توراة کښې دَ شادي شده (چې سړے وي او که زنانه وي او واده کړې وي او زنا اوکړي) نو توراة کښې دَ هغې څهٔ حکم دے؟ دروغ به نهٔ وائې! نو هغه ابن صوریا ورته وائي: چې توراة کښې دَ هغې حکم رجم دے. نبي ﷺ ورته اووئیل: چې زهٔ هم دا وایم: چې دَ هغې حکم رجم دے نو زما او دَ توراة خبره خو یوه ده نو بیا تاسو ولې نهٔ منئ؟ ابن صوریا دَ الله نبي ﷺ ته وائي:

"اَللّٰهُمَّ نَعَمْ، أَمَا وَاللّٰهِ يَا أَبَا الْقَاسِمِ! إِنَّهُمْ لَيَعْرِفُونَ أَنَّكَ لَنَبِيٌّ مُرْسَلٌ وَلٰكِنَّهُمْ يَحْسُدُونَكَ".[1]

"اے دَ الله نبي! توراة کښې هم دغه خبره ده چې واده کړے سړے او زنانه چې زنا اوکړي نو دَ هغوي سزا رجم ده، او دوي ښهٔ پوهیږي په دې خبره چې تهٔ دَ الله نبي ئې او الله خلقو له پیغمبر را لیږلے ئې خو ځکه دې نهٔ مني: چې دوي تا سره بُغض او حسد کوي". وائي: که مونږ دهٔ ته رسول اووایُو نو عزت به تول دهٔ له لاړ شي، بیا به زمونږه څوک عزت او قدر نهٔ کوي، اوس خو مو دا نا پوهه خلق دهوکه کړي دي چې هغوي وائي: چې زمونږ مُلا وائي: چې دا نبي نهٔ دے. خو که مونږه پرې ایمان راوړو نو بیا خو زمونږ څهٔ حیثیت نهٔ پاتې کیږي، بیا خو تول عزت دهٔ له ځي. نو دَ خپل عزت بر قرار ساتلو دپاره ئې خلاف کولو. بعضې داسې ډیر مُلیان وي چې ورته پته اولګي چې زما دا خبره غلطه ده، وائي: شرم دے څنګه به زهٔ اوس دَ دې نه واپس را کرځم، نهٔ ئې مني. داسې ډیر علماء دَ یهودو وو چې هغوي په نبي ﷺ باندې ایمان راوړے وو.[2]

## دَ عبد الله بن سلام ﷺ دَ اسلام واقعه

مشهوره واقعه پکښې دَ عبد الله بن سلام ﷺ ده. عبد الله بن سلام ﷺ چې دے دا هم دَ

(1) انظر: "الخصائص الكبرى" للبيهقي: (193/1)، و"سيرة ابن هشام": (565/1).

(2) انظر: "سيرة المصطفى": (372/1).

يهودو يَو لوئي عالم وو، او دے دَ سيدنا يوسف ﷺ پهٔ اولاد کښې راتلو، او دَ عبد الله بن سلام ﷺ اصل نوم "حُصين" وو. کله ئې چې اسلام راوړو نو نبي ﷺ دَ هغهٔ نوم عبد الله بن سلام کيخودو. نو دا نوم ورله بيا رسول الله ﷺ کيخودلے دے. او نوم ئې ورله بدل کړے دے.

دا عبد الله بن سلام ﷺ پهٔ خپله خپله واقعه بيانَوي، وائي: کله چې رسول الله ﷺ مديني ته راغے، زهٔ خبر شوم چې يَو سړے راغلے دے، او دَ دنيا خلق دَ هغهٔ ملاقات له ځي، او هغه وائي: چې زهٔ دَ الله رسول يم. وائي: ما اووئيل: چې راشه! تهٔ ئې هم ملاقات ته لاړ شه. دا هم يَو خبره ده چې مُلا دَ بل مُلا ملاقات له لاړ شي نو بيا ورته اکثر الله لاړ کولاؤ کړي، هدايت ورته هم نصِيب کړي، خو چې دا تا سره مخ هم نهٔ ميلاؤ وي نو پهٔ دهٔ باندې بيا خبره اثر نهٔ کوي، دهٔ کښې بُغض وي. دا عبد الله بن سلام ﷺ وائي: زهٔ دَ رسول الله ﷺ ملاقات له لاړم. وائي:

"فَلَمَّا رَأَيْتُ وَجْهَهُ، عَرَفْتُ أَنَّ وَجْهَهُ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ".[1]

نورې خبرې خو پريږدَوه خو "کله چې ما دَ نبي ﷺ مخ مبارَک اوليدو نو زهٔ پهٔ دې خبره باندې پوهه شوم چې دا مخ دَ دروغژن سړي مخ نهٔ دے". دَ هغهٔ دَ مخ نه پهٔ ما باندې يَو اثر اوشو چې ما دَ هغهٔ مخ ته اوکتل چې دا مخ دَ دروغژن سړي مخ نهٔ دے، واقعي سړے نبي دے، هسې نهٔ وائي.

**دَ عبد الله بن سلام ﷺ دَ نبي ﷺ نه اوله خبره اوريدل**

بيا وائي: اوله خبره چې ما دَ رسول الله ﷺ دَ خُلې نه اوريدلې وه هغه دا وه: چې زهٔ څنګه لاړم، دَ الله نبي ﷺ لګيا دے او خلقو ته بيان کوي، وائي:

«يَا أَيُّهَا النَّاسُ! أَفْشُوا السَّلاَمَ، وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ، وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُونَ الجَنَّةَ بِسَلاَمٍ».[2]

دا دَ الله دَ نبي ﷺ خبرې وې، ما واوريدې:

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2485)، والدارمي في "سننه"، ومن كتاب الاستئذان، باب في إفشاء السلام، برقم: (2674)، واللفظ له.

(2) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2485)، واللفظ له، والدارمي في "سننه"، ومن كتاب الاستئذان، باب في إفشاء السلام، برقم: (2674).

(۱) اوله خبره: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ! أَفْشُوا السَّلَامَ».

"اے دَ ټولې دنيا خلقو! سلام عام کړئ"، چا سره چې ميلاويږئ او مسلمان وي نو سلام پرې اچوه، دا اخلاقِ حسنه پيدا کړه.

(۲) دويمه خبره: «وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ».

"اے دَ ټولې دنيا خلقو! اے انسانانو! دَ الله دَ رضاء دپاره خلقو له خوراک ورکوئ، ډوډئ ورکوئ...".

دَ الله رب العزة دَ رضاء دپاره خلقو له طعام ورکوئ. دا يَو بهترين صفت دے، او دا الله رب العزة بعَضې خلقو کښې پيدا کړے وي، چې ميلمه راشي نو هغهٔ بيا خوشحاليږي. او بعضې داسې خلق وي چې پهٔ دې ډېر پريشانه کيږي، پهٔ زړګونو پيسې لګوي خو ډوډئ دَ کور نه نهٔ راوباسي، چائے دَ کور نه نهٔ راوباسي. نو نبي ﷺ اوفرمائيل: چې «وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ». "دَ الله دَ رضاء دپاره ډوډئ ورکوئ".

(۳) دريمه خبره: «وَصِلُوا الْأَرْحَامَ».[1]

"او خلقو سره خپلوَلئ او رشته دارئ پالئ".

زمونږ دَ نورو خلقو سره بنهٔ لګي خو خپله کښې مو دَ يَو بل سره نهٔ لګي، دَ ترهٔ ځوي سره مو نهٔ لګي، رور سره مو نهٔ لګي، ترهٔ سره مو نهٔ لګي، پيو (ترور)، ماماګانو او ماسي سره مو نهٔ لګي، دَ پلار او دَ بچو خپله کښې نهٔ لګي او نورو خلقو سره بالکل زمونږ تعلق صحيح وي. نن مصيبت دا دے: چې ډېر پهٔ کوم کار کښې ثواب وو نو هغهٔ مونږ نهٔ منو. زما عزتمندو! دَ الله نبي ﷺ وائي: خپلوَلي پالئ.

(٤) څلورمه خبره: «وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ».[2]

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2485)، والدارمي في "سننه"، ومن كتاب الاستئذان، باب في إفشاء السلام، برقم: (2674)، واللفظ له.

(2) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2485)، واللفظ له، والدارمي في "سننه"، ومن كتاب الاستئذان، باب في إفشاء السلام، برقم: (2674).

او بعضې رواياتو کښې «وَصَلُّوا بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ» الفاظ راغلي دي. "دَ شپې مونځ کوئ په داسې حالت کښې چې خلق اوده وي"، نو تاسو الله ته پاسيږئ او الله ته اودريږئ. دا دَ اخلاص نخښه ده، چې هيڅ څوک خبر نهٔ دي، يَو الله ستا دَ حال نه خبر دے او تهٔ بستره پريږدې، خوب پريږدې او الله ته اودريږې.

نو دَ شپې مونځ کوئ چې خلق اوده وي، نو چې دا څلور (٤) کارونه شروع کړئ نو:
«تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ».[1] "تاسو به جنت ته سلامتيا سره دننه شئ".

الله رب العزة دې مونږ ټول جنت ته پهٔ سلامتيا سره بوځي. نو دَ جنت ئې پهٔ دې حديث کښې څلور (٤) غټې غټې نخښې اوښودلې دَ ايمان نه پس: (١) يَو سلام عام کړئ، (٢) دويم: دَ الله دَ رضاء دپاره پهٔ خلقو خوراک، څښاک کول، (٣) دريم: خپلوَلي او رشته داري پالئ او (٤) څلورم: دَ شپې تهجُّد کوئ نو جنت ته به لاړ شئ. عبد الله بن سلام ﷺ فرمائي: چې کله ما دا خبرې واوريدې نو زما پهٔ زړهٔ اثر اوشو.[2]

### پهٔ توراة کښې دَ نبي ﷺ صفت

دَ "بيهقي شريف" روايت کښې راځي: عبد الله بن سلام ﷺ وائي: چې ما پهٔ توراة کښې دَ نبي ﷺ نخښې لوستې وې، توراة کښې دَ الله دَ نبي ﷺ پوره تفصيل وو، نو چې کله ما دَ الله دَ نبي ﷺ مخ اوليدو نو زهٔ پهٔ دې باندې پوهه شوم چې دا هم هغه نبي ﷺ دے چې توراة کښې دَ دهٔ ذکر راغلے دے نو ما باندې دَ هغې نه اثر اوشو.

دا عبد الله بن سلام ﷺ وائي: چې کله نبي ﷺ مديني منوَّرې له تشريف راوړو او ما دَ نبي ﷺ دَ راتلو خبر واوريدو (چې اخلاص چا کښې وي نو الله ورته دين نصيب کړي)، چې کله زهٔ خبر شوم چې مديني ته رسول الله ﷺ را روان دے، وائي: زهٔ دَ کجورې يَو وُنې ته ختلے ووم، کجورې

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2485)، والدارمي في "سننه"، ومن كتاب الاستئذان، باب في إفشاء السلام، برقم: (2674)، واللفظ له.

(2) انظر: "سيرة المصطفٰى": (373/1).

مې را شوکولې او دَ کجورې دَ وُنې پهٔ سر کښې ووم، او هلته نه ما چغه کړه چې: "اللهُ أکبر!!!" دَ ډېرې خوشحالئ نه. وائي: زما پېو (ترور) وه خالده بنت حارث ﷺ (دا بیا روستو مسلمانه شوې ده)، وائي: دې واورېدو نو دې ما له آواز را کړو: چې اے حُصینه! (هغه وخت دَ دهٔ نوم حُصین وو) تهٔ خو نن دَ دې سړي پهٔ دې راتلو دومره خوشحاله شوې چې زما دې پهٔ خدائے قسم وي چې کهٔ تا له چا دَ موسٰی علیه السلام باره کښې خبر راوړے وو چې هغهٔ راغے نو دومره به نهٔ وې خوشحاله شوې، لکه څومره چې تهٔ نن دَ رسول الله ﷺ پهٔ راتلو خوشحاله شوې. وائي: ما ورته اووئیل: چې بالکل پېو (ترور) ستا خبره صحیح ده خو زما دې پهٔ الله قسم وي! چې دا محمد او موسٰی علیه السلام دواړه دیني رونړه دي او دې دواړو یَو دین دنیا ته راوړے دے، دَ دواړو دین یَو دے، نو زهٔ منم چې دا حق نبي دے نو ځکه خوشحاله شوم. وائي: دَ هلته نه نیغ لاړم او دَ الله نبي ﷺ ته مې اووئیل: چې ما ته کلمه وایه.

بعضې روایاتو کښې راځي: څهٔ تپوسونه ئې دَ رسول الله ﷺ نه کړي دي، چې دَ هغې جوابونه نبي ﷺ ورکړل، دهٔ له پته وه چې دا جوابونه بغیر دَ نبي ﷺ نه بل څوک نهٔ شي ورکولے.

**دَ نبي ﷺ دَ یهودو نه دَ عبد الله بن سلام ﷺ باره کښې تپوس**

عبد الله بن سلام ﷺ ډېر اوښیار سړے وو، نبي ﷺ ته ئې اووئیل: زهٔ ایمان راوړم خو دا یهود پهٔ دې بدنامه کښې ډېر تکړه دي، چې سړے بدنام کړي (دا دَ بعضې خلقو کار وي چې پاک خلق به داسې بد نام کړي چې تهٔ به حیران شې. نو یهود پهٔ دې کښې ډېر تکړه دي چې نیکان خلق بدناموي، چې کوم دَ دوي دَ مزاج نه خلاف وي هغهٔ پسې به دَ ځان نه دروغ جوړوي). وائي: کهٔ زهٔ ایمان راوړم نو دا یهود به بیا وائي: چې دے مونږ له دَ پخوا نه معلوم وو چې دے خراب وو، او دے ناکاره وو، نو هسې به را پسې قیصې جوړوي نو زهٔ دننه پټیږم او صرف زما دَ دې ایمان دَ ظاهرېدو نه مخکښې به زما پهٔ باره کښې دَ دې یهودو نه تپوس کوې چې دوي څهٔ وائي؟ دا ئې مطلب وو: چې دَ الله نبي ﷺ تا ته پته اولګي چې دوي ما باندې دَ ایمان راوړو نه پس کوم الزامونه لګوي، کومې خبرې کوي چې دا نور څهٔ نهٔ دي، صرف بُغض او حسد پهٔ مخه اغستي دي. یعني پهٔ

دې خُلۀ اول صفت کوه او چې اوس هغۀ ایمان راوړو نو اوس وریسې ردّې بدې وایه. نبي ﷺ ورته اووئیل: ډیره ښۀ ده. دے دننه پټ شو، نبي ﷺ یهود را اوغوښتل ورته وائي:

«أَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ فِيكُمْ؟».

"اے یهودو! تاسو کښې عبد الله بن سلام څنګه سړے دے؟" ښۀ سړے دے او کۀ ناکاره دے؟ نو هغه یهودیان ورته وائي: "خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا، وَسَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا".

"هغه خو پۀ مونږ کښې ډیر بهتر سړے دے (دَ هغۀ پۀ شان سړے زمونږ پۀ دې خاندان او زمونږ پۀ دې قوم کښې نشته)، دَ هغۀ پلار هم ډیر ښۀ سړے وو، او هغۀ زمونږ دَ ټولو سردار دے، مشر دے، او دَ هغۀ پلار هم زمونږ دَ ټولو مشر وو (هیڅ عیب پکښې نشته دے)".

نبي ﷺ ورته وائي: کۀ عبد الله بن سلام ایمان راوړي نو تاسو به ایمان راوړئ؟ دوي اووئیل: چې توبه! عبد الله بن سلام او ایمان راوړل، الله دې هغۀ ستا دَ ایمان راوړو نه محفوظ اوساتي، وائي: هغۀ به ولې پۀ تا ایمان راوړي؟ نبي ﷺ ورته بیا دغه خبره اوکړه، هغوي بیا هم دغه شان جواب ورکړو. عبد الله بن سلام ﷺ دننه پټ ناست وو نو بهر میدان ته را اووتو، وائي:

"أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ".

یهود پۀ هغې میدان کښې حیران پاتې شول، عبد الله بن سلام ﷺ کلمه توحید، کلمه شهادت اووئیله، پۀ رسول الله ﷺ ئې ایمان راوړو. نو چې یهودو اوکتل (نو پۀ بدنامه کښې خومره مخکښې وو، ګوره! هم هغه ځائے دے، هم هغه میدان دے، او بیا ئې ډارک زرۀ بدلیږي) وائي:

"شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا، وَانْتَقَصُوهُ".

"دا پۀ مونږ کښې ډیر ناکاره سړے وو، او دَ دۀ هغه پلار دَ دۀ نه سبوا ناکاره وو، بیا وریسې اولګیدل نو هغه الزامونه او ردې بدې ئې وریسې شروع کړې چې څۀ ئې پۀ خُلۀ باندې راتلل".

عبد الله بن سلام ﷺ اووئیل:

"فَهَذَا الَّذِي كُنْتُ أَخَافُ يَا رَسُولَ اللهِ!".[1]

(1) أخرجه البخاري كتاب تفسير القرآن، بَابُ ﴿مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ﴾ [البقرة: 97]، برقم: (4480)، وأيضا بـ (3938).

"نو دا هغه دي چې زهٔ دَ دې نه يرېدم اے دَ الله رسوله!"، چې کله ايمان راوړم نو دوي پهٔ ما باندې دَ دروغو الزامونه لګوي خو ځه! شکر دے چې پهٔ دې خُلهٔ ئې يَو ځل زما صفتونه کړي دي، اوس دې لګيا وي، اوس به ئې ټوله دنيا پيژني چې دا دَ ضد نه لګيا دي.

## دَ سلمان فارسي ﷺ ايمان راوړل

داسې ډير خلق به راتلل او پهٔ رسول الله ﷺ به ئې ايمان راوړو، پهٔ دې دوران کښې سلمان فارسي ﷺ هم راغلے وو، او پهٔ رسول الله ﷺ ئې ايمان راوړے وو، دَ دهٔ واقعه څهٔ ډيره عجيبه ده.

سلمان فارسي ﷺ اصل کښې دَ فارس علاقې وو، او علماؤ ليکلي دي: چې سلمان فارسي دا دَ دهٔ نوم دے، او ابو عبد الله دَ دهٔ کنيه ده، او دَ دهٔ لقب دے "سلمان الخير" او دے مشهور پهٔ "سلمان ابن الاسلام" باندې دے؛ ځکه دَ دهٔ پلار خو مجوسي وو، کافر وو، او دَ اُور عبادت به ئې کولو. دے پهٔ فارس کښې وو او دے دَ شاهي خاندان نه وو، پلار ئې چرته ډير اوچت سړے وو پهٔ حکومت کښې، دَ بادشاهانو دَ خاندان نه وو. دے پهٔ فارس کښې رام هرمز کښې يَو ځائې دے "جَيْئ" دَ هغې اوسيدونکے دے.

وائي: دَ سلمان ﷺ نه به چې چا تپوس اوکړو: چې ستا دَ پلار څهٔ نوم دے؟ او ستا نوم څهٔ دے؟ نو هغهٔ به ورته وئيل:

"أَنَا سَلْمَانُ ابْنُ الْإِسْلَامِ".[1]

"زما نوم دے سلمان، او زما پلار هغه اسلام دے (يعني: ما له خپل پلار تربيت نهٔ دے کړے، تربيت زما اسلام کړے دے)".

او دَ دهٔ پهٔ باره کښې دا مشهوره ده: چې پهٔ صحابوٴ ﷺ کښې دَ دهٔ هومره عمر دَ بل چا نهٔ وو، دا دَ ډير عمر سړے وو. بعضې علماء وائي: دَ دهٔ مُلاقات دَ عيسٰی عليه السلام سره شوے وو. خو دا خبره ضعيفه ده؛ دَ عيسٰی عليه السلام پهٔ رعيت او دَ هغهٔ پهٔ ملګرو کښې دَ يَو کس سره ملاقات شوے دے. څوک وائي: دَ دهٔ يَو نيم سل (۱۵۰) کاله عمر وو او څوک وائي: درې نيم سوه (۳۵۰) سوه کاله عمر ئې وو.

(1) انظر: "إمتاع الإسماع" لأحمد بن علي بن عبد القادر، أبي العباس الحسيني العبيدي، تقي الدين المقريزي: (338/6).

ابن عباس ﷺ وائي: سلمان فارسي ﷺ ما ته خپله واقعه پهٔ خپله بیان کړې وه (چې څومره درد وو دَ دهٔ پهٔ دې زړهٔ کښې!):

سلمان فارسي ﷺ وائي: زهٔ پهٔ فارس کښې دَ جَیْئ علاقې ووم، زما پلار دَ هغې علاقې لوئي سردار او لوئي سړے وو. مونږ پهٔ خپل ځائے کښې یَو آتش کده (دَ اُور بلولو ځائے) جوړه کړې وه. دا پهٔ اصل کښې مجوسیان وو، دوي به دَ اُور عبادت کولو. او دا اُور به ئې داسې بلولو چې هغوي به وئیل: چې دا اُور مړ شي نو دا نقصان دے، شپه او ورځ به اُور بل وو، او هغې ته به ئې سجدې کولې. دے وائي: چې څومره زمانه تیره وه چې زمونږ پهٔ هغې آتش کده کښې اُور مړ شوے نهٔ وو، یا به ورته زهٔ ناست اوم یا به مې ورتهِ پلار ناست وو یا به ورته بل کس ناست وو او مونږ به دا اُور بلولو، مونږ به دا اُوړ بلولو چې دا مړ نهٔ شي؛ ځکه دا زمونږ اِلٰه دے. نو چې دا مړ شي نو مونږ به مدد دَ چا نه غواړو؟ داسې ناپوهه خلق وو!. وائي: زهٔ به پلار بهر نهٔ پریخودم. او هسې هم دا مالداره خلق چې وي دوي پهٔ بچو ډیر مئین وي او خرچې پرې هم ډیرې کوي، نو وائي: پلار به را باندې خرچه هم ډیره کوله، خیال به ئې هم را ته ډیر ساتلو، وائي: زهٔ به ناست ووم او آتش کده کښې به مې اُور بلولو.

سلمان فارسي ﷺ وائي: یَو ځل زهٔ خپل پلار څهٔ کار پسې اولیږلم، نو وائي: ما داسې کار اوکړو: چې پهٔ لار تیریدم نو پهٔ لار کښې ما دَ عیسٰی علیه السلام دَ مذهب یَو راهب اولیدو، یَو الله والا سړے مې اولیدو چې هغهٔ دَ خپل ربّ عبادت کولو، او ناست وو. وائي: زهٔ چې دَ هغهٔ خوا ته ورغلم، ما دَ هغهٔ سره خبرې اترې اوکړې نو دَ هغهٔ دَ هغه خبرو اترو پهٔ ما باندې اثر اوشو. وائي: زما زړهٔ کښې الله راوستل چې زمونږ دَ اُور دا عبادت دا دین غلط دے او دَ دوي دا دین زمونږ دَ دین نه صحیح دے. وائي: ما دَ هغهٔ سره ځان ملګرے کړو، او دَ هغې راهب سره مې تعلق جوړ کړو، وائي: پلار پهٔ ما باندې پوهه شو، زهٔ ئې ډیر اووهلم او ما له ئې ډیرې سزاګانې را کړې، تر دې پورې چې ما له ئې لاسونو او خپو له ځنزیرونه واچول چې دے دَ کور نه بهر اونهٔ وځي.

سلمان فارسي ﷺ وائي: خلق به تلل راتلل، ما به حالات معلومول، وائي: ما دَ دغې راهب نه تپوس اوکړو چې ما له یَو داسې حق پرست عالم اوښایه چې زهٔ لاړ شم او دَ هغهٔ نه دین زده کړم؟ پهٔ

دين دومره مئين ووا. وائي: هغهٔ ما ته اووئيل: چې شام له به ځې، او هلته کښې عيسايان دي، ډير غټ غټ عالمان دي، پادريان دي، دَ هغوي نه به دين زده کوې. وائي: ما وئيل: چې شام خو ما ليدلے هم نهٔ دے، بهر هم نهٔ يم وتلے.

وائي: پټ پټ به مې معلومات کول چې کله ما ته پته اولګيده چې قافله شام ته ځي نو ما زر زر هغه زنځيرونه اوشلول او منډه مې کړه، او دَ هغوي سره شام ته لاړم. دَ کور نه شام ته لاړم. نو په شام کښې مې معلومات کول چې لوئي عالم به چرته وي چې زهٔ هغهٔ سره لاړشم او دَ هغهٔ نه زهٔ دَ عيسٰي ﷺ دا دين زده کړم؟، ځکه دا ما ته صحيح ښکاري. وائي: يَو عالم راته چا اوښودلو، زهٔ لاړم، زهٔ پهٔ يَو ډير شوق او جذبه تلے ووم خو ما چې هغه مُلا ته کتل نو دَ هغهٔ هغه کردار ما ته ښهٔ ښکاره نهٔ شو، ولې؟؛ چې هغهٔ به خلقو ته خبره يَو شان کوله او عمل به ئې بل شان وو. خلقو به ورله پيسې راوړې، چندې به ئې راوړې نو هغه به ئې ځان له لګولې، جومات او مدرسه کښې به ئې نهٔ لګولې، او چې دَ کوم څيز چې به ئې نورو ته وئيل: چې دا نا روا دے، هغه به ئې پهٔ خپله باندې کولو، زهٔ پرې پوهه شوم چې دا سړے وائي يَو څهٔ او کوي بل څهٔ؟ نو ما باندې دَ هغهٔ نه څهٔ اثر اونهٔ شو. وائي: ما اووئيل: چې دا څنګه دين دے چې خلقو ته يَو څهٔ وائي او کوي بل څهٔ؟ وائي: دے مړ شو. چې کله دا راهب مړ شو نو هغې خلقو پهٔ زړهٔ کښې وئيل: چې زمونږ ډير لوئي عالم مړ دے!. وائي: ما ورته هغه ټول حقيقت ښکاره کړو، نو وائي: دَ هغه خلقو ترې هم نفرت پيدا شو. وائي: هغوي پهٔ ځائے دَ دې چې دَ هغهٔ قدر او عزت اوکړي نو هغهٔ ئې پهٔ مړوني را زوړند کړو او پانسي ئې کړو، پهٔ دهٔ خو زمونږ ډير غټ اعتماد وو، دے داسې سړے ووا.

سلمان فارسي ؓ وائي: دَ دغې راهب دَ مرګ نه بعد بيا ما معلومات کول: چې ما ته يَو داسې سړے اوښايئ چې زهٔ دَ هغهٔ نه دين زده کړم. وائي: بل عالم راته چا اوښودلو چې دَ هغهٔ خوا ته لاړشه (يا دغې خلقو دَ هغهٔ مخکښې راهب پهٔ ځائے باندې بل عالم مشر کړو). نو وائي: زهٔ دَ هغهٔ خوا ته راغلم او دَ هغهٔ مريدي مې شروع کړه، وائي: هغه سړے چې ما اوليدو نو هغه ډير نا آشنا وو، ډير الله والا سړے وو، او ډير الله والا انسان وو او پهٔ دين باندې ډير مئين وو. وائي: ما دَ هغهٔ نه ډيرې

مسئلې زده کړې. دَ هغهٔ نه پهٔ ما باندې پوره اثر اوشو بس زهٔ دَ هغهٔ خادم شوم (شاهي سړے دَ يَو عام سړي خدمت کوي!!!). خدمتونه مې کول کول... وائي: چې کله هغه وفات کيدو نو دهٔ له الله ډير اوږد عمر ورکړے وو، ډير استاذان او ډير ملګري ئې تير شوي وو نو وائي: ما ورته اووئيل: چې يره جي! تاسو خو مړ کيږئ خو تاسو راته اوښايئ چې کوم يَو سړے به صحيح وي چې زهٔ لاړ شم او دَ هغهٔ سره پاتې شم؟ هغهٔ ما ته اووئيل: چې فلانکي کلي ته به لاړ شې او هلته کښې زمونږ عيسايانو کښې فلانکے مُلا صحيح دے، دَ هغهٔ نه به دين زده کړې، هغهٔ له لاړ شه.

سلمان فارسي ﷺ وائي: چې دا راهب وفات شو نو دهٔ چې ما ته کوم عالم ښودلے وو نو هغه له لاړم. دَ هغهٔ سره به اووم، دَ هغه نه مې هم دَ دين خبرې زده کولې، او خدمت به مې کولو. نو چې کله هغهٔ وفات کيدو نو ما ورته اووئيل: چې اوس را ته تهٔ اوښايه! چې چا ته لاړ شم؟ هغهٔ به را ته بل اوښودو...

وائي: آخري له چې راغلم او دَ هغهٔ خدمتونه مې کول... نو چې کله هغه وفات کيدو نو ما ورته اووئيل: چې ما ته اوس داسې ځائے اوښايه چې ستا نه بعد زهٔ بيا دَ هغهٔ نه دين زده کوم؟ وائي: ما ته ئې اووئيل: چې اوس پهٔ عيسايانو کښې څوک صحيح پاتې شوے نهٔ دے؛ ځکه ټول خلق خراب دي، مُليان ئې خراب دي، عوام ئې خراب دي. وائي: ما ورته اووئيل: چې زهٔ څهٔ اوکړم ما خو کلے پريخودے دے، وطن مې پريخودے دے، مور پلار مې پريخودي دي دَ دې دين دپاره؟ وائي: ما ته ئې اووئيل: چې زهٔ درته يَو خبره کوم، پهٔ دې توراة کښې مونږ لولو، هغه آخري پيغمبر محمد رسول الله (ﷺ) دَ هغهٔ وخت رانزدې شوے دے نو تهٔ پهٔ دې انتظار اوسيږه چې کله هغه راغے نو بيا انتظار اونهٔ کړې دَ هغهٔ خوا ته به ځان اورسَوې، او پهٔ هغهٔ باندې به ايمان راوړې، دا آخري پيغمبر ﷺ به حق او سچ پيغمبر وي. وائي: ما دَ هغې خپل پير او استاذ خبره اومنله او پهٔ دماغو کښې مې دا سوچ دے چې زهٔ به مدينې له ځان رسوم او مدينه به دَ هغهٔ دار الهجرة وي.

**دَ سلمان فارسي ﷺ مدينې ته تلل**

سلمان فارسي ﷺ وائي: ما مدينه چرته ليدلې وه، ما ته پته هم نهٔ وه چې مدينه پهٔ کوم ځائے

کښېنې ده؟ زۀ خو شام کښېنې اووم. وائي: ځان له مې څۀ څاروي، غوان، کډې او بيزې پيدا کړل، پۀ هغې مې خپل ژوند تيرولو او دَ الله دَ نبي ﷺ تپوس به مې کولو. پۀ دې کښې يَو قافله دَ يهوديانو مدينې ته تله نو وائي: ما دَ هغوي نه تپوس اوکړو: چې زۀ مدينې له څم؟ وائي: هغوي راته اووئيل: چې مونږ سره به لاړشې کنه!، وائي: هغه دومره بد بخته خلق وو چې زۀ ورسره پۀ لاره روان شوم نو زما نه ئې هغه ټول څاروي هم واغستل او زۀ ئې اوتړلم او خلقو ته ئې اووئيل: چې دا زمونږ غلام دے او پۀ پيسو ئې خرڅوؤ. سلمان فارسي ﷺ ته خو عربي هم سمه نۀ ورتله نو هغه غريب څۀ وئيلے شو، وائي: زۀ ئې خرڅ کړم پۀ بل سړي باندې او هغوي را نه لاړل او هغه څاروي ئې را نه هم بوتلل. نو چې کله ئې را نه څاروي بوتلل نو زۀ دغه شان پاتې شوم. وائي: ما اووئيل: چې زۀ روان چرته يم او کيږي څۀ؟ خو ځه! الله به خير کړي.

دَ "صحيح البخاري" زوايت کښې راځي: سلمان فارسي ﷺ وائي: زۀ تقريبًا لس (١٠) کرتې خرڅ شوے يم، يَو به پۀ يَو خرڅ کړم او بل به پۀ بل خرڅ کړم، بل به پۀ بل خرڅ کړم. داسې يَو سلسله شروع وه، آخري سړي چې زۀ واغستم نو هغه دَ مدينې يَو يهودي وو، نو هغه زۀ مدينې ته راوستم. ګوره! پۀ کوم چل مدينې ته راغے؟ وائي: چې زۀ مدينې منوّرې ته راغلم او ما چې مدينه اوليده او ما چې دَ خپل استاذ نه کوم تعريف اوريدلے وو نو زۀ پوهه شوم چې دا مدينه ده، او هغه پۀ خپله وائي:

"حَتَّى قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ، فَوَ اللهِ مَا هُوَ إِلاَّ أَنْ رَأَيْتُهَا، فَعَرَفْتُهَا بِصِفَةِ صَاحِبِيْ وَأَيْقَنْتُ أَنَّهَا هِيَ الْبَلَدَةُ الَّتِيْ وُصِفَتْ لِي". [1]

"کله چې زۀ مدينې ته راغلم او ما مدينه اوکتله نو زۀ پوهه شوم چې زما استاذ ما ته کومې نخښې ښودلې وې هغه هم دا دي، ما ته ئې وئيلي وو: چې دَ کجورو علاقه به وي، دَ کجورو وُنې به پکښې ډيرې وي او آب هواء به ئې داسې وي". نو هغه ټولې نخښې پۀ مدينه کښې وې.

نو وائي: زۀ پوهه شوم چې هغه مدينه هم دا ده. اوس پيغمبر ﷺ به چرته ګورم او چې راغلے

(1) انظر: "سيرة المصطفى": (378/1)، وفي طبع: مكتبة عمر فاروق مخرّجا: (325/1).

دے او کۀ نۀ دے؟ وائي: زۀ مديني ته راغلم خو رسول الله ﷺ لا مديني له نۀ وو راغلے. وائي: زۀ دَ هغې يهودي غلام ووم، زۀ ئې بوتلے اووم. ما به دَ دغه يهودي سره باغ کښې کار کولو. يَو ورځ زۀ وُنې ته ختلے ووم او کجورې راشوکوم، يا پۀ هغې کښې څۀ کار کوم، وائي: پۀ دې کښې يَو کس راغے او زما دَ هغې مالک چې زۀ ئې پۀ چا خرڅ کړے اُووم دَ هغۀ دَ ترۀ ځوي راغے او زما هغه مالک ته وائي: چې فلانکيه! تۀ خبر نۀ ئې؟ وائي: هغۀ ورته اووئيل: چې ولې؟ وائي: دې مديني له بنو قيلوؤ کښې يَو سړے دَ مکې نه راغلے دے او هغۀ وائي: چې زۀ پيغمبر يم. او دا خلق ډلې ډلې ورِ روان دي او پۀ هغۀ ايمان راوړي. سلمان فارسي ﷺ وائي: چې دا مې واوريدل نو زۀ پوهه شوم چې رسول الله ﷺ مديني ته راغلے دے. سلمان فارسي ﷺ وائي:

«فَلَمَّا سَمِعْتُهَا أَخَذَتْنِي الْعُرَوَاءُ، حَتَّى ظَنَنْتُ سَأَسْقُطُ عَلَى سَيِّدِي».(1)

"نو کله چې ما دا خبره واوريده نو دَ ډيرې خوشحالۍ نه پۀ دې وُنه کښې ما باندې ريګ زيدے اولګيدو، بدن مې ريکزي (او وائي: چې اوس راټوپ کړم او کۀ راکوز شم؟)، وائي: قريب اُووم چې دَ بره نه زۀ پۀ خپل مالک باندې راغورځيدلے وے". وائي: زۀ پوهه شوے نۀ يم چې پۀ کومه طريقه باندې زۀ دَ هغې وُنې نه راکوز شوے يم؟

وائي: چې کله زۀ دَ وُنې نه راکوز شوم نو زۀ هغې کس ته رانزدې شوم اوما ورته اووئيل: چې دا څوک راغلے دے؟ او څۀ قصه ده؟ اوس نه چل معلوموم، لاره معلوموم، ځائے معلوموم، وائي: زما هغه آقا چې هغه پۀ ما پوهه شو چې هسې نه چې دے چرته لاړشي او ايمان پرې راوړي، وائي: ما پسې راغے او يَو ډيره ناکاره سپيړه ئې را له راکړه او ما ته وائي: چې ستا دَ دۀ سره څۀ کار دے؟ څه! شابه! وُنې ته خيژه، وائي: بيا ئې را باندې هغه کار شروع کړو او زۀ ئې پرې نۀ بنودم. وائي: ما تر ماښامه پورې دَ خپل مالک کار اوکړو.

سلمان فارسي ﷺ وائي: چې ماښام شو نو دا سوچ مې کولو چې زۀ به نن ځم او دا سړے به وينم، ما ته زما هغې استاذ او پير وئيلي وو: چې دَ دۀ نخښه به دا وه: چې دَ هغۀ دَ دوارو اوګو پۀ

---

(1) أخرجه أحمد في "مسنده"، أحاديث رجال من أصحاب النبي ﷺ، حديث سلمان الفارسي ﷺ، برقم: (23737).

مینځ کښې به مهر وي او چې صدقه ورله ورکړې نو نۀ به ئې اخلې او چې هدیه او تحفه ورله ورکړې نو هغه به اخلې. سلمان فارسي ﷜ وائي: دَ ځان سره مې لږې کجورې واغستې. وائي: ما ورته اووئیل: چې جي! دا صدقه مې راوړې ده، دا واخلئ، وائي: نبي ﷺ اووئیل: چې زۀ خو صدقه نۀ اخلم، ذې نورو ته ئې ورکړه، صحابۀ ﷡ ته ئې اووئیل: چې دا واخلئ!. نو دَ دې نه ما اومنل چې صدقه ئې خو وانۀ غسته.

وائي: چې سحر شو نو بله ورځ باندې بیا راغلم، دَ ځان سره مې نورې کجورې راوړې، وائي: ما ورته اووئیل: چې دَ الله نبي! دا مې تاسو له تحفه راوړې ده، دا قبوله کړئ!. وائي: نبي ﷺ اووئیل: چې راکړئ، تحفه ئې واغسته، قبوله ئې کړه. وائي: پۀ دې کښې زۀ را تاؤ شوم نو ما دَ نبي ﷺ شاه مبارکه اوکتله (دا هغه دَ قباء واقعه ده، نبي ﷺ مدینې ته لا نۀ وو راغلے) نو پۀ هغې کښې هغه مهر هم لګیدلے وو کوم چې ما ته زما استاذ وئیلي وو چې دَ نبوّت او دَ پیغمبرئ مهر وو. هغه درې واړه نخښې ما پۀ رسول الله ﷺ کښې اولیدې، چې صدقه ئې وانۀ غسته او تحفه او هدیه ئې واغسته او دَ اوګو پۀ مینځ کښې ئې هغه مهر هم وو.

مدینې ته چې کله دَ الله پیغمبر ﷺ راغلے نو سلمان فارسي ﷜ وائي: زۀ هم راغلم او ما پۀ نبي ﷺ باندې ایمان راوړو، ما ورته اووئیل: چې ما ته کلمه اووایه. نو چې ایمان مې راوړو نو اوس دلته خو دے غلام دے، توله ورځ به ئې دَ مالک کارونه کول. یَو ورځ خفه دے، نبي ﷺ ورته وائي: چې ولې؟ وائي: مالک مې نۀ پریږدي، او ما ته وائي: چې زما کار نۀ.کوې نو داسې اوکړه: چې څلویښت (٤٠) اَوْقِیَه سرۀ زر به ما له راکړې او ما له به درې سوه (٣٠٠) دَ کجورو وُنې اوکرې او چې کله هغې میوې اونیولې نو تۀ به آزاد ئې دَ غلامئ نه. نو ما سره مکاتبت اوکړه، مکاتبت به دا وي: چې تۀ به ما سره مزدوري کوې څلویښت (٤٠) اَوْقِیَه سرۀ زر به ما له برابروې، او درې سوه دَ کجورو وُنې به کرې او هغې چې کله میوه اونیوله نو ته به آزاد ئې. کجوره خو ډیره پۀ قلاره باندې میوه نیسي. سلمان ﷜ پریشانه دے چې دا به څۀ کیږي؟ نبي ﷺ ورته وائي: سلمانه! پریشانه کیږه

مهٔ، اوبه شي. نبي ﷺ اعلان اوکړو: هلکه! دَ سلمان سره لږ تعاوُن اوکړئ، څوک لا رِل لس (۱۰) وُنې ئې راوړې، څوک شل (۲۰) راوړي، څوک پنځوس (۵۰) راوړي، درې سوه ونې ئې پهٔ يَو ورځ کښې برابر کړې. سلمان ﷺ ته نبي ﷺ وائي: سلمانه! تهٔ لا رِشه او دَ دې وُنو دپاره کندې برابر کړه، دَ کجورو وُنو دپاره کندې کښنه. سلمان فارسي ﷺ راغے لوئي ميدان دے، پهٔ هغې کښې لګيا دے، کندې جوړَوي. نبي ﷺ ورته اووئيل: چې کله کندې برابر کړې نو بيا ما ته اووايه. نبي ﷺ راغے سلمان ﷺ او نورو صحابۇ ﷺ ته وائي: چې وُنې کرئ. يَو وُنه پکښې رسول الله ﷺ اوکرله، وائي: يَو وُنه پکښې زهٔ هم کرم. چې کله نبي ﷺ پهٔ لاس کښې وُنه واغستله او اوئې کرله (دا معجزه وه دَ رسول الله ﷺ) نو هغه درې سوه (۳۰۰) وُنې الله اولګولې يَو هم پکښې خطا نهٔ شوه. کنې کجورې خو ډيره پهٔ کرانه لګي. او پهٔ کال کښې دننه ورې ورې کجورې وې الله غټې کړې او ميوې ئې اونيولې. هغهٔ خو ورته وئيلي وو: چې کله ميوې اونيسي نو هله به تهٔ آزاد ئې.

خو سلمان فارسي ﷺ لا پريشانه وو؛ چې دَ کجورو کار خو الله برابر کړو خو څلويښت (۴۰) اَوْقِيه سرهٔ زر خو ځان له څهٔ وائي، نو دا سونا به زهٔ دَ کوم ځائے نه برابروم؟ نبي ﷺ اووئيل: چې الله به خير کړي، پهٔ دې کښې يَو کس راغے نبي ﷺ له ئې دَ چرګې دَ اګئ هومره سونا راوړه، داسې غونډه غونډې سونا وه، نبي ﷺ ته ئې ورکړه: چې دا خيرات کړه، چې چا له ئې ورکوې نو هغوي له ئې ورکړه. نبي ﷺ اووئيل: ورشئ! سلمان اوګورئ. سلمان فارسي ﷺ ئې را اوغوښتو، ورته ئې اووئيل: چې سلمانه! دا واخله، او دا به خپل مالک له ورکړې، او دَ هغهٔ مکاتبت نه به تهٔ آزاد شې، ستا غلامي به ختمه شي. سلمان ﷺ وائي: ما چې هغې سونې ته کتل نو دَ څلويښت (۴۰) اَوْقِيَه خو ډير وزن دے، وائي: ما ورته اووئيل: چې يا رسول الله! دا نهٔ برابريږي، دا لږه ده؟ وائي: ما ته ئې اووئيل: چې تهٔ ئې واخله، تهٔ څهٔ کوې، تهٔ ئې ناپ کړه، پته به اولګي. سلمان فارسي ﷺ وائي: چې کله ما يوړه او ما پهٔ زرګر اوتلله نو هغه هم هغه څلويښت (۴۰) اَوْقِيه اوختله. بس هغه اوقيې مې ورله ورکړې او دَ هغهٔ دَ غلامۍ نه الله رب العزة خلاص کړم. سلمان ﷺ دَ فارس نه راغلے وو او

دۀ پۀ نبي ﷺ باندې مدينه کښې ايمان راوړے وو.

**دَ غزوه خندق باره کښې دَ سلمان فارسي ﷜ مشوره**

سلمان فارسي ﷜ پۀ صحابۇ ﷢ کښې دَ ډير عمر خاوند دے، او چې کله غزوه خندق وو نو نبي ﷺ دَ صحابۇ ﷢ نه مشوره اغستله، چې څۀ اوکړو کافرانو اتفاق کړے دے؟ سلمان فارسي ﷜ دَ خندق مشوره ورکړې وه، وائي: يا رسول الله! داسې به اوکړو: چې زمونږ پۀ کلي او علاقه کښې به چې کله دشمن زورَور وو او زمونږ به وس نۀ کيدو نو مونږ به خندقونه کنستل... پخواني جنګونه خو به دَ تورو او دَ نيزو او دَ غشو جنګونه وو، ټوپکې چرته وې، ټينکونه چرته وو او بمبارونه چرته وو، دا څيزونه خو نۀ وو. وائي: دومره کهولاؤ خندق به اوکښنوو چې دَ هغې نه يَو سړے پورې کيدے هم نۀ شي او چې وَرکوز شي ورته نو بيا ترې راختے هم نۀ شي، او اسْ ترې ټوپ هم نۀ شي وهلے، نو دَ ټولې مدينې نه به ګير چاپيره خندق اوکښنو او دَ خندق پۀ غاړه به ورته مونږ ولاړ يُو چې کوم کافر ورکوز شو نو هغه خو ايله مونږ ته آسانيږي، پۀ سر به ئې وهو خلاصيږو به ترې، چې هغه راخيژي نو مونږ به دَ هغۀ فيصله کړې وي او چې نۀ راکوزيږي نو هلته به ولاړ وي، مونږ باندې به حمله نۀ شي کولے. دا خندق دَ سلمان فارسي ﷜ پۀ مشوره باندې دَ ټولې مدينې نه ګير چاپيره کنستلے شوے وو.

نو خبره مې دا کوله چې: نبي ﷺ ته به ډلې ډلې خلق راتلل او پۀ نبي ﷺ باندې به ئې ايمان راوړو. باقي سيرت چې نبي ﷺ ابتدائي کوم کوم کارونه کړي دي؟ نو ان شاء الله دَ هغې به بله جُمعه کښې تذکره راځي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه ثليريشتمه

## "دَ مسجدِ نبوي تعمير"

بتاريخ: 2022-08-19

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه څليريشتمه

## "دَ مسجد نبوي تعمير"

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! دَ رسول الله ﷺ سيرتِ مباركه شروع وو، دَ مکې حالات بيان شوي وو، مديني ته دَ راتلو دَ هجرت هنه واقعه بيان شوې وه، بيا رسول الله ﷺ قباء کښې وو، دَ هغې تفصيل موثر بيان کړے وو، دَ هغې دَ جومات دَ تعمير ذکر اوشو، دَ هغې نه بعد رسول الله ﷺ مديني منورې ته راغے، په مدينه منوره کښې دَ ابو ايوب انصاري ﷺ په کور کښې نبي ﷺ اوسيدو، ډلې ډلې خلق به دَ نبي ﷺ ملاقات له راتلل او په اسلام به مشرّف کيدل.

### په مدينه منوّره کښې دَ نبي ﷺ اول کار

په مدينه منوّره کښې چې اول کار نبي ﷺ کوم شروع کړے وو نو څنګه چې قباء کښې نبي ﷺ اول دَ جومات فکر کولو نو چې مديني ته راغے نو په مدينه کښې هم رسول الله ﷺ اولنے کار دَ جومات دَ تعمير سوچ او فکر وو. ما ويلي وو: چې نبي ﷺ کله مديني منورې ته راتلو نو دَ هر

(1) [سورة الأحزاب: 21].

سرې دا آرمان وو: چې نبي ﷺ زما سره راشي او زما په کور کښې پاتې شي نو دا به ډېره دَ خوشحالئ خبره وي. خو رسول الله ﷺ داسې نهٔ کول چې يَو کس سره تلے وے او نور ئې پرېخودے وے، نبي ﷺ اووئيل: چې دا اوښه به پرېږدئ، دَ دې پړے او مُهار به نهٔ نيسئ، چې کوم ځائے کښې دا کېښناسته هغه به زما ځائے وي. تو اوښه پهٔ اول ځل يَو ځائے کښې کېښناسته او بيا دَ هغې ځائے نه پاسېده او بيا دَ ابو ايوب انصاري ﷺ دَ کور مخې له کېښناسته. نبي ﷺ ابو ايوب انصاري ﷺ ته اووئيل: چې دا سامان کور ته اوچلَوه. هغهٔ سامان کور ته اوچلولو او هغې کور کښې دَ الله نبي ﷺ پاتې کېدو. نو پهٔ اول ځل چې دا اوښه پهٔ کوم ځائے کښې ناسته وه نو پهٔ دغه ځائے کښې نبي ﷺ دَ جومات جوړولو اراده اوکړه: چې دا دَ جومات ځائے شو او دغه ورسره دَ نبي ﷺ دَ اوسېدو ځائے شو. نو نبي ﷺ دَ جومات دپاره دغه ځائے خوښ کړو، دا مدينه منوّره کښې دَ بنو نجّار قبيلې دَ يتيمانانو ماشومانو هلکانو ځائے وو، او دا يَو درمَنْ وو، "مَرْبَد" ورته وائي، دَ کجورو دَ وُچولو ځائے وو، کجورې به ئې پکښې نمر ته اچولې، چې لږې وُچې شي او هغه ډېره نمې ترې نه ختمه شي. نو دَ هغوي درمَنْ غوندې وو، ديوال ترې تاؤ وو، دا کهولاؤ ځائے وو، پهٔ دې کښې دا درمن هم وو او پهٔ دې کښې دَ کجورې وُنې هم ولاړې وې، پهٔ دې کښې پخوا دَ جاهليت پهٔ وخت کښې چرته کافران مړهٔ وو، دَ هغوي قبرونه پکښې هم وو. نبي ﷺ اوفرمائيل: چې دا ځائے دَ دې مونځ دپاره ډېر موزون دے، چې پهٔ دې ځائے کښې جومات جوړ کړو نو دا به ډېره ښهٔ وي. وائي: دا دَ چا دے؟ نو چا ورته اوفرمائيل: چې دا دَ سهل او دَ سهيل دَ هغې ماشومانو دے، چې دا دَ بنو نجّار دَ قبيلې يتيمانان وو. نبي ﷺ هغه ماشومان هم را اوغوښتل او دَ دوي ترهٔ وو چې دَ هغوي يَو قسم وارث وو نو هغه ئې هم را اوغوښتو نو هغوي ته ئې اووئيل: چې کهٔ ستاسو خوښه وي نو دا ځائے پهٔ مونږ باندې خرڅ کړئ!، قيمت را ته خير دے تاسو اولګوئ، چې څومره باندې ئې وايئ، پيسې به درکړو او دلته به مونږ جومات جوړ کړو. هغوي نبي ﷺ ته اووئيل: چې نا! مونږ دا دَ جومات دپاره ورکوؤ، مونږ دَ دې پيسې ستاسو نه نهٔ اخلو، بس مونږه دَ دې عِوض او دَ دې کټه دَ

خپل ربّ نه غواړو. چې الله رب العزة مونږ نه دَ دې په بدله کښې اجر را کړي، او دا به مونږ دَ خپل ربّ دَ رضاء دپاره جومات له ورکړو. چونکه بیا هم ماشومان دي نو ماشومان خو داسې نه چې. هغه وائي: نا!، او تهٔ وائي: چې الله دې اوبخښه! او کار اوشو، نبي ﷺ ورته اووئیل: نا! پیسې به خامخه درکوؤ. ابو بکر صدیق رضی الله عنه ته ئې اووئیل: چې ابو بکر! دَ دې قیمت به دوي له ورکوې، ابو بکر رضی الله عنه په هغه زمانه کښې چې دَ زمکې دومره قیمتونه نهٔ وو، ابو بکر رضی الله عنه لس (۱۰) دیناره دَ هغې دَ جومات قیمت هغې ماشومانو له ورکړو. اګر چې هغوي ډیر وئیل: چې مونږ ئې دَ الله دَ رضاء دپاره درکوؤ، خو دا پیسې ئې ورله ورکړې وې.

**دَ نبي ﷺ حکم کول**

نبي ﷺ دَ هغې نه بعد حکم اوکړو (په هغه ځائے کښې چې کومې دَ کجورو وُنې وې)، وائي: دَا اونړوئ!، ځکه دَ جومات مینځ کښې راتلې، صفونه ئې ورانول. او دَ مشرکینو چې کوم قبرونه وو پخواني نو هغه ئې وران کړل، هموار ئې کړل. چې دَ سلو (۱۰۰) کالو نه کوم قبر واوړي، پخوانے زوړ قبر وي نو هغه بیا هموار کړه، دپاسه کهٔ پرې کور جوړوې او کهٔ دپاسه پرې بیا مونځ کوې چې وقف مقبره نهٔ وي نو کولے ئې شې. یَو خو وقف مقبره ده نو کهٔ سل (۱۰۰) کاله ئې هم اوشي خو بل شے پکښې نهٔ شي جوړولے. او چې وقف نهٔ وي نو چې سل کاله (بعضې پکښې څلویښت کاله یادَوي) ئې تیر شي نو دَ هغې نه بعد کهٔ تهٔ پکښې پټے جوړَوې او کهٔ کور پکښې جوړَوې نو څهٔ مسئله نشته دے؛ هغه هډوکي هم خاورې شوي وي، بیا پکښې څهٔ پاتې وي؟ او چې وقف مقبره نهٔ وي او یَو ځائے کښې جومات جوړَوې او قبرونه پکښې وي نو بیا مسئله دا ده: چې دَ دې نه به دا مړي را اوباسې، دا به مقبره کښې دفن کړې او هغه ځائے هموار کړه، جومات پکښې جوړَوه، خو چې قبر هم پکښې وي او جومات هم وي نو بیا کهٔ قبر مخکښې وي نو جومات جوړول نهٔ دي پکار، او کهٔ جومات مخکښې وي نو بیا پکښې قبرونه جوړول نهٔ دي پکار. پخوا به چې څوک مړهٔ شول نو جومات کښې به ئې خښول نو دا جهالت وو. په جومات کښې به مړي نهٔ خښوې، زمونږ شریعت خو دا وائي: چې تهٔ خو دَ مړې خښول یادَوې....

**دَ امام ابو حنیفه او امام مالک رحمهما الله مذهب**

زمونږ دَ امام ابو حنیفه او دٔ امام مالک رحمهما الله مذهب دا دے: چې جومات کښې دَ مړي جنازه هم مکروه ده. مړے اوشي نو دَ هغهٔ جنازه به جومات کښې نهٔ کوي. هان! کهٔ عذرِ شرعي وي نو بیا خیر دے، لکه باران وریږي او بل ځائے نشته دے نو بیا مجبوري وي، دَ مجبورئ حالت جُدا وي. نو کهٔ دَ مجبورئ حالت نهٔ وي نو جنازه به هم جومات کښې نهٔ کوي. هان! کهٔ داسې وي نو کم از کم چې مړے محراب طرف ته بهر وي نو بیا خیر دے، معنیٰ: دَ جوماتو دَ حدودو نه مړے بهر پروت وي او نور ټول خلق دننه جومات کښې ولاړ وي نو بیا خیر دے، لکه مسجدِ نبوي کښې دَ محراب نه ځان طرف ته یَو ځائے دے هلته مړے راوړي او جنازه پرې اوکړي او وائي: "الصلاة على الميِّت"، او کله "الصلاة على الأموات" وائي، او دې خوا جومات کښې خلق ولاړ وي.

نو بهر حال چې قبر مخکښې نه وي نو بیا به جومات نهٔ جوړوي، او چې جومات دَ مخکښې نه وو نو بیا به پهٔ هغې کښې قبرونه نهٔ جوړوي. او کهٔ وقف مقبره نهٔ وي او جومات دپاره زمکه وقف شوه نو مړے ترې اوباسه او بل ځائے ته ئې یوسه، دا جائز دي. هان! روستو شاه طرف ته قبرونه دي، چې دَ سجدې پهٔ وخت کښې نهٔ وي او شاه ته وي نو وي دي، څهٔ خبره نشته، او کهٔ مخې ته وي خو دیوال ترې تاؤ دے نو بیا هم پروا نهٔ کوي، وي دې خو دَ جومات نه به ئې جُدا کوي، دَ هغې نه به مستقل چار دېوالي اوکړې چې پټ شي.

نو نبي ﷺ حکم اوکړو: چې دا قبرونه هموار کړئ. قبرونه ئې هموار کړل، دغه ځائے ئې هموار کړو. هغې وخت کښې نبي ﷺ صحابؤ رضي الله عنهم ته اووئیل: چې دې له به کچه خښتې جوړوو. دیوال ئې دَ کچه خښتو نه کولو، او دَ کجورو دا وُنې چې وې نو دې کښې ئې دَ څهٔ نه بینچونه (بشونه، تیرونه) جوړ کړل او دَ څهٔ نه ئې ورله ستنې جوړې کړې او دپاسه ئې پرې دَ کجورو لختې واچولې. بس دا جومات وو، پلاستکي هغه وخت کښې چرته وې او سهولتونه دومره چرته وو، دَ کچه خښتو جومات وو. او عجیبه دا ده: چې صحابه کرام رضي الله عنهم هم او نبي ﷺ هم، انصار او مهاجرین ټول پهٔ اتفاق راغلل، څوک دَ جومات دپاره خښتې اوباسي او څوک ئې چلوي، شروع

دي. او په هغې دور کښې کله کله به صحابه کرامو ﷺ دا شعر وئيلو:

هَذَا الْحِمَالُ لاَ حِمَالَ خَيْبَرْ    هَذَا أَبَرُّ رَبَّنَا وَأَطْهَرْ[1]

"مونږ چې کوم بوجونه اوچتوؤ (دَ خختو درانهٔ درانهٔ وزنونه اوچتوؤ) نو دا دَ خيبر دَ کجورو بوجونه نهٔ دي (چې کښې مونږه کجورې راچلوؤ، يا دَ کور دَ کار دپاره څهٔ شے راوړو)، زما دې پهٔ ربّ قسم وي! چې دا ډير نيک او پاک کار دے". دا خو دَ الله دَ کور دپاره يَو خدمت دے.

هغه خلق چې پهٔ ژوند کښې به ئې هم خپل کار نهٔ کولو الله به ورله تياره ورکوله، هغوي به هم راتلل او دَ ثواب پهٔ نيت به ئې جومات کښې کارونه کول. او زمونږ خلق ځان له به ټول عمر کارونه کوي خو دَ جومات کار ته به ئې ډډې نهٔ لګي، دا ورته يَو سپوا کار ښکاري، او کله کله به نبي ﷺ دا شعر هم وئيلو:

اللَّهُمَّ إِنَّ الأَجْرَ أَجْرُ الآخِرَهْ    فَارْحَمِ الأَنْصَارَ، وَالمُهَاجِرَهْ[2]

دنيا کښې خو چې خلق کار کوي نو دَ پيسو طمع کوي چې څوک به پيسې راکوي، مزدوري به راکوي، "يا الله پاکه! يقينًا اجر چې دے (عِوَض چې دے، مزدوري چې ده) نو مزدوري دَ آخرت ده (دَ دنيا څهٔ پيسې وي، څهٔ عوض ئې وي، اجر چې دے اجر دَ آخرت دے)، يا الله! زما دا دعاء ده: چې انصارو او مهاجرينو ټولو باندې رحم اوکړه"؛ ځکه دوي ټول ستا دَ کور پهٔ خدمت کښې لګيا دي.

او کله به ئې دا شعر وئيلو:

اللَّهُمَّ إِنَّهُ لاَ خَيْرَ إِلاَّ خَيْرُ الآخِرَهْ    فَانْصُرِ الأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَهْ[3]

"يا الله! خير نهٔ دے مګر خير دَ آخرت دے (دَ دنيا خير خو کله وي او کله نهٔ وي، نيمګړے وي، الله! کامل او پوره خير چې دے دا خو دَ آخرت دے)، يا الله! دې انصارو او مهاجرينو ټولو سره مدد اوکړې".

چې نبي ﷺ به دا اووئيل نو صحابه کرام ﷺ به نور هم پهٔ جذبه کښې راغلل، او لګيا به

---

(1) انظر: "دلائل النبوة" للبيهقي: (538/2).

(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة: (60/5).

(3) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب مقدم النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3932).

وو، دَ یَو بل نه به ئې ځان مخکښې کولو. دَ مسجد نبوي په خدمت کښې دَ صحابؤ ﷺ په ژبه دا شعر راغے:

لَئِنْ قَعَدْنَا وَالنَّبِيُّ يَعْمَلُ     لَذَاكَ مِنَّا الْعَمَلُ الْمُضَلَّلُ[1]

رسول الله ﷺ نه هم خختې راوړلې نو صحابه کرامو ﷺ به وئيلې: "که مونږ کيښنو او رسول الله ﷺ لګيا وي نو دا خو به ډير ناکاره کار وي"، چې صحابي دې ناست وي او دَ الله نبي ﷺ دې لګيا وي خدمتونه دې کوي. بلکه هغوي نبي ﷺ ته وئيل: تاسو کار مهٔ کوئ، مونږ يُو. نبي ﷺ ورته اووئيل: ولې زما ثواب نهٔ دے پهٔ کار؟ زهٔ به ځان له جنت نهٔ ګټم څهٔ؟ چې تاسو لا وايئ: چې کار مهٔ کوه.

نو هغوي به بيا ځان له پهٔ دې باندې جذبه راوچتوله، کهٔ مونږ کيښناستو او دَ الله نبي ﷺ لګيا وي کار کوي نو دا خو ډير ناکاره کار دے، دا خو بيا هډو څهٔ فائده نهٔ کوي چې دَ الله نبي ﷺ لګيا وي او مونږ ناست يُو. نو هغوي به دَ نبي ﷺ نه هم سهوا زور لګولو.

**دَ سيدنا علي ﷺ شعر وئيل**

سيدنا علي ﷺ به پکښې کله دا شعر اووئيلو:

لَا يَسْتَوِي مَنْ يَعْمُرُ الْمَسَاجِدَا     يَدْأَبُ فِيهِ قَائِمًا وَقَاعِدًا

وَمَنْ يُرَى عَنْ الْغُبَارِ حَائِدًا[2]

"نهٔ دې برابر هغه څوک چې لګيا دي جوماتونه جوړوي، کله دَ جومات پهٔ خدمت کښې ولاړ دے او کله ناست دے، کله پهٔ ناسته باندې خدمت کوي، کله پهٔ ولاړه باندې خدمت کوي او هغه چې هغه دَ خاورو نه ځان بچ کوي، ځان صفا ساتي".

نو دا دواړه کله هم برابر نهٔ دي: يَو سړے وائي: چې ګنده نهٔ شم او بل وائي: چې دا ټولې جامې مې دې ګنده شي خو چې دَ الله پهٔ کور کښې خدمتونه اوکړم نو دا صفا او دا خيرن کله هم نهٔ برابريږي؛ ځکه دَ دې ګنده مرتبه ترې ډيره اوچته شوه؛ ځکه دَ دهٔ پهٔ بدن باندې دَ جومات

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (102/2).

(2) انظر: "سيرة ابن هشام": (497/1).

دوړې اولګيدې، دَ دهٔ پهٔ بدن باندې دَ جومات خاوره لګيدلې ده، پاکه مبارَکه خاوره پرې لګيدلې ده، دا خاوره او دَ جهنم اُور به نهٔ يَو ځائے کيږي. نو دا دواړه کله برابريدے شي!.

**دَ علي ﷺ عثمان بن مظعون ﷺ پسې مزاح**

نو چې کله علي ﷺ دا اووئيل نو عثمان بن مظعون ﷺ يَو صحابي دے. عثمان بن مظعون ﷺ فطري طور باندې يَو سُتهرا انسان وو، چې دَ دهٔ به دَ خاورو نه، دَ ګندګو نه بالکل نفرت وو، چرته به ئې پهٔ خاورو او دوړو کښې خدمتونه نهٔ کول، او چې پهٔ جامه به ئې چرته دوړه اولګيده نو دَ ځان نه به ئې دوړه څنډله. نو سيدنا عليٌ ﷺ به يَو قسم دَ هغهٔ سره مزاح کولو او هغهٔ به ورته وئيل: چې تهٔ خو دَ خاورو نه ډير ځان ساتې او مونږ پکښې ځان سم ګنده کړو، ورته وائي: عثمانه!

لَا يَسْتَوِي مَنْ يَعْمُرُ الْمَسَاجِدَا ... يَدْأَبُ فِيهِ قَائِمًا وَقَاعِدًا

وَمَنْ يُرَى عَنْ الْغُبَارِ حَائِدًا[1]

"هغه دواړه کله هم نهٔ دي برابر چې يَو سړے لګيا دے جوماتونه جوړَوي، کله ولاړ وي، کله ناست وي، خاورو کښې لړلے شوے وي، او هغه سړے نهٔ دے برابر چې هغه دَ خاورو نه ځان بچ کوي"، چې خاورې را باندې پريوځي نهٔ.

نو دا دواړه کله هم نهٔ شي برابريدے بلکه پهٔ دې کښې چې درباندې خاورې اوغورځيدې نو دا ډير ثواب دے. لکه حديث پاک کښې راځي: چې سړي باندې دَ الله پهٔ لار کښې ګرد وغبار (دوړې) پريوځي دَ هغې ډير اجر دے. حديث کښې راځي:

«الْحَاجُّ الشَّعِثُ التَّفِلُ».[2]

حاجي هغه حاجي نهٔ دے چې پهٔ هغهٔ باندې چرته دوړه هم نهٔ ده پريوتې، بلکه "اصل حاجي هغه څوک دے چې سر ئې رابږ شوے وي او ګرد وغبار پرې دپاسه پروت وي"، معلوميږي دا چې دهٔ ډيرې منډې وهلې دي او ډير کړاؤ ئې کړے دے، تکليف ئې ډير تېر کړے دے نو دا

(1) انظر: "سيرة ابن هشام": (497/1).

(2) أخرجه البزار في "مسنده"، مسند عمر بن الخطاب ﷺ، برقم: (182).

اصل کښې اوچت ثواب دے.

نو بهر حال صحابه کرام ﷺ او نبي ﷺ لګیا وو او مسجدِ نبوي ئې جوړولو. دَ مسجدِ نبوي دیوال هغه دَ کچه خختو وو، او دَ هغې ستنې هغه دَ کجورې تنې وې، او بینچونه چې وو هغه هم دَ کجورو تنې وې، او دپاسه ئې پرې دَ کجورو هغه لختې اچولې وې دَ سورې دپاره. دا جومات وو. دَ رسول الله ﷺ پهٔ دور کښې دا جومات وو. دَ ابو بکر ﷺ پهٔ دور کښې هم پهٔ دغه طریقه باندې وو، دَ سیدنا عمر ﷺ پهٔ زمانه کښې خو هغه زوړ شوے وو نو هغهٔ صرف نوے کړو، نور هم دغه وو. بیا دَ سیدنا عثمان ﷺ پهٔ زمانه کښې دَ جومات نقشه بدله شوه، عثمان ﷺ ورته دَ منَقَّشو خټو نه ئې ورله دیوالونه اوکړل، او ستنې ئې ورله دَ کټو نه جوړې کړې او ساج یَو لرګے دے هغه ئې ورله دَ هندوستان نه را اوغوښتو او دَ هغې نه ئې ورله چت جوړ کړو.

### دَ سیدنا عثمان ﷺ سره دَ خلقو اختلاف

بعضې خلقو عثمان ﷺ سره اختلاف کولو چې عثمانه! دَ رسول الله ﷺ پهٔ زمانه کښې دا جومات کچه وو، او دَ کچه خختو جوړ وو، دَ ابو بکر ﷺ پهٔ زمانه کښې دا جومات کچه وو او دَ کچه خختو جوړ وو، دَ عمر ﷺ پهٔ زمانه کښې کچه وو او دَ کچه خختو جوړ وو نو دا به نهٔ ورانوؤ. دا به دَ نبي ﷺ پهٔ طریقه باندې دا جومات جوړ وي، دا به دغه شان وي. عثمان ﷺ ورته وائي: چې نا! زهٔ ئې دَ دې دپاره جوړوم چې ما دَ رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي:

«مَنْ بَنَى لِلهِ مَسْجِدًا، بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ».[1]

"چا چې دَ الله دَ رضاء دپاره جومات جوړ کړو الله رب العزة به دَ هغهٔ دپاره جنت کښې کور جوړ کړي".

نو ورته وائي: دا ځکه جوړوم چې ما له الله دَ دې پهٔ بدله کښې پهٔ جنت کښې کور راکړي، نو سیدنا عثمان ﷺ خپلې پیسې (دَ بیت الله پیسې نهٔ)، خپل مال او دولت ئې اولګولو، او

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب المساجد ومواضع الصلاة، بَابُ فَضْلِ بِنَاءِ الْمَسَاجِدِ وَالْحَثِّ عَلَيْهَا، برقم: (533).

جومات ئې بیا پۀ دغه نقشه آباد کړو. او اوس خو ما شاء الله داسې جوړ دے چې سړے ورته حیران شي. دَ نبي ﷺ پۀ زمانه کښې دَ جومات دا زمکه کمه وه.

دَ جومات دَ تعمیر نه بعد بیا نبي ﷺ دَ خپلو بیبیانو دَ کور تعمیر شروع کړو، دَ ابو ایوب انصاري رضی الله عنه دَ کور نه بیا نبي ﷺ دَ خپلو بیبیانو دپاره دَ کور تعمیر شروع کړو، دَ جومات سره خوا کښې، او پۀ هغې کښې اول دَ الله نبي ﷺ دوه کوټې جوړې کړې، یَو کوټه دَ سیده سودة بنت زمعه رضی الله عنها او دویمه دَ عائشې رضی الله عنها دپاره. نورې کوټې ئې دَ خپلو بیبیانو دپاره بیا روستو جوړې کړي دي. وائي: دغه وخت کښې چې نبي ﷺ مدینه کښې وو نو نبي ﷺ دَ دې جومات سره خوا کښې دَ حارثه بن نعمان الانصاري رضی الله عنه زمکه وه. نبي ﷺ هغۀ ته اووئیل: چې حارثه بن نعمانه! پۀ دې کښې ما باندې راخرڅه کړه، چې زۀ پکښې ځان له کور جوړ کړم. حارثه ورته وائي: یا رسول الله! زۀ به پۀ تا باندې زمکه خرڅوم!، ستا چې څومره ځائے پکاریږي صرف تاسو به حکم کوئ زما زمکه ده او ځان له پکښې کور جوړوئ، دا ستاسو شوه. چې دَ نبي ﷺ دَ دوؤ (۲) کوټو ضروري وو نو دوه ئې جوړې کړې. او چې بیا ئې نور ودونه کول نو نورې کوټې به ئې جوړولې. وائي: دا زمکه ما دَ الله پیغمبر ﷺ له ورکړې ده. نو دَ حارثه بن نعمان رضی الله عنه دا زمکه وه چې هغۀ نبي ﷺ ته وقف کړه، او پۀ هغې کښې ئې ځان له کور جوړ کړو، بیا چونکه دَ نبي ﷺ بي بي سیدة عائشه رضی الله عنها او دارنګې سودة بنت زمعه رضی الله عنها او نورې بیبیانې دا پۀ مکه مکرمه کښې پاتې وې. بیا نبي ﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم اولیږل او ابو بکر رضی الله عنه ورسره خپل ځوي عبد الرحمٰن هم اولیږلو. عائشه رضی الله عنها دَ هغۀ خور وه، هغه او نورې بیبیانې ئې راوستې او بیا هغوي دَ نبي ﷺ سره پۀ مدینه کښې پاتې کیدې. دا دَ الله دَ نبي ﷺ کور چې وو نو دَ الله دَ نبي ﷺ تر ژوندہ پورې خو پکښې پۀ خپله اوسیدو او چې کله دَ الله نبي ﷺ وفات شو نو بیا ازواج النبي ﷺ پۀ خپلو خپلو کوټکو کښې اوسیدې. دَ نبي ﷺ دَ بیبیانو دَ وفات نه بعد خو چونکه ځامن دَ نبي ﷺ نۀ وو، صرف لونړه ئې وې، ځامن ئې وو خو وړوکوالي کښې وفات شوي وو، لونړه هم دَ نبي ﷺ پۀ ژوند وفات شوې وې، یَو فاطمه رضی الله عنها وه چې هغه دَ نبي ﷺ دَ وفات نه

شپږ میاشتې روستو بیا وفات شوې ده. او دَ میراث مسئله هم دا ده: چې دَ نبي ﷺ وراثت به دَ هغهٔ وارثانو ته نهٔ میلاویږي، دا به دَ عامو مسلمانانو وي.

**دَ ولید بن عبد الملک اعلان**

نو دَ نبي ﷺ هغه کورونه چې وو، هغه دَ بیبیانو کوټګئ چې وې نو دَ ولید بن عبد الملک دورِ حکومت وو، هغهٔ اعلان اوکړو: چې دَ نبي ﷺ دا کورونه دا هم مسجدِ نبوي سره شامل کړئ. دَ سیده عائشه رضي الله عنها کوټګئ چې پهٔ هغې کښې دَ الله نبي ﷺ او سیدنا ابو بکر صدیق رضي الله عنه او سیدنا عمر بن الخطاب رضي الله عنه هم دفن دي، دَ هغې نه چار دېوالي ده، او نور هغه ټول میدان دَ مسجد نبوي سره یَو شوے دے. مسجد نبوي خو اوس کهولاؤ شو، دَ ډیرو صحابه کرامو رضي الله عنهم کورونه اوس پهٔ هغې کښې راغلي دي.

**دَ سهل بن حنیف رضي الله عنه آفسوس**

پهٔ دې کښې یَو صحابي دے سهل بن حنیف رضي الله عنه، سهل بن حنیف رضي الله عنه وئیل: کاش کهٔ چرته دې ولید بن عبد الملک دَ نبي ﷺ دا کورونه دغه شان پریخودے وے، او دا ئې دَ دې جومات سره نهٔ وے یَو ځائے کړے، او دغه شان وے نو دا به ډیره ښهٔ وه. چې دَ دنیا دَ ګُټ ګُټ نه خلق راتلل او دَ الله دَ نبي ﷺ هغه کورونه ئې لیدلے وے، هغه کوټګئ ئې لیدلے وے، هغه سادګي ئې لیدلے وے چې ښکه وه؟ دومره قد دَ جومات هم وو چې ایله به دَ دنګ سړي دَ سر سره برابر وو او دغه شان حالت دَ الله دَ نبي ﷺ دَ کوټګو هم وو، دَ کجورو پټئ برې دپاسه او دَ کچه خختو نه جوړې کوټګئ وې او دغه شان دَ جومات سستم هم وو. نو دَ نبي ﷺ کورونه هم دَ مسجد نبوي سره یَو ځائے شول. بیا پکښې خلفاء اربعؤ رو رو تغییر راوستو او مسجد نبوي اوس دومره کهولاؤ شو. نو دا اولنے کار وو دَ الله دَ نبي ﷺ چې دَ الله دَ کور دَ تعمیر سوچ ئې اوکړو.

**دَ انصارو او مهاجرینو پهٔ مینځ کښې مواخات قائمول**

بیا انصار صحابه رضي الله عنهم چې وو نو دا خو دَ مدینې اوسیدونکي وو، زمکې ئې هم وې، جائیدادونه ئې هم وو، کاروبارونه ئې هم وو، مهاجرین چې دَ کلي نه راغلي وو نو دَ هغوي خو داسې څهٔ

لا ره نهٔ وه، اسباب دَ ژوند ورته ګران وو نو دَ دې دپاره به نبي ﷺ مؤاخات کول، دَ صحابؤ ﷺ په مينځ کښې ئې رورولي قائموله، چې هلکه! دا يَو دَ مکې نه راغلے دے، مهاجر دے او تهٔ دَ مدينې ئې، انصاري ئې، دَ دې ملک ئې نو تهٔ به دَ دې سړي خيال ساتې، تهٔ به دے داسې ګنړې لکه خپل رور. دا رورولي به ئې دَ هغوي قائمه کړه، نو هغوي به دَ يَو بل سره داسې وو لکه خپل رونړه، څنګه چې خپل رور سره سړے هر څهٔ نيمَوي نو داسې به ئې هغهٔ تهٔ وئيل: راځه! زما کور هم نيم ستا، زما مال هم نيم ستا... سعد بن الربيع الانصاري ﷺ عبد الرحمٰن بن عوف ﷺ ته وائي:

"فَتَعَالَ".[1]

"راځه! چې ما کوم مال ګټلے دے دا به درسره نيم کړم، نيم زما او نيم ستا". او ورته وائي: دوه ښځې مې دي، يَو به طلاقه کړم چې عِدَّتْ ئې تير شي نو تهٔ ئې پهٔ نکاح واخله. عبد الرحمٰن بن عوف ﷺ ورته وائي:

"بَارَكَ اللهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ دُلَّنِي عَلَى السُّوقِ".[2]

"الله رب العزة دې تا له ستا مال او اولاد کښې برکت واچوي (زهٔ ښهٔ تکړه يم ماله دَ تجارت چل راځي)، ماله ته دَ بازار لار اوښايه"، زهٔ تجارت کولے شم.

هغهٔ ورته دَ بازار لار اوښودله، وائي: دا دَ مدينې منوّرې بازار دے. يَو څو ورځې چې ئې تجارت اوکړو نو ځان له ئې سرهٔ اوګټل، بيا ئې ځان له وادهٔ اوکړو، دَ انصارو يَو زنانه سره ئې نکاح اوکړه. دَ الله نبي ﷺ چې اوليدو نو ورته وائي: هلکه! دا رنګ در باندې دَ څهٔ شي دے؟ دے ورته وائي:

"يَا رَسُولَ اللهِ، تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً مِنَ الأَنْصَارِ".

"اے دَ الله رسوله! ما وادهٔ کړے دے، (وائي: چا سره؟)، دَ انصارو يَو زنانه سره". وائي: مهر دې ورله څهٔ مقرر کړے دے؟ وائي: دَ کجوري دَ هډوکي هومره سرهٔ زر، دا مې ورله مهر مقرر کړے دے. وائي: يا هلکه! عبد الرحمانه!

«أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ».

(1) أخرجه البزار في "مسنده"، مسند أبي حمزة أنس بن مالك ﷺ، برقم: (6863).

(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب، برقم: (3937).

تا داسې پټ وادهٔ کړے دے، بیا خو به مونږ له پروګرام کوې، "ولیمه اوکړه اګر کهٔ پهٔ ګډ وي".

«وَلَوْ بِشَاةٍ» محدِّثین وائي: دَ دې دوه (۲) معاني دي: (۱) يَو دا: "اګر کهٔ يَو ګډ وي". لږ پروګرام اوکړه. او (۲) دویمه معنٰی: چې دلته «وَلَوْ بِشَاةٍ» کښې ډیر والي ته اشاره ده، ښهٔ درون پروګرام اوکړه، کهٔ ګډ حلالولے شې نو ګډ حلال کړه. هغه زمانه کښې خو کمزوري وه، وادهٔ به وو، نو څهٔ به ووا، دَ الله نبي ﷺ پهٔ خپل وادهٔ کښې کجورې تقسیم کړې وې، کله به ئې حلوه او پنیر دا څیزونه به ئې ګډ وډ کړل او حلوه به ئې ترې پخه کړه هغه به ئې پهٔ خلقو اوخوړه. نو ګډ حلالول خو ډیره غټه خبره وه نو ځکه ورته وائي:

«أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ».[1]

"ښهٔ پروګرام اوکړه، اګر کهٔ ګډ وي".

داسې نبي ﷺ دَ انصارو او مهاجرینو رورولي قائمولهٔ، پنځهٔ څلویښت (٤٥) مهاجرین او انصار صحابه ﷺ دَ هغوي رورولي نبي ﷺ قائمه کړې وه. شیخ الحدیث مولانا محمد ادریس کاندهلوي ؒ باقاعده دَ هغوي هغه نومونه نقل کړي دي، چې دَ دې صحابوٗ ﷺ رورولي دَ دهٔ سره قائمه وه، دَ دې صحابي رورولي دَ دهٔ سره وه، او هغهٔ به ورته داسې کتل لکه خپل رور ته چې سړے ځنګه ګوري.

دا هغه ابتدائي حالات وو، چونکه جومات جوړ،شو بیا دَ مونځ خبره،وه، دَ مونځ دپاره به خلق څنګه را جمع کیږي؟ دَ اذان ترتیب وو، نو -ان شاء الله- بله جُمعه کښې به دا وایُو چې دَ اذان ابتداء څنګه شوې ده؟

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب، برقم: (3937).

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# سيرة النبي ﷺ حصه پنځهٔ ويشتمه

## "دَ اذان ابتداء او دَ صحابي خوب ليدل "

بتاريخ: 2022-08-26

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سيرة النبي ﷺ حصه پنځهٔ ويشتمه

# "د اذان ابتداء او د صحابي خوب ليدل"

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.(1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! د ډيرو جُمعو نه د رسول الله ﷺ سيرتِ مباركه شروع وو، د نبي ﷺ د پيدائش نه واخلې تر بعثت پورې د هغې زندګئ بيان شوے وو، بيا د مکې د دور بيان شوے وو، چې ديارلس کاله نبي ﷺ مکه کښې دعوت چلولے وو، بيا تېرو جُمعو کښې مونږ د هجرت بيان کړے وو، د هجرت په دوران کښې چې کوم واقعات مخې ته راغلي وو، هغه بيان شوي وو، نبي ﷺ چې اول قباء ته راغلے وو، بيا مدينې ته راغے نو اول ئې په کوم ځائے کښې پړاؤ کړے وو؟ د کوم جومات بنياد ئې کيخودے وو؟ په مدينه کښې د چا په کور کښې پاتې کيدو؟ او اول کار د نبي ﷺ په مدينه منوّره کښې کوم وو؟ نو د هغې ټولو وضاحتونه مونږ په تيرو جُمعو کښې کړي دي. رسول الله ﷺ چې مدينې منوّرې ته راغے نو د ابو ايوب انصاري ﷺ په کور کښې اوسيدو، د مسجد نبوي تعمير ئې اوکړو، او د هغې تفصيل مونږ بيان کړے وو، د ازواج

(1) [سورة الأحزاب: 21].

النبي ﷺ څۀ کوټې جوړې شوې، دَ نبي ﷺ کور تيار شو. نو جومات له به صحابه کرام ﷺ جمعې ته راتلل. دَ جمعې سره مونځ کول اداءِ کامل ده، او ځان له مونځ کول دې ته دَ فقهاؤ پۀ نزد او دَ اصول فقهې دَ علماؤ پۀ نزد "اداءِ قاصر" وائي.

**اختلاف دَ ائمو ﷺ**

دا يَو اختلافي مسئله ده: زمونږ دَ امام صاحب ؒ مذهب دا دے: چې جمعه سنَّتِ مؤکده ده، او امام شـ فعي ؒ او بعضې نور علماء وائي: چې جمعه فرض ده، يَو سړے چې جمعې سره مونځ اونۀ کړي نو مونځ ئې دَ سره نۀ کيږي. څوک ورته واجب وائي. زمونږ مذهب دا دے: چې جمعې سره مونځ کول سنتِ مؤکّده دي، بغير دَ عذر نه يَو سړے دَ جمعې مونځ پريږدي نو دے گناه گار دے. ثواب دَ جمعې دَ مونځ هم زيات دے، دَ جمعې دَ مونځ ثواب يَو حديث کښې اوويشت (۲۷) درجې راځي، بل حديث کښې پنځۀ ويشت (۲۵) درجې راځي. نو دَ جمعې مونځ دومره فضيلت لري.

**پۀ ابتداء کښې دوه مونځونه**

نبي ﷺ چې جومات جوړ کړو.... ابتداء کښې پۀ مکّه کښې به نبي ﷺ دوه (۲) تائمه مونځ کولو: (۱) دَ صبا مونځ او (۲) دَ مازيگر مونځ، نور مونځونه نۀ وو. بيا نبي ﷺ چې کله معراج ته لاړو نو پنځوس (۵۰) مونځونه الله پۀ اُمت فرض کړل. دَ موسٰی الطّیٰلا پۀ بار بار وينا او دَ نبي ﷺ پۀ بار بار مِنتْ او سفارش دَ پنځوسو نه پنځو ته راکوز شول، اوس پۀ اُمت باندې پنځۀ مونځونه فرض دي خو دَ الله قانون خو نۀ بدليږي، دَ الله قانون دا دے: چې مونځ يَو سړے اوکړي نو هره نيکي دَ هغې بدله الله يَو (۱) پۀ لس (۱۰) ورکوي. نو يَو مونځ دے نو يَو پۀ لس شو نو چې پنځۀ مونځونه دي او پۀ لسو کښې ضرب ورکړې نو پنځوس مونځونه شول، نو تا له ثواب دَ پنځوسو مونځونو دے.

**دَ مکّې پۀ دور کښې دَ نبي ﷺ مونځ**

دويمه خبره دا وه: چې دَ مکّې پۀ دور کښې نبي ﷺ مونځ چې به کولو نو دوه دوه (۲) رکعته مونځ به وو، اگر چې پنځۀ تائمه مونځ وو خو دَ سحر به هم دوه وو، دَ ماسپښين به هم دوه وو، دَ مازيگر به هم دوه وو، دَ ماښام به درې (۳) رکعته وو او دَ ماسخوتن به دوه وو، څلور پکښې نۀ

وو. کله چې رسول الله ﷺ مدينې ته هجرت اوکړو نو بيا په دې مونځ کښې لږ غوندې زيادت راغے، دَ سفر په حالت کښې مونځ هم دغه دوه (۲) رکعته پاتې شو او دَ حضر په حالت کښې دا مونځ څلور رکعته شو، يعني چې کوم سړے په کلي کښې دے نو دے به څلور رکعته کوي دَ ماسپښين، دَ مازيګر او دَ ماسخوتن، نو دا درې ثنائيه څلور رکعته شول خو چې کله يَو سړے مسافر دے نو هغه به دَ دې څلورو په ځائے دوه کوي. دا په سفر کښې په خپل حال پاتې شول. ماښام کښې چونکه درې (۳) رکعته هغه نهٔ نيميږي نو هغه هم په خپل حال پاتې شول. اوس مسئله دا ده: کهٔ يَو سړے په کلي او وطن کښې دے، مسافر نهٔ دے نو دے به ماسپخين، مازيګر او ماسخوتن څلور رکعته کوي، دے په دوؤ (۲) کولو ګناه ګاريږي. خو چې مسافر شي نو لکه څنګه چې کلي کښې څلور لازمي دي، نو په سفر کښې بيا دوه (۲) لازمي دي، کهٔ څلور کوي نو ګناه ګاريږي. خو دَ ماښام مونځ به نهٔ نيمَوي؛ ځکه هغه نهٔ نيميږي، او سحر خو په خپل حال دے. دا دَ صحيح البخاري حديث دے چې دَ سفر هغه په خپل حال پاتې شو او دَ حضر هغه سهوا شو.

## دَ اذان نه مخکښې دَ خلقو مانځهٔ دپاره جمع کول

اوس چې دے نو مونځ له نبي ﷺ صحابه کرام ﷺ راجمع کول، نو هغه دور وو، دَ نن نه څوارلس سوه (۱۴۰۰) کاله مخکښې تهٔ تپوس اوکړه، څوارلس نيم سوه (۱۴۵۰) کالو ته رسي، نهٔ دومره اسباب وو، نهٔ دومره سهولتونه وو نو داسې به کيدل چې نبي ﷺ به صحابه کرامو ﷺ ته اووئيل: چې تاسو پوهه شئ نو راځئ!، صحابه کرام ﷺ به زا روان شول، جومات کښې به خلق برابر شول نو جَمعې ته به اودريدل. نو دې کښې به کله يَو سړے ډير زيات دَ وخته راغے چې چرته را باندې ناوخته نهٔ شي، نو ناست به وو، څوک به لا نهٔ وو راغلي، او کله به يَو سړے راغے نو دَ هغهٔ نه به جَمع شوې وه، ناوخته به وو؛ ځکه ګهړئ ګانې خو نهٔ وې، دارنګې بل داسې شے هم نهٔ وو.

## دَ نبي ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ مشوره کول

نو نبي ﷺ او صحابه کرام ﷺ را جمع شول، مشوره ئې اوکړه: چې دې مانځهٔ له را جمع کيږو نو دَ دې دپاره څهٔ طريقه اختيار کړو؟ نو صحيح البخاري، دارنګې نورو کتابونو کښې دا حديث

راځي: مشوره ئې شروع کړه، نو چا پکښې دا مشوره ورکړه: چې یا رسول الله! ناقوس به غږوؤ او ټول خلق به خبرېږي او راځي به. "ناقوس" داسې يَو شے دے چې دوه لرګي وي: يَو اوږد لرګے وي، داسې نرے اوږد ډډۀ غوندې او بل لرګے هغې له را خلاص کړي نو يَو ټنګ آواز کوي. نو دا ناقوس به وهو (يعني دا لرګي چې يَو بل لۀ را خلاصوؤ) نو دا به پۀ زوره آواز کوي نو خلق به خبرېږي او جومات له به راځي. ټول اووئيل: چې دا طريقه به کوؤ او خلق به را جمع کوؤ، نبي ﷺ اووئيل: چې داسې نۀ کوؤ؛ ځکه چا پکښې دا اووئيل: چې دا دَ نصاراؤ طريقه ده، نصارٰی چې دَ خپل عبادت ځائے له خلق را جمع کوي نو هغوي ناقوس غږوي؛ نو نبي ﷺ اووئيل: دَ نصاراؤ پۀ شان کار نۀ کوؤ.

### دَ غير مذهبو سره مشابهت

زمونږ پۀ شريعت کښې دَ غير مذهبه سره دَ مشابهت نه منع راغلې ده، داسې يَو عمل به نۀ کوې، داسې يَو کار به نۀ کوې چې هغوي سره پۀ هغې کښې مشابهت راځي. او دا يَو جُدا موضوع ده، کۀ زۀ ئې شروع کړم نو خبره به ډېره اوږده شي: چې څومره خبرې داسې دي چې رسول الله ﷺ پۀ هغې کښې دَ دې وجې نه منع کړې ده چې دَ هغوي سره مشابهت راځي. دَ الله نبي ﷺ وائي:

«مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ».[1]

"چا چې دَ کوم قوم سره ځان مشابه کړو نو دے به دَ هغوي سره راپاسي".

حديث کښې راځي: «لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ، وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ».[2]

"رسول الله ﷺ لعنت وئيلے دے پۀ هغه سړو چې کوم ځان دَ ښځو سره يَو شانته کونکي وي او پۀ هغه ښځو چې سړو سره ځان يَو شانته کونکي وي". چې الله دې پۀ هغه سړو لعنت راولېږي چې دَ زنانؤ سره ځان مشابه کوي، او پۀ هغې زنانؤ چې دَ نارينؤ سره ځان يَو شان کوي.

---

(1) أخرجه أبو داود في كتاب اللباس، باب في لبس الشهرة، برقم: (4031).

(2) أخرجه البخاري في كتاب اللباس، باب: المتشبهون بالنساء، والمتشبهات بالرجال، برقم: (5885).

نن صبا خو خبره کډه وړه ده، خلقو ترقي کړې ده، سړو دَ زنانو لباس شروع کړو، سړے به وي او دَ ځان نه به ئې دَ زنانو لوېته تاو کړي وي، سړے به وي او دَ ځان نه به ئې دَ زنانو څادر تاو کړے وي، زنانه به وي او دَ سړو پيزار به ئې اچولے وي، دَ سړو جامې به ئې اچولې وي او دَ سکول پۀ دې جامو کښې خو دا پته نۀ لګي چې دا دَ هلکانو جامې دي او کۀ دَ جينکو دي؟ لباس کښې فرق ختم شو. نبي ﷺ ته يَو کس راوستے شو مخنَّث (ايجړا) وو، هغۀ پۀ لاسونو نکريزې لګولې وې، نبي ﷺ اووئيل: دا ولې؟ (يَو دَ چا مجبوري وي، دَ چا لاس چاودلي وي، عذر وي، ډاکټر ورته وائي، حکيم ورته وائي: چې نکريزې پرې اولګوه هغه خو جُدا خبره ده. خو چې عذر نۀ وي نو نکريزه دَ سړو دپاره مکروه تحريمي ده: سړے به لاس نۀ سرۀ کوي، خپې به نۀ سرې کوي. کيره سره کولے شي، دَ سر ويښتۀ سرۀ کولے شي خو لاسونه او خپې سرۀ کول دَ سړو دپاره دا مکروه تحريمي دي. او دَ زنانو دپاره لاس خپې سرۀ کول دا مستحب دي، ثواب دے پکښې، زنانه به پۀ لاسونو او خپو نکريزه ايږدي خو سړے به ئې نۀ ايږدي). مخنَّث چې نۀ سړے وو او نۀ زنانه وه دا رسول الله ﷺ ته راوستے شو، وائي: يا رسول الله! دۀ پۀ لاسونو نکريزې کيخودلي دي. وائي: دا ولې؟ وائي: دۀ ځان دَ زنانو سره مشابِه کړے دے... (کۀ تاسو اوګورئ! نن صبا ايجړاګان دَ ښځو جامې، دَ ښځو پۀ شان سرونه پريخودل، ګيره بريت کټ کول او پۀ مخ باندې کريم او پوډر راخکل، واللهِ! کۀ تۀ ئې پيژنې چې دا ايجړا دے، تۀ به وائې: چې دا خو چرته ډيره خائسته ښځه را روانه ده، پيغله را روانه ده پکښې نه به هغه نۀ سړے وي او نۀ به ښځه وي، دې مخنَّثينو، دې ايجړاګانو نکريزې لګولې وي!!!)، دَ الله نبي ﷺ وائي: دا ولې دۀ لګولي دي؟ وائي:

"يَا رَسُولَ اللهِ! يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ".

"اے دَ الله رسوله! دے دَ زنانو سره ځان مشابه کوي".

نبي ﷺ اوفرمائيل: شابئ! دے دَ مدينې منوَرې نه اوباسئ. دَ مدينې نه ئې اوويستو. سيدنا عمر ﷺ را پاسيدو، وائي: يا رسول الله! ما له اجازت را کړه چې دَ دې سړي نه زۀ سر کټ کوم چې دا مدينه ترې نه پاکه کړم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: عمره! دے مونځ کوي:

«إِنِّي نُهِيتُ عَنْ قَتْلِ الْمُصَلِّينَ».[1]

"زهٔ دَ هغې خلقو دَ مرګ نه منع شوے يم چې کوم حق الله ته ولاړ وي او مونځونه کوي"، مونځ ګزار دے نو وژلے ئې نهٔ شم خو دومره به اوکړو چې دَ مدينې نه به ئې اوشړو، دا دَ دهٔ سزا شوه.

نو خبره مې دا کوله: چې دَ غير سره مشابهت، دَ سړو دَ ښځو سره مشابهت، دَ زنانو دَ نارينو سره مشابهت، دَ مسلمان دَ کافر سره مشابهت او دَ هندوانو او سيکهانو سره مشابهت دا نا روا دے. علماؤ ليکلي دي: چې دَ انګريز پهٔ شان ويښتهٔ به نهٔ کټ کوې، دا دَ هغوي شعار دے، مسلمان به ټول ويښتهٔ يَو شان کټ کوي، دا نهٔ چې مخې له به دې پريخودے وي او شا له به دې وړوکے کړے وي.

## دَ مشرکانو خلاف کول

رسول الله ﷺ فرمائي:

«خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ: وَفِّرُوا اللِّحَى، وَأَحْفُوا الشَّوَارِبَ».[2]

"دَ مشرکانو خلاف اوکړئ، ګيرې اوږدې کړئ او بريتونه لنډ کړئ".

نو دا مونږ ته زمونږ دَ نبي ﷺ تعليم دے.

## دَ کسرىٰ دَ قاصدانو راتلل

دَ کِسْرٰى څهٔ قاصدان راغلي وو، نبي ﷺ چې اوکتل نو ګيرې ئې خرولې وې، نبي ﷺ ورته اووئيل:

«وَيْلَكُمَا مَنْ أَمَرَكُمَا بِهَذَا؟».

"واه! هلاک شئ! دا چا درته وئيلي دي، چې تاسو ګيرې خرولې دي؟".

نو هغوي ورته وائي: زمونږ دَ ملک بادشاه مونږ ته وئيلي دي: چې ګيره به خرَوئ، قانون زمونږ دا دے. نبي ﷺ خپله ګيره پهٔ لاس کښې راونيوله او ورته وائي:

«لَكِنَّ رَبِّي قَدْ أَمَرَنِي بِإِعْفَاءِ لِحْيَتِي وَقَصِّ شَارِبِي».[3]

---

1) أخرجه الترمذي في أبواب المناقب، باب في فضل النبي ﷺ، برقم: (3605).

2) أخرجه البخاري في كتاب اللباس، باب تقليم الأظفار، برقم: (5892).

(3) انظر: "دلائل النبوة" لأبي نعيم الأصبهاني: (348)، برقم: (241).

"زما ربّ ما ته دَ دې حکم کړے دے چې ته به ګیره پرېږدې او بریت به واړهٔ کوې"، نو ته به دَ خپل بادشاه نه مجبوره ئې او زهٔ دَ خپل بادشاه نه مجبوره یم، ما ته زما ربّ وائي، ما ته زما بادشاه وائي: چې ګیره به نهٔ خرے.

نبي ﷺ هغوي ته خبرې کړې دي. نو مشابهت دَ زنانوُ سره به نهٔ وي. کهٔ ته وائې: چې دَ ښځو خو ګیره هم نهٔ وي او بریت ئې هم نهٔ وي او دَ سړي خو بریت شته؟ نو دا مشابهت دَ کفارو سره دے، دَ غیر دینه سره دے دا هم نا روا دے.

بهر حال بیا خبره ډیره لرې ځي خو تا ته مې یَو مثال ښودلو چې دَ غیر مشابهت منع دے، اوس ګوره! مونږ له خلق رابلي خو دَ نصاراؤ پهٔ طریقه باندې نهٔ. دَ عاشوره روژه (دَ لسم تاریخ دَ محرّم روژه) مونږه نیسو.... دَ لسم (۱۰) محرم روژه سنت ده، او ډیر ثواب دے پکښې، دا ولې؟؛ پهٔ دې ورځ باندې الله موسیٰ علیه السلام ته نجات ورکړے وو، فرعون لره الله رب العزة تباه کړے وو. نبي ﷺ اووئیل: مونږه هم پهٔ موسیٰ علیه السلام باندې خوشحالیږو نو دا روژه به نیسو. نو چا ورته اووئیل: یا رسول الله! دَ مدینې یهود هم پهٔ دې ورځ روژه نیسي؟ نو دا دَ مسلمانانو هم روژه وي او یهود هم پهٔ دې ورځې روژه نیسي؛ ځکه هغوي دَ موسیٰ علیه السلام تابعدار وو. نبي ﷺ اوفرمائیل: نو دا خو دَ یهودو او زمونږه کار یَو شو، صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ئې اووئیل: کهٔ زهٔ بل کال له ژوندے پاتې شوم نو:

«لَأَزِيْدَنَّ التَّاسِعَ». "زهٔ به دې سره نهمه روژه هم سېوا کوم".

دَ دې وجې نه زمونږ ټولو فقهاؤ لیکلي دي: چې صرف دَ لسم تاریخ روژه به نهٔ نیسي، نهم (۹) او لسم (۱۰) اونیسه، یا لسم (۱۰) او یوولسم (۱۱) اونیسه؛ دَ دې دپاره چې دَ یهودو سره مشابهت رانهٔ شي، منع راغلې ده دَ مشابهت دَ غیر نه.

نو دَ الله نبي ﷺ اوفرمائیل: چې ناقوس به نهٔ غږوئ؛ پهٔ دې طریقه به خلق مانځهٔ له نهٔ را جمع کوئ؛ ځکه دَ نصاراؤ سره مشابهت راځي.

**دَ بوق غږولو باره کښې مشوره**

بیا صحابه کرامو رضی الله عنهم اوفرمائیل: یا رسول الله! بوق به غږوؤ؟ بوق یَو اوږد غوندې بِګل وي،

پوکے پکښې اووهي، دَ ښاروي دَ ښکر پهٔ شان وي، هغې کښې چغه وهي. نو وائي: بوق به غږوؤ او خلق به را جمع کيږي. نو چا اووئيل: چې دا خو دَ يهودو عمل دے، يهود چې کله اجتماع کوي، کله خلق را جمع کوي نو هغوي دَ دې دپاره دا بوق او بِگل غږوي. نبي ﷺ اوفرمائيل: چې نا! نا! دَ يهودو سره هم مونږ مشابهت نهٔ اختياروؤ، دا هم نهٔ کوؤ.

**دَ اُور بلولو باره کښې مشوره**

بيا چا مشوره ورکړه: چې يا رسول الله! ډير خشاک به را جمع کړو او چې کله دَ مانځهٔ ټائم کيږي نو هغې ته به اُور اچوؤ، نو دَ ورځې به خلق هغه لوګې وينې او چې شپه وي نو خلق به هغه لمبې ويني، نو خلق به پوهيږي چې دا دَ مانځهٔ ټائم دے، نو پهٔ دې طريقه باندې به خلق مانځهٔ له را جمع کيږي. ځکه هغه وخت نهٔ ګهړئ وې، نهٔ لوډ سپيکرې وې او نهٔ داسې بل څهٔ شے وو، پته نهٔ لګيده. نو چا اووئيل: چې دا خو دَ مجوسو طريقه ده، هغوي دَ اُور عبادت کوي. او ما تاسو ته مخکښې وئيلي وو: چې مجوس پهٔ اُور ډير مئين وو، دَ سلمانِ فارسي رضی اللہ عنہ واقعه ما تاسو ته وئيلې وه، چې وائي: پهٔ سلونو کلونو زمونږ آتش کده کښې اُور نهٔ وو مړ شوے. هغوي به دَ شپې او ورځې اُور بلولو، هغوي به وئيل: چې اُور مړ شو نو لکه زمونږ خدائے چې مړ شو، هغوي اُورِ ځليريشت ګهنټې بل ساتي. نو وائي: کهٔ مونږ پهٔ اُور باندې خلق را جمع کوو نو بيا به مشابهت دَ مجوسو سره راشي. نو دَ الله نبي ﷺ اوفرمائيل: چې دا هم مهٔ کوئ.

توله ورځ مشوره کښې تيره شوه خو سمے ئې اونهٔ خوړلو.

**دَ اذان ابتداء دَ هغې دپاره دَ نبي ﷺ او دَ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم سوچ**

نبي ﷺ اووئيل: ځئ! دَ دې دپاره به سوچ کوؤ، او ځئ پهٔ دې خپل ترتيب باندې جَمعې له راځئ. سيدنا بلال رضی اللہ عنہ ته وائي: چې اے بلاله! تر څو چې مشوره شوې نهٔ ده، چې کله دَ مانځهٔ ټائم کيږي ته به د مدينې پهٔ کوڅو کښې ګرځې نو آواز کوه:

"اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ، اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ".

"اے خلقو! دَ مونځ دَ جمع کيدو ټائم دے، دَ مونځ دَ جمع کيدو ټائم دے"، جومات ته راشئ!.

بلال ﷺ پهٔ کوځو کښې کرځېدو او آواز به ئې کولو چې دَ مانځهٔ ټائم دے، جومات ته راشئ. دا طريقه شروع وه.

## دَ عبد الله بن زيد بن عبد ربّه ﷺ خوب ليدل

دَ صحابوٓ ﷺ پهٔ ذهن کښې يَو سوچ دے. کله چې دَ سړي ذهن کښې يَو سوچ وي نو بيا دَ شپې خوبونه هم داسې وينې، پهٔ ټولو صحابوٓ ﷺ کښې ډير فکر مند يَو صحابي دے: "عبد الله بن زيد بن عبد ربّه ﷺ". دا صحابي دَ شپې اودهٔ دے، خوب وينې: "يَو کس را روان دے، شنه جوړه ئې اچولې ده، غاړې ته ناقوس وَرسره زوړند دے، او دارنګې بوق او بِګل ئې را زوړند کړي دي، او را روان دے". دا اوس خوب وينې خو تصوُّر دے، دے ورته وائي: "اودريږه! څهٔ کوې؟، وائي: ما باندې يَو ناقوس يا بوق (بِګل) را خرڅ کړه. هغهٔ ورته وائي: څهٔ پرې کوې؟ وائي: مونږه پرون ټوله ورځ پهٔ دې باندې مشورې کولې چې مانځهٔ له به خلق را جمع کوؤ، نو دا يَو ناقوس ما له راکړه چې زهٔ ئې يوسم، مونږ به ئې غږوؤ، پهٔ دې طريقه باندې به خلق مانځهٔ له را جمع کوؤ. هغهٔ ورته وائي: دا پريږدَوه، زهٔ به درته بله کلمه اوښايم، کله چې دَ مانځهٔ وخت راځلو نو دا وايه!... وائي: څهٔ ده؟ هغهٔ هغه سامان کيخودو او وائي: ما ته غوږ کيږده، بس لاس ئې ورته پهٔ غوږونو کيخودلو او شروع شو، وائي: دا وايه:

"اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ...".

ټول دَ اذان کلمات ئې ورته اووئيل، وائي: پهٔ چغه دا اذان کوئ نو ټول خلق به ئې اوري نو جومات ته به راځي. وائي: ښه! قاموس مهٔ راکوه. ناقوس پاتې شو. عبد الله بن زيد بن عبد ربّه ﷺ چې را پاسيدو نو دَ پيشمني ټائم دے، آرام ئې اونهٔ کړو، پهٔ منډه منډه دَ رسول الله ﷺ کور ته راغے، وائي: يا رسول الله! ما خو بيګا څهٔ نا آشنا خوب مې ليدلے دے، تعبير پکار دے؟ وائي: څهٔ خوب دے؟ وائي: يَو کس را روان دے او دَ هغهٔ سره ناقوس وو، ما ورته اووئيل: چې ما باندې ئې خرڅ کړه، نو دے وائي: چې دا پريږده، دا کلمات درته ښايم دا وايه. هغه ټول کلمات هغهٔ ته ياد وو،

چې دَ الله نبي ﷺ له ئې څنګه دَ اذان دا کلمات واورول نو نبي ﷺ ورته وائي:

«إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللهُ».

"دا خو خامخا حق خوب دے"، بالکل صحیح خوب دې لیدلے دے.

او ورته وائي: یا عبد الله! دا ناقوس خرخونکے نهٔ وو، دا تا له خوب کښې الله فرشته رالیږلې ده، او تا له خوب کښې الله دا کلمات ښودلي دي، خو عبد الله! ستا آواز کمزورے دے، تهٔ دومره پهٔ زوره آواز ایستے نهٔ شې، ورشه! دا کلمات بلال ته اووایه، او بلال ته وایه: چې تهٔ ئې پهٔ چغه باندې وایه؛ ځکه بلال ﷺ چې دے نو:

«فَإِنَّهُ أَنْدَى صَوْتًا مِنْكَ».[1]

"هغه ستا نه اوچت آواز والا دے".

نو دَ بلال آواز ډیر تیز وو نو بلال به اذان کوي، او تهٔ هغهٔ ته دا کلمات وایه!. نو دے لاړو او بلال ﷺ ئې دَ خوب نه را پاسولو او ورته وائي: پاسه! رسول الله ﷺ تا ته یو پیغام حواله کوي. بلال ﷺ دَ هغې ورځې نه مؤذّن مقرر شو. سیدنا بلال ﷺ را پاسیدو، اودس ئې اوکړو او قبلې ته ئې مخ کړو، دهٔ ورته چل اوښودلو چې فرشتې ما له داسې وئیلي دي، دے مخکښې شو او عبد الله بن زید بن عبد ربّه ورته شاه ته ولاړ دے نو دے ورته پهٔ رو باندې او وائي چې ما پسې به وائې، دے وائي: "اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ"، نو بلال ﷺ چغې کړې: "اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ"... بس پهٔ مدینه کښې یو کړنګار شو، دَ سحر ټائم دے، مدینه کښې دَ اذان شور جوړ شو، هر یو سړے دَ کور نه منډې را وهي، چې نا آشنا کلمات دي.

## دَ سیدنا عمر فاروق ﷺ خوب لیدل

پهٔ دې کښې سیدنا عمر ﷺ لنګ تړلے دے، هغه وریښې راښکلے شي او را منډې وهي، دَ الله نبي ﷺ ته وائي: اے دَ الله نبي! دا نن چې ما کوم آواز دَ بلال ﷺ دَ خُلې نه واوریدو نو زما دې پهٔ الله قسم وي! چې دا بیکا ما له هم پهٔ خوب کښې وئیلي شوي دي، ما ته هم بیګا یو کس راغلے وو، او

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الصلاة، باب ما جاء في بدء الأذان، برقم: (189)، وأحمد في "مسنده"، مسند المدنيين، حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ صَاحِبِ الْأَذَانِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، برقم: (16478).

ما ورته اووئيل: چې مانځهٔ له خلق جمع کوؤ نو چې څهٔ چل اوکړو؟ نو ما ته ئې اووئيل: چې دا کلمات وايه!، نو ما ورته اووئيل: چې زهٔ به ستا کوځې له راځم او زهٔ به تاسو ته دا کلمات وايم... نو زما نه مخکښې تاسو له دا کلمات را اورسيدل. نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: هم دغه خبره ده: چې تا له هم مَلک پهٔ خوب کښې راغلے دے او دهٔ له هم راغلے دے. بس دا اذان دَ هغې زمانې نه شروع شو.

**دَاقامت ابتداء**

بيا دَ اقامت دپاره فرشتې ورته دا چل هم ښودلے وو: چې کله بيا د مونځ ټائم شروع شي نو داسې به کوئ: هم دغه دَ اذان کلمات به وايئ خو صرف دا ټکي به سېوا کړئ:

"قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ".[1]

دا ټکي ئې پهٔ اقامت کښې سېوا کړل، او دَ هغې نه دَ اذان ابتداء شروع شوه نو بيا به پهٔ مسجدِ نبوي کښې پنځهٔ ټائمه سيدنا بلال ﷺ اذان کولو.

پهٔ صحابؤ ﷺ کښې لوئي لوئي صحابه شته دے، بلال ﷺ ولې دَ الله نبي ﷺ دَ اذان دپاره منتخب کړو؟؛ نو حديث کښې ئې وجه راغله، چې هغه وجه دا وه:

«فَإِنَّهُ أَنْدَى صَوْتًا مِنْكَ».[2]

"هغه ستا نه اوچت آواز والا دے".

نو بلال ﷺ دَ اوچت آواز والا وو، دا زمونږ فقهاء چې ليکي: چې مؤذّن به پهٔ غوږونو باندې ګوتې ايږدي، دَ دې نه څوک خبر نهٔ دي چې دا ولې ايږدي؟ دا هسې غوږونه نيول نهٔ دي، دَ دې مقصد دا وي: چې کله سړے پهٔ زوره چغې وهي نو دے پهٔ غوږونو کښې ګوتې ورکړي نو دهٔ ته دا خپل آواز نهٔ را رسي نو دَ هغهٔ دا خيال وي چې زما دا آواز کم دے نو هغه بيا نور زور هم اولګوي. کهٔ ستاسو خيال وي نو دا کونږ سړے پهٔ زوره خبرې کوي، نو دا ولې پهٔ زوره لګيا وي؟

---

[1]) أخرجه أبو داود في كتاب الصلاة، باب كيف الآذان، برقم: (499).

[2]) أخرجه الترمذي في أبواب الصلاة، باب ما جاء في بدء الآذان، برقم: (189)، وأحمد في "مسنده"، مسند المدنيين، حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ صَاحِبِ الْأَذَانِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، برقم: (16478) واللفظ له.

هغه دا خپل آواز نهٔ اوري نو هغه دا وائي: چې بل سړے ئې هم نهٔ اوري، نو دے دومره تيز لګيا وي چې سړے وائي: کهٔ دے لږ کم شو نو دا به ښهٔ وي او هغه نور څکه نهٔ شي کميدے چې هغه وائي: بيا به ئې خلق نهٔ اوري، حالانکه دے خپله نهٔ اوري. نو دې مؤذّن چې پهٔ غوږونو کښې ګوتې ورکړې وي نو دَ دې مقصد دا وي: چې زما دا آواز زهٔ نهٔ اورم او دے پهٔ چغه لاړ شي.

او بيا "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ" کښې دوه (۲) ځله يَو خوا مخ کوي او "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" کښې دوه (۲) ځله بل طرف ته مخ کوي، نو پهٔ دې کښې حکمت هم دا دے: چې قبلې طرف ته خو ستا مخ دے، خلقو ستا آواز واوريدو، يَو طرف له خلق پاتې، بل طرف له خلق پاتې... دا خو اوس دَ لوډ سپيکرو زمانه ده، بره ختلو ته ضرورت نشته، فقهاء او پخوانو خلقو به وئيل: چې دَ مؤذّن دپاره به پهٔ اوچت ځائے کښې مينار جوړوې، کمره به وي نو مخامخ به پکښې يَو کهړکي وي چې هغې کښې به مخامخ آواز ځي، يَو به پکښې ښي طرف ته وي نو ښې طرف ته به پکښې آواز ځي چې "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ"، او بل به پکښې کڼ طرف له وي نو کڼ طرف ته به پکښې آواز ځي چې "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" وائي، چې لرې پورې ئې خلق واوري. نن هغه دور الله راوستو چې چغو له پکښې ضرورت نشته، کهٔ تهٔ ئې هر څنګه وائې نو لوډ سپيکر ستا نه اوچت آواز کوي.

نو ابتداء دَ اذان هم هغه وخت نه شوې ده او ابتداء دَ اقامت هم دَ هغې وخت نه شوې ده. او دا کلمات دَ اذان چې څنګه دَ شريعت نه نقل دي نو هم هغې طريقې باندې به ئې وائې. افسوس پکار دے نن زمونږ يَو کمے دے اذان شته خو دَ اذان کلمات زمونږ خطاء دي. پهٔ دې خو ما يَو ځل بيان کړے هم دے، کهٔ موقع راشي نو پهٔ دې به زهٔ تفصيلي خبره کوم: چې زمونږ دَ عجمو مونځ غلط دے، اذان زمونږ غلط دے، اقامت زمونږ غلط دے، دَ قرآن تلاوت زمونږ غلط دے، مونږه دَ سره دَ عربئ پهٔ قاعدو پوهيږو نهٔ؛ چې کوم ځائے کښې تکے اوږدول نهٔ غواړي نو هلته به ترې مونږ يَو لوئي شے جوړ کړو، او چې کوم ځائے کښې اوږدول غواړي نو هغې ځائے کښې به مونږه زر ساه واخلو، کوم ځائے کښې چې يَو تکے "حاء" وئيل غواړي مونږ به دَ هغې نه "خاء"

جوړ کړو، دَ "قاف" او "کاف" خو مونږه هډو فرق نۀ کوؤ، دَ "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةْ" پۀ ځائے مونږه "قَتْ قَامَتِ الصَّلَاةْ" وايُو.

**دَ علامه ابن حجر رحمه الله قول**

علامه ابن حجر رحمه الله ليکلي دي: چې اقامت دا دَ اذان پۀ شان دے، دَ دې کلمات دَ اذان پۀ شان دي، پۀ اذان کښې پۀ هره کلمه باندې وقف وي نو اقامت کښې به هم پۀ هره کلمه باندې وقف وي لکه:

"اللهُ أَكْبَرْ اللهُ أَكْبَرْ، اللهُ أَكْبَرْ اللهُ أَكْبَرْ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهْ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهْ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهْ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهْ..."، نو بيا "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةْ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةْ" چې اذان کښې داسې وائې نو اقامت کښې به هم داسې وائې: "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةْ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةْ". ډير خلق پۀ اقامت کښې داسې وائي: "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ"، نو دا "ةِ" ولې وائې؟ دا خو تا وقف اونۀ کړو، حالانکه دلته کښې وقف پکار وو، نو "حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ" وئيل دا غلط دے، دَ قاعدې پۀ لحاظ صحيح دے خو دا پۀ اذان او اقامت کښې يَو شان دے، تا غلط اووئيلو. دارنګې "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" به نۀ وائې، بلکه "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحْ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحْ" به وائې لکه څنګه چې اذان کښې وائې. بيا ډير قاريان، ډير مُلّيان او ډير پوهه خلق هغوي وائي: "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ" وائي، نو "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ" به نۀ وائې بلکه "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ" به وائې؛ ځکه حالتِ وقف کښې ګول تاء (ة) پۀ هاء ساکنې سره بدليږي، يعني هغه هاء سره به ئې بدلوې چې پۀ هغې باندې سکون (غوړندے) وي نو لهٰذا داسې به وائې: "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ". او کۀ تۀ پکښې تجويد شروع کړې او وائې: "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ" نو يَو کښې تا وقف اونۀ کړو دا خلاف دَ قاعدې نه دے؛ ځکه قاعده دا ده:

"وَالْإِقَامَةُ مِثْلُ الْأَذَانِ".

"دَ اقامت کلمات هم دَ اذان دَ کلماتو پۀ شان دي"، صرف "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ" به سبوا کوې عند الاحناف، او تلفُّظ ئې هم دَ اذان پۀ شان دے يعني وقف به پکښې کوې، دا نۀ چې تۀ وقف

ساقط کړې لکه: "حَيَّ عَلَی الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَی الصَّلَاةِ" به نۀ وائي، "حَيَّ عَلَی الصَّلَاهْ، حَيَّ عَلَی الصَّلَاهْ" به وائي، "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ" به نۀ وائي بلکه "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاهْ" به وائي. او پۀ دې کښې ډېر خلق مبتلا دي نو ټهيک ده چې اقامت اوشو خو خلافِ ادب اوشو.

نو بهر حال دَ اذان ابتداء دَ هغه وخت نه شوې ده.

**اشکال**

بعضې خلق اشکال کوي: چې ټوله وحي راغلې ده کنه نو هغه خو نبي ﷺ ته جبرئيل امين عليه السلام رالېږلے ده يا دَ نبي ﷺ پۀ زړۀ کښې ئې اچولي دي نو دَ اذان دا کلمات به هم الله خپل نبي ﷺ ته رالېږلي وو کنه! چې عبد الله بن زيد بن عبد ربّه خوب ليدو او دَ خوب نه ئې بيا خبره را واړوله او اذان شروع شو؟

**جواب**

مونږ وايُو: چې واقعي ده چې خبره خو دَ خوب ده خو چې دَ الله نبي ﷺ ئې تصديق اوکړو نو خبره وحي ته لاړه، نبي ﷺ دَ دې خوب تصديق اوکړو چې:

«إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللهُ».[1]

نو دې ته اوس خوب وئيل نۀ دي پکار، دَ دې تصديق خو دَ رسول الله ﷺ دَ طرف نه اوشو. او کۀ خبره پکښې ډېره ګټکښې بوځې نو بعضې محدّثينو دا هم ليکلي دي: چې دا دَ الله نبي ﷺ ته څنګه پته اولګيده چې دا حق خوب دے؟؛ نبي ﷺ چې کله دَ معراج پۀ شپه آسمانونو ته تلے وو، نو چې دَ ماخُۀ ټائم شو نو جبرئيل عليه السلام اذان کړے وو، هغه اذان نبي ﷺ اوريدلے وو نو دلته چې فرشتې دې صحابي ته اذان اوښودلو نو هغه کلمات چې رسول الله ﷺ اوريدلي وو او دې صحابي ليدلي وو نو دواړه يَو شان وو؛ نو ځکه نبي ﷺ اووئيل: چې دا خو هغه اذان دے چې کوم ما پۀ آسمانونو کښې اوريدلے وو، نو پۀ دغه وجه نبي ﷺ دَ هغې توثيق اوکړو.

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الصلاة، باب ما جاء في بدء الأذان، برقم: (189)، وأحمد في "مسنده"، مسند المدنيين، حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ صَاحِبِ الْأَذَانِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، برقم: (16478).

او يَو روايت کښې دا هم راځي: چې نبي ﷺ فرښتو له امامتي ورکړې وه، نو نبي ﷺ يَواځې دَ پيغمبرانو امام نۀ شو بلکه دَ الله نبي ﷺ دَ فرښتو امام هم جوړ شوے دے، او دَ سدرة المنتهٰى سره نبي ﷺ فرښتو ته جمع هم ورکړې وه.

نن ما صرف تاسو له دَ اذان ابتداء او دَ اقامت ابتداء چې دَ څۀ وخت نه شوې وه؟ نو دا دويم دَ هجرت کال وو، پۀ مدينه منوّره کښې دَ مسجدِ نبوي دَ تعمير نه بعد بيا دَ اذان ابتداء شوې ده، او بيا بلال ﷛ دَ مرګه پورې دَ الله نبي ﷺ مؤذّن مقرر کړے دے. هاں! دَ اذان او اقامت چې کوم مسائل دي نو چونکه دا خو مونږ سيرت بيانوؤ، دَ هغې به پۀ خپل ځائے باندې ان شاء الله يَو مستقل بيان وي، چې دا خلق څومره غلطۍ پۀ اذان او اقامت کښې کوي، دَ اذان دپاره کوم سړے مناسب دے؟ دَ اقامت دپاره کوم سړے مناسب دے؟ اوس خو ښار ناپرسان دے. نبي ﷺ بلال ﷛ مقرر کړے وو، نو دا نۀ وه چې کوم سړے مخکښې راغے نو هغۀ به اذان کوي، بلال ﷛ به اذان کوي. جومات کښې به يَو مؤذّن وي هغۀ به اذان کوي. دا نۀ چې هر يَو دې راځي او لوډ سپيکر ته دې اودريږي او زۀ اذان کوم او ثواب ګټم، دا پۀ شريعت کښې نشته دے. جومات کښې به يَو مؤذّن وي او هغه به تائم له ځان را رسوي، او دا يَو مؤذّن چې وي نو دې کښې حکمت دا وي چې هغۀ به تائم له راځي. او چې ګڼړو ته شي نو بيا تاسو ته پته ده يَو وائي: فلانے به تلے وي، اذان به ئې کړے وي او بل وائي: فلانے به تلے وي اذان به ئې کړے وي نو پۀ دې طريقه کښې يَو هم لاړ نۀ شي. او چې يَو ته دې حواله کړے وي نو هغه به پۀ تائم باندې ځان را رسوي.

او بيا چې څوک اذان اوکړي نو اقامت حق دَ هغۀ دے، چې هغه دې اقامت هم اوکړي. هاں! کۀ تا ته اووائي: چې تۀ زما دَ طرف نه اقامت اوکړه نو صحيح ده، خو کۀ هغۀ اجازت نۀ درکوي نو حق دَ هغۀ دے. او دا هم نۀ ده: چې مونږه يَو کمزورے سړے اووينو نو ورته وايُو: فلانکي خانه! اذان اوکړه، چې ښۀ کار وي نو بيا زۀ ورځم او چې اذان وي نو بيا يَو غريب ته وايُو: چې ورشه! اذان اوکړه. اذان به کوم سړے کوي؟ دَ الله نبي ﷺ فرمائي: پۀ تاسو کښې چې غوره سړے دے هغۀ دې پۀ تاسو کښې اذان کوي، دين پکښې دے، ايمان پکښې دے، عقيده

ئې صحيح ده، تلفُّظ ئې صحيح دے نو هغۀ به اذان کوي. فقهاؤ ليکلي دي: چې دَ فاجر سړي اذان مکروه دے، دَ کيره خريلي سړي اذان مکروهه دے، چې کوم تا ته ښۀ سړے ښکاري هغۀ به اذان کوي. او امامتي دې هغه سړے کوي: چې قرآن ورته ښۀ ياد وي.

دا مسائل به ان شاء الله پۀ خپل ځائے باندې راځي. الله رب العزة دې دَ صحيح عمل کولو توفيق را نصيب کړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

# دَ دې جلد ژئلنده او پر قیدونکې ستورې

(1) "دَ نبي ﷺ نسب اودَ هغې شرافت"

(2) "فضائل دَ نیکونودَ نبي ﷺ اودَ مورطرف نسب"

(3) "دَ نبي ﷺ پیدائش"

(4) "دَ نبي ﷺ عقیقه، تسمیه اورضاعت"

(5) "دَ نبي ﷺ دَ شق الصدرواقعه اودَ موربي بي وفات"

(6) "دَ نبي ﷺ ابوطالب سره شام ته تلل اودَ بحیرا راهب سره ملاقات اودَ خدیجة الکبری رضي الله عنها سره دَ نبي ﷺ نکاح"

(7) "دَ وحي ابتداء"

(8) "دَ وحي بعضې لطائف"

(9) "دَ وحي بندیدل اودوباره وحي شروع کیدل"

(10) "دَ دعوت اوله مرحله اواول ایمان چا راوړې وو؟"

(11) "بیان دَ ښکاره تبلیغ دَ نبي عليه السلام"

(12) "په نبي ﷺ دَ مشرکانواعتراضونه کول"

(13) "دَ نبي ﷺ ملګروله دَ مشرکینوتکلیفونه ورکول"

(14) "دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم حبشې ته هجرت"

(15) "دَ سیدنا حمزه رضي الله عنه اودَ سیدنا عمر رضي الله عنه فاروق ایمان راوړل"

(16) "مقاطعه بني هاشم اوهغې باندې خط لیکل اوبیت الله کښې اویزا نول"

(17) "دَ نبي ﷺ قبائلوله دعوت ورکول اودَ طائف واقعه"

(18) "معراج النبي ﷺ"

(19) "په مدینه منوّره کښې دَ اسلام ابتداء"

(20) "دَ رسول الله ﷺ مدینې منوّرې ته هجرت اړول"

(21) "دَ نبي ﷺ مدینې منوّرې ته دَ هجرت کولو په وخت کښې په لاره کښې نا آشنا نا آشنا حالات راتلل"

(22) "په مدینه منوّره کښې دَ هجري کال ابتداء او نبي ﷺ دَ چا په کورکښې پاتې کیدو؟"

(23) "په مدینه منوّره کښې دَ یهودوعلماؤ په نبي ﷺ باندې ایمان راوړل"

(24) "دَ مسجد نبوي تعمیر"

(25) "دَ اذان ابتداء اودَ صحابي خوب لیدل"

نوټ: خطبات رباني شپږم جلد به ډیر زر انشاء الله منظر عام ته راشي:

